# د افغان تراژيدي- دروسي تجاوز زیږنده

(لومړی لاس- ریښتیني اسناد)


## ليکوال: متقاعد جنرال عبدالقادر
## مشهور په جنرال عبدالقادر اکا




# د افغان تراژيدي
# د روسي تجاوز زيږنده
## (لومړی لاس - رښتيني اسناد)

ليکوال: متقاعد جنرال عبدالقادر
مشهور په جنرال عبدالقادر اکا



بسم الله الرحمن الرحيم

د کتاب ځانګړنې:

**د کتاب نوم:** د افغان تراژيدي- د روسي تجاوز زېږنده
(لومړی لاس - ريښتيني اسناد)
**ليکوال:** متقاعد جنرال عبدالقادر
مشهور په جنرال عبدالقادر اکا
**ډيزاين:** هېوادمل ګرافيکس / facebook.com/hewadmal.graphics
**چاپځای:** سروش کتاب پلورنځی
**چاپ کال:** ۱۳۹۸ هـ ل، ۲۰۱۹ م
**شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

# لړلیک



## لومړی څپرکی





## دویم څپرکی



## درېیم څپرکی

## څلورم څپرکی



## پنځم څپرکی



## شپږم څپرکی

## اووم څپرکی



## اتم څپرکی



## نهم څپرکی



## لسم څپرکی

# سریزه

زه خپله لیکوال او ادیب نه یم، تاریخپوه یا تحلیلګر نه یم خو په وروستیو کلونو کې مې د کتابونو له لوستلو سره ځکه مینه پیدا شوه چې زه د افغانستان د رویدادونو او حوادثو فعال ګډون کوونکی وم، نو په دې توګه علاقمند شوم چې د تیرو رویدادونو انعکاس په کتابونو کې څه ډول دی؟ له دی کبله په کتابونو کې د حقیقت په لټه شوم، خو ومې لیدل چې په لیکنو کې شخصي علاقمندي او د حقیقت تحریف لوی ځای لري. ما هغه اسناد چې لومړی لاس بلل کیږي د دې کتاب په توګه راغونډ کړل او لوستونکو ته یې وړاندي کوم ترڅو د تور غبار په اړو دوړ کې یو څو لیکې ریښتیا هم ولوستلای شي.

د ژوند یو تریخ حقیقت دا دی چې د پیښو په باب «ریښتیا ویل» د کاذبو، جعلیاتو او توطیئو د انبارونو لاندې پټ پاتي کیږي نو ځکه مې د معتبرو منابعو او مشهورو شخصیتونو له اول لاس اسنادو څخه اخیستنه کړیده تر څو د حقیقت یوه څنډه را لوڅه کړای شم. له همدې کبله دا کتاب د «لومړي لاس- ریښتني سند» په نامه نومول شوی دی. په راټولو شویو اسنادو ځکه عقیده لرم چې موږ ګوندیان له دغو موضوعاتو سره د وظیفې په جریان کې په وار وار مخامخ شوي یو او ځینې ترخې او خوږې خاطرې هم ورڅخه لرو چې هغه صحنې او وختونه رایادوي. او کله کله به زموږ نظر غوښتل شوی و نو خپل نظریات مو په ډاګه ویلي دي.

که د کتاب په متن کې نارسایي او اشتباهات موجود وي، زما معذرت ومنئ ځکه زه د خپل عمر د خزان په فصل کې او بیا د دې فصل په وروستیو کې واقع یم. او له بلې خوا زما عمر په اداري چارو کې تیر شوی دی چې لوړ مسئولیتونه را په غاړه وو.

د افغانستان جیوپولیتیک - جیوستراتیژیک موقعیت چې د منځنی ختیځ - مرکزي آسیا او د جنوبي آسیا هېوادونو په څلور لارې کې واقع دی او په دې منطقه کې د جنګ د رهبري لپاره ستراتیژیک مرکز بلل کیږي. له همدې کبله د جهان د سترو قدرتونو او د منطقې د هېوادونو د توجه وړ ګرځیدلی دی.

په شلمه پېړۍ کې افغانستان د بریتانیا او تزاری روسیې تر منځ د حایلې سیمې په توګه پېژندل کېده خو په وروستیو کې د وخت له شوروي اتحاد سره یې مناسبات ګرم شول چې اقتصادي او نظامي مرستې یې هم تر لاسه کولې.

په هغه وخت کې موږ جهان ته په بله سترګه کتل، خو نن جهان په بل ډول ګورو. د مثال په توګه، موږ شوروي اتحاد ته د ریښتیني دوست په سترګه کتل، ځکه شوروي اتحاد د آزادي بښونکو جنبشونو څخه دفاع کوله او مخ په انکشاف هېوادونو سره یې مرسته کوله. په دې لړ کې د کیوبا، موزامبیک، انګولا، ګینې بیساو، ویتنام، لاؤس، کمبوج، نیکاراګوا او زیمبابوې نومونه اخستلای شو.

دې ډول موضعګیري د شوروي اتحاد نوم او اوتوریته عروج ته رسولې وه او د سوپر- پاور په توګه یې تمثیل او تبارز کاوه. نو ځکه شوروي اتحاد د «سولې د تکیه ګاه» په نوم یادېدله.

خو هغه وخت چې شوروي اتحاد په افغانستان تجاوز وکړ، نه تنها د افغانستان په حالاتو کې، بلکې په جهان کې هم ژور تغیرات راغلل. امریکا له خپلو متحدینو سره پریکړه وکړه چې افغانستان د شوروي اتحاد په مقابل کې د ویتنام نقش ولوبوي او په دې لوبه کې د شوروي په ړنګولو سره موفق هم شول او هغه د سولې تکیه ګاه د تجاوز ګر په نوم یاده شوه. خو په دې لوبو کې زموږ ګران افغانستان ویران او افغانان د دې جنګونو په اور کې وسوځېدل.

موږ افغانانو باور نشوای کولای چې د شوروي نظامي قوتونه به دومره ډېر وخت په افغانستان کې پاتي شي. په هغو شرایطو کې موږ په تکامل باور درلود، د تاریخ په شا تګ ته معتقد نه وو. داسې تلاشونه روان وو چې شوروي لوري ته قناعت ورکړو چې د دوی نظامي حضور نفي شي او له افغانستان څخه ووځي، د شوروي نظامیانو په پرنسیپ کې دا نظرونه تائیدول، خو موږ په دې خبره نه پوهېدو چې په

شوروي کې تهول واکونه د استخباراتو (کې. جي. بي.) په لاس کې دي او په کابل کې همداسي دولت جوړوي چې د «خاد» ارګان له دولت څخه لوړ واکونه ولري. دا زموږ نیمګړتیا وه.

د دې تر څنګ کې. جي. بي. سیستماتیک تلاشونه کول چې د افغانستان قومونه یو د بل په ضد تحریک او په جنګونو یې اخته کړي.

له پخوا څخه د شوروي د شرق شناسی انستیتوت له خوا داسې اصطلاحات جوړېدل او افغاني وابسته عناصرو ته پروګرام ورکول کېده چې پښتون قوم په افغانستان کې له ۲۵۰ کاله زیات سلطنت کوي، نو پښتون قوم نشنلیست، شوونیست او فاشیست دی څکه په نورو قومونو حکومت کوي.

په حقیقت کې دا اصطلاحات کاملاً په غیر علمي توګه استعمالیږي او د نیمه با سواده ځوانانو په ژبو بیانیږي. حال دا چې، فاشیزم د پیشرفته سرمایداري نظام محصول دی لکه هټلر چې یو صنعتي نظامي مجتمع جوړه کړي وه تر څو نور هېوادونه اشغال کړي.

اما پښتون په افغانستان کې د درې یا څلور متره رخت اخستلو توان نلري چې ځانته کالي جوړ کړي. خو کې. جي. بي د پښتون څخه فاشیست جوړوي او له کې. جي. بي سره تړلي عناصر په دې تبلیغاتو باور کوي. نو قومي، ژبني او سمتي اختلافاتو ته لمن وهي البته کې. جي. بي. به څه جیفه هم ورکوي. په داسې حال کې چې خپله روسان په ۹۹ غیر روسي قومونو حکومت کوي خو خپل ځانته فاشیست نه وایي.

مخکې مې یادونه وکړه چې په وروستیو وختونو کې له شوروي اتحاد سره د افغانستان مناسبات ګرم شول، چې د ظاهر شاه د دوران سره مصادف دی. په دغو ګرمو مناسباتو کې د ظاهر شاه صدراعظم سردار محمد داود خان، چې لس کاله په دې مقام کې پاتي شوی دی، مرکزي رول لوبولی دی. مسلماً په شاهي کورنۍ کې، سردار محمد داود تر ټولو ډېر د هېواد آبادۍ ته سخت لېوال وو. خو له بلې خوا نوموړی یو ځان غوښتونکی او د واک تږی وو چې په ولس کې د لېوني سردار په نوم پېژندل کېده او حتی شاهي کورنۍ هم په همدې سترګه ورته کتل.

جنرال ذکريا ابوي د محمد داود کلک ملګری و چې وايي: «داود خان سرتېښ
کينه کښ او ځان غوښتونکی و او له تېرېدنې او جوړ جاړي څخه بې خبره وو».

جنرال ذکريا د خپل پلار له خولې چې د نادر شاه په دربار کې سر منشي
ليکي: هغه وخت چې سردار داود خان د مشرقي د فرقې قوماندان او نايب الحکوم
يو توند ليک يې نادر شاه ته استولی وو. کله چې سر منشي دغه ليک پاچا ته
وړی وو، پاچا (نادر شاه) ورته ويلي وو: "زه د دې ليوني هلک څخه تر پوزې راغل
يم.»).

کله چې سردار محمد داود د مرکزي قول اردو قوماندانۍ ته ورسېد نو د
ضابطانو ښوونځي، حربي ښوونځي، حربي پوهنتون يې هم د قول اردو په چوکا
کې راوستل ګويا په دفاع وزارت کې يې بل وزارت جوړ کړ. سردار محمد داود خان
دفاع د وزير په توګه د صدراعظم شاه محمود خان کارونه سبوتاژول تر څو هغه
نام کړي او د هغه مقام ونيسي.

د ژوند پراکتيک او تجروبو ثابته کړي ده چې که څه هم يو سياستوال ډېر ښ
او مثبت صفتونه ولري خو چې خود خواه وي نو هغه ډېر بد سړی دی.

*د افغانستان د هوايي او مدافعهٔ هوايي قواوو پخوانی عمومي قوماندان*
*متقاعد ډګر جنرال عبدالقادر*

## د کتاب لیکنې لامل

له ډېر وخت راهیسي ملګري او دوستان راڅخه غواړي چې د تېرو پېښو په باره کې یو څه ولیکم. د دوی دلیل دا دی چې ما په تېرو نظامونو کې دنده تر سره کړې ده او په واقعیتونو خبر یم.

ما تل د ملګرو په ځواب کې دا خبره کړې ده چې زه له یوې خوا لیکوال نه یم او له بلې خوا په تېرو څو لسیزو کې زیاتې ناپلوه لیکنې شوي او دروغ او رښتیا سره اخښل شوي دي، نو کېدای شي چې لیکنه به مې د لوستونکو لپاره پر زړه پورې نه وي. په پای کې د دوستانو د ټینګار له امله اړ شوم هغه څه ولیکم چې رښتیا وي او د لیدلو شاهد یې وم. زه اوس ۷۸ کلن یم، په خپل وخت کې مې یاداشتونه نه دي لیکلي او ډېر څه مې له یاده وتلي دي، خو سره لدې د دوستانو غوښتنه ځمکې ته نه غورځوم او لیکنه پیلوم.

### زما زېږد سیمه

د زرملې په یوه بزګره کورنۍ کې زېږېدلی یم. پر ما خپل هېواد ګران دی او همدارنګه د زېږېدنې سیمه (زرمت) راته ګرانه ده چې هلته مې خاپوړې کړې او لومړنۍ زده کړې مې پکې کړې دي. اړینه بولم چې ګرانو لوستونکو ته د زرملې ولسوالي ورو پېژنم.

زرمله د پکتيا د مرکز، گرديز په لويديځه خوا کې ۳۳ کيلومتره وړاندي پرته ده. د سمندر له سطحي څخه ۲۱۵۰ متره لوړوالی لري، د وگړو شمېر يې د اټکل له مخې ۱۵۰۰۰۰ کسانو ته رسيږي. په زرملې کې د بېلابېلو قبيلو او خېلونو خلک مېشت دي، لکه مموزي، اوريا خېل، مينځي، صالح خېل، گلداد خېل، سهاک، اندړ، خروټي او نور چې ټول د غلجيو له لويې قبيلې سره تړاو لري.

زرمله پر شپږو ونډو ويشلي ده:

۱- سهاک

۲- اورياخېل

۳- مموزي

۴- کوتې خېل، دولتزي، گورجي، شاه کاريز

۵- کولالگو، دولت خان، پاينده خېل او شاهي کوټ

٦- گلداد خېل او صالح خېل

د زرملې ولسوالي يوه هواره ناوه ده. د شمال خوا ته يې د خروار غر او د سوېل خوا ته يې هم د غرونو لړۍ پرته ده. د سلېمان غر چې د افغانستان په سوېلي سيمه کې پروت دی د ٦۰۰ کيلومترو په اوږد والي سره د ختيځ سلېمان غره او لويديځ سلېمان غره په نومونو وېشل شوی دی. وزيرستان د ډيورنډ کرښې سوېل ته په دغه غره کې پروت دی. د سلېمان غره لويديځه برخه له پکتيا او پکتيکا څخه نيولي آن تر سوېلي پښتونخوا او بلوچستان پورې غځېدلي ده، چې مشهوره څوکه يې د سلېمان تخت په نامه ياديږي او د سمندر له سطحې څخه ۳۳۸۳ متره لوړوالی لري. د دې غره د لړۍ ډېره برخه په ځنگلونو پټه ده. د زرملې هغه کلي چې د دې غرونو په اړخونو کې پراته دي، په هغو کې مېشت خلک د اړتيا وړ توکي له دې ځنگلونو څخه برابروي او گټه ځيني اخلي.

زرمل د کرنې ښې ځمکې لري او د ځمکو د خړوبولو لپاره د اوبو پريمانه زېرمې پکې شته.

د ساري په توګه: د زرملې ناوې له منځه رود تېرېږي چې د سردې د اوبو په بند کې توییږي. دا سیند د خپل بهیر په دواړو غاړو کې د پرتو ځمکو د خړوبتیا لپاره بسیا اوبه ورکوي او د اوبو ژرندې هم لري.

ــ د درنګ او مکاوې اوبه چې سرچینه یې د خروار له غره څخه پیلیږي.

ــ د کني او ګویانې اوبه چې د سلېمان له غره څخه رابهیږي.

د درنګ، ګویانې او کني اوبو ته په یوه لیکه ژرندې اېښودل شوي دي او هغه وخت چې برېښنایي ژرندې نه وې د زرملې ولس له همدې ژرندو څخه ګټه اخستله. دا ژرنـــدې یوه په زړه پورې د لیدو وړ منظره جوړوي. زرمل کاریزونه هم لري چې لېوان او شاه کاریز یې مشهور دي. شاه کاریز د سلطان کاریز په نامه سره هم یادیږي.

## سړکونه او لویې لارې

ګردېز ــ زرمت ــ غزنی

ګردېز ــ زرمت ــ ښرنه

ګردېز ــ اورګون چې د زرملې له سویلي سیمې څخه تېرېږي.

ګردېز ــ غزني چې د زرملې له شمالي سیمې څخه تېرېږي.

په زرمل کې ډېر زیارتونه شته چې د شېخ احمد روحاني او عبدالرحمن بهشتي زیارتونه یې مشهور دي. د شېخ احمد روحاني زیارت د سلېمان غره په ډډه کې پروت دی او له زرملې څخه له ورایه ښکاري. دا زیارت ډېر زیارتکوونکي لري له همدې کبله د مینجاورو هغه کلي چې له څنګه یې ژوند کوي د دې زیارت له نذرانې څخه د خپل ژوند چارې سمبالوي. په دغه زیارت کې هر کال درې ځلې میلې کیږي. په دې مېلو کې پر لویې پکتیا سربېره د غزني، لوګر، پښتونخوا او نورو سیمو ولسونه هم ګډون کوي. خلک پکې هم جنس په جنس راکړه ورکړه کوي او هم د پیسو په بدل کې د خپلې اړتیا وړ شیان پیري.

د زرملی په ولس کې یوه ډېره په زړه پورې سپورتي لوبه له لرغوني زمانې راهیسې دود ده چې د آسونو په واسیله سر ته رسیږي او د سانگو (نیزه بازي) په نوم یادیږي. د سانگو لوبغاړي د ودونو، اخترونو او جشنونو په مراسمو کې گډون کوي او سیالی سر ته رسوي.

## ښوونه او روزنه

په ۱۳۲۲ هجري لمریز کال کې چې زه په لومړني ښوونځي کې شامل شوم زما په کورنۍ کې څوک په لیک لوست نه پوهېدل او حتی په کلي او سیمه کې هم لوستي کسان نه تر سترگو کېدل. خلکو له زده کړې او ښوونځیو سره مینه نه ښوده. په ټول زرمت کې په هغه وخت کې درې بابه ښوونځیو شتون درلود چې د لومړۍ حصې، دویمې حصې او دریمې حصې په نامه یادېدل. په واقعیت کې زده کړه دود نه وه. ماشومان به یې د ونډو په حساب په ښوونځیو کې شاملول. هغه چا چې زوی به یې ښوونځي ته ورکړ، ځایي خلکو به د ونډې له مخې یو څه پیسې راټولې کړې او د هلک پلار ته به یې ورکړې. د ونډې له راټولو پیسو څخه ملک صیب هم یوه برخه پیسې د ځان لپاره بېلولې. هغه وخت چې زه ښوونځي ته شامل شوم گاونډیانو به راته ویل، پلار دي درسره ښه ونه کړل، ته یې په حکومت خرخ کړې. دا د دوی لپاره یوه ناوړه پېښه وه.

د وخت په تېرېدو سره هر څه بدلیږي. په اوسني وخت کې که څه هم په هېواد کې جنگ دی امنیت نشته د خلکو دښمنان یې نه پرېږدي چې ماشومان زده کړه وکړي بیا هم د زرملې د ولسوالي د زده کړو په اړوند د ۱۳۹۱ کال د راپور له مخې دوولس لېسې او یو دارالمعلمین او د ولسوالي په مرکز کې یوه عالي لېسه چې د شهید حبیب الله زرمتي په نوم نومول شوې، موجوده ده. ۵۵ منځني او لومړني ښوونځي پکې دي. له دې جملې څخه ۳۷ ښوونځي ودانۍ نلري. اته ښوونځي په ۱۳۹۲ لمریز کال کې ودان شوي دي. د زده کوونکو شمېر یې ۱۸۰۰۰ تنو ته رسیږي چې له دې جملې څخه یې ۴۰۰۰ نجوني دي.

د ښوونځیو، لیسو او زده کوونکو پورتنی شمېر موږ ته خوشحالي رابښي. دا زموږ

د خلکو نېکمرغي ده چې زموږ راتلونکې ځوان نسل روزنه او پوهه تر لاسه کوي. له بده مرغه چې اوس مهال د ماشومانو د زده کړې کیفیت په ټیټه سطحه کې دی. د زده کړې د کچې د ټیټوالي لاملونه د امنیت نه شتون، د ښوونکو کمبود او د ښوونکو د تحصیل ټیټه درجه ده. ډېری ښوونکې له شپږمو یا اوومو ټولګیو څخه فارغ شوي او د دوولسم ټولګي فارغان پکې لږ تر سترګو کیږي. له ښوونځیو سره د ولس مرسته هم په نشت حساب ده. هیله مند یو زموږ د ټولنې اوس مهالې ستونزې ژر له منځه لاړې شي او هېواد مو د پرمختګ پر لور چټک ګامونه واخلي.

## لومړی څپرکی

# په حربي ښوونځي کې د زده کړو دوره

هغه وخت چې د زرمت په لومړني ښوونځي کې پر زده کړه بوخت وم له خپلو ټولګیوالو ملګرو سره به مې همېشه په دې اړه خبرې کولې چې کابل ته به څو او هلته به زده کړې کوو. زه په شپږم ټولګي کې وم چې د ۱۳۲۸ لمریز کال د میزان په میاشت کې له کابل څخه یو پلاوی راغی. د پلاوي مشر یو ښکلی او جذاب ډګروال احمد شاه خان وو. پلاوي حربي ښوونځي ته شاګردان ټاکل. زموږ له ښوونځي څخه یو زه او بل داد محمد وټاکل شوو. په ډېره بېړه او خوشحالۍ کور ته راغلم. پلار او مور ته مې کیسه وکړه. پلار مې راته په قهر او ډېر خفه شو. د حربي ښوونځي پلاوی لا د زرمت په ولسوالۍ کې و او زموږ په کلي کې مېلمه وو. پلار مې ورغی او په ډېرې نا امیدۍ سره یې ورته وویل چې زما دا یو زوی دی، زه نه غواړم چې د زده کړې لپاره پلازمېنې، کابل ته ولاړشي. د پلاوي مشر او ولسوال زما پلار ته د زده کړې او لیک لوست د ښېګړې په هکله ډېرې خبرې وکړې، خو هغه نه قانع کېده او د هغوی خبرې یې نه منلې. په پای کې ما خپل پلار ته وویل، که ته اجازه را نکړې زه له کوره تښتم او نور کور ته نه راځم. پلار مې چې ولیدل زه ډېر جدي یم، نو راضي شو او په ح. ښ. کې یې د لوست اجازه راکړه.

حربي ښوونځی د اردو د افسري کدرونو بنسټیز پوهنیز بنسټ ګڼل کېده. دا ښوونځی د کابل ښار لوېدیځ ته د چاردهي په سیمه کې د مهتاب قلعه پوځي

مؤسسې تــه نــږدې د كابــل - كندهـار لويې لارې ته څېرمه پـروت وو. د ښوونځي په سويلي برخه كې د ګلخانې كلې وو. د دغـه كلي په ختيځ كې د يو ځنګل په منځ كې د ښوونځي اړونـد تعليمي او سپورتي ډګرونـه وو. حـربي ښوونځی د څلورو دېوالونو په منځ كې په يـوه لويـه سـاحه كې پـروت و چې پـه ختيځـه خـوا كې يې د ننوتلو لويـه دروازه وه. پـه ښوونځي كې ١٢ ودانـۍ وې چې باركونـه يـې ورتـه ويـل. دا باركونه ډېر كلك او پاخه جوړ شوي او سرونـه يې پـه اوسپنو پوښـل وو. شپږ باركونـه د خوب او شپږ نـور د تدريـس لپـاره وو.

زه پـه ١٣٢٨ هجـري لمريـز كال كې پـه ح. ښ. كې شـامل شـوم. هغـه وخـت د زده كوونكـو شـمېر دوه نيـم زرو تـه رسـېده. پـه ښـوونځي كـې د ژونـد سـتونزې ډېـرې وې، لكـه د صحـي اوبـو كمښـت، د ځـان مينځـلو د حـمام او تشـنابونو نـه شـتون، پـه ډېـر ناوړه حالت كې لـه ختـو جـوړ خـاک اندازونـه، د ډوډۍ خوړلـو لپـاره د تعمير نـه شـتون او...... نـور. لـه نيمګړتيـاوو سره سره حـربي ښـوونځی زمـوږ د ګران هېـواد افغانسـتان د اردو لپاره د افسرانـو د ښـوونې او روزنـې او زېرمـې يواځنـی او لومړنـی مركـز او د بـاور وړ ښـوونيزه لېسـه وه. د دې ليسـې زده كوونكـې بـه لـه دولسـم ټولګـي څخـه تـر فراغـت وروسـته پـه حـربي پوهنځـي (پـه ١٣۴٣ لمريـز كال كې حـربي پوهنتون «ح. پ» ونومول شـو) كې شـاملېدل. همدارنګـه د ح. ښ. لـږ شـمېر فارغـان د كابـل پوهنتـون د طـب، ادبياتـو، سـاينس او انجينـرۍ پـه پوهنځيـو كـې شـاملېدل. د حـربي ښـوونځي زده كوونكـې د افغانسـتان لـه ګـوټ ګـوټ څخـه راټـول شـوي وو او لـه هيـڅ ډول توپيـر پرتـه يـې د وروڼـو پـه شـان يـو لـه بـل سره ژونـد كاوه. لـه نېكـه مرغـه پـه هغـه وخـت كـې د ژبـې، سـمت، مليت او مذهـب پـه نامـه تعصب شـتون نـه درلـود. د ح. ښ. او ح. پ. زياتـره پوځـي تعليمي اصطلاحـات د تركيـې د اردو لـه اساسـاتو څخـه اخسـتل شـوي وو. د تركيـې د وسـلوال پـوځ ډېـرې اصطلاحـات، لكـه قاغـوش (د خـوب خونـې)، قاروانـه، برنجـی (ټولګـی مشر) او داسـې نـور زمـوږ پـه اردو كـې كارېـدل. د تركيـې پوځـي مشـاورانو او اسـتادانو چې ښـكلي څېـرې يـې درلودلې او منظم پـاک افغـاني يونيفـورم بـه يـې اغوسـت، پـه حـربي ښـوونځي، حـربي پوهنتـون او مركـزي روغتـون (قـوای مركـز شـفاخانه) كـې بـه يـې د مرسـتندويانو پـه توګـه دنـدې تـر سره كولـې. زه (ليكـوال) د ح. ښ. پـه اتـم ټولګـي كـې نـاروغ شـوم او پـه مركـزي روغتـون كـې بسـتر شـوم. پـه روغتـون كـې د داخـلي ناروغيو

د متخصص ترکي ډاکټر تر درملنې لاندې وم. هغه ډېر مهربان سړی و او د نورو ډاکټرانو په پرتله یې له ناروغانو سره ډېر ښه چلند کاوه. له بلې خوا، زموږ ممتاز او غوره افسران او محصلین هم د لوړو پوځي زده کړو لپاره ترکیې ته استول کېدل.

د ح. ښ. په درسي سیستم کې یوه ستره نیمګړتیا په میخانیکي ډول د ځینو مضامینو زده کړه وه. شاګردان د سیمینارونو او مرستندویو فرهنګي او علمي معلوماتو څخه بې برخې وو. د ورځپاڼو، مجلو او له درسي سیستم څخه د بهر کتابونو لوستل او درلودل منع وو. نو ځکه په سیاست هم څوک نه پوهېدل. شاګردانو د دېموکراتیکو نظامونو په اړه پوهه نه درلودله او په دې نه پوهېدل چې دیموکراسي څه ته وایي؟ زده کوونکو ته به ویل کېدل چې عسکر باید په سیاست پوه نه شي. زما په اند، هغه سرباز او افسر چې د خپل هېواد په کورني او بهرني سیاست پوه نه وي، د وطن له سیاسي تاریخ او سیاسي جغرافیې څخه نه وي خبر او د خپلې خاورې دښمنان و نه پېژني، نو هغه څرنګه کولی شي چې له خپلې ځمکنۍ بشپړتیا څخه دفاع وکړي؟ د هېواد لپاره د داسې اردو ارزښت هم په هیڅ حساب وي. موږ ته به ویل کېدل چې یوازې پاچا ته وفادار اوسئ. د ح. ښ. زده کونکې به هر مازدیګر په نظام درېدل او د پاچا لپاره به لویه سلامي نیول کېدله. له موزیک سره به یو ځای په لوړ آواز ویل کېدل: عمر دې ډېر شه پاچا! دا منم چې پاچا یا هر بل آمر ته اطاعت کول او د آمر د امر پر ځای کول د هېواد د هر وګړي دنده او فریضه ده. خو له بده مرغه د ح. ښ. شاګردانو ته د هېواد د فقر، وروسته پاتیوالي او په دې اړه چې د مورني هېواد یوه برخه یې انګریزي ښکېلاک جلا کړي او بیا یې زموږ په ګاونډ کې د پاکستان په نوم نوي رامنځته شوي مصنوعي هېواد ته سپارلي ده، څه نه ویل کېدل. زما له انده، باید په دې برخه کې د ح. ښ. او ح. پ. د شاګردانو د بشپړې خبرتیا او هېوادپال ذهنیت د زېږونې لپاره سیمنارونه او ځانګړي غونډې جوړېدلای. دا ډول کړنې نه وې. خو د پا چا د اطاعت په برخه کې ټینګار او مبالغه تر دې کچې وه چې هغه ته به یې السلطان ظل الله یعني پاچا د خدای سیوری ویل.

د سردار محمد داود د صدارت په زمانه کې چې د دفاع د وزارت چارې یې هم پر غاړه وې د اردو د پیاوړتیا لپاره یو لړ تدابیر ونیول شول. له شوروي اتحاد څخه د پوځي کدرونو د روزنې په ګډون په نورو برخو کې هم مرسته وغوښتل شوه. د

افغانستان د وسلوال پوځ د کدرونو پیاوړتیا څکه اړینه وه چې له یوې خوا یې بسی
وړتیا نه درلودله او له بلې خوا د ګاونډیو هېوادونو (پاکستان او ایران) له ګوابنونو
سره مخامخ وو. په دې وخت کې شوروي اتحاد د خپلو سیالانو ګوابنونو ته د ځواب
ویلو او له هغوی سره د سیالۍ لپاره په نظامي ساحه کې زیات پرمختګ کړی وا
د عصر له غوښتنې سره سم د پرمختللو وسلو خاوند وو. د افغانستان هوایي ځواک
هم د ځمکني ځواک په څېر پر عصري تخنیک سمبالښت او د نوو کدرونو روزنې ت
اړتیا درلودله. زه د دولسم ټولګي شاګرد وم چې یوه ورځ د هوایي او هوایي مدافعې
ځواک د لوی قوماندان ډګر جنرال عبدالرزاق په مشرۍ یو پلاوی زموږ ټولګي ت
راننووت. لومړی یې له ما څخه وپوښتل چې د کوم ځای یې؟ ځواب مې ورکړچې
د پکتیا یم. ډګرجنرال پلاوي ته مخ وروااړوه او ویې ویل چې نوم یې ولیکئ. پ
تشویش کې شوم چې څه خبره به وي. څو ورځې تېرې شوې بیا هم نپوهېد
چې ولي یې نوم را ته ولیکه. چا راته وویل چې د هوایي پوهنځي د تدریساتو ل
مدیر څخه چې جګړن دی او عبدالحکیم کتوازی نومیږي پوښتنه وکړه. د تدریسات
مدیر ته ورغلم او پوښتنه مې ځینې وکړه. هغه راته وویل چې یوویشت کسا
شوروي اتحاد ته د لوړو زده کړو لپاره استوو او ستا نوم هم پکې دی. په پا
کې د طبي معایناتو تر بشپړېدو وروسته شوروي اتحاد ته واستول شوو. په الوتک
کې د شوروي اتحاد پلازمېنې مسکو ته ورسېدو. د مسکو د ښار د روسیه په نام
هوټل کې ځای پر ځای شوو. د افغانستان د لوی سفارت نظامي آتشه، جنرال
عبدالرزاق میوند د هوټل تالار ته راغی. هغه تر روغبړ وروسته موږ خپلو راتلونک
زده کړو ته وهڅولو. مرحوم جنرال عبدالرزاق میوند یو مهربان او د ښه سلوک
نیک چلند خښتن و چې د هغه ښه رویه تر اوسه زما په ذهن کې ځای لري
موږ په لومړیو دریو ورځو کې په مسکو کې د کرملین ماڼۍ، د شوروي اتحاد
وسلوالو پوځونو تاریخي موزیم او داسې نور په زړه پورې تاریخي ځایونه وکتل
وروسته د اوکراین د یوه صنعتي او تاریخي ښار «خارکوف» په هوایي ډګر کې
ښکته شوو او د اوکراین جمهوریت د هوایي پوهنتون د اداري له خوا هرکلی رات
وویل شو. لومړی د الوتکو د زده کړې له پروګرام سره اشنا شوو او بیا مو د خارکوف
په ښار کې یو کال نظري زده کړې وکړې. وروسته مو مسلکي زده کړې د قرغزستا

او قزاقستان په هوايي ډګرونو کې ترسره کړې او د ۱۳۳۵ـــ۱۳۳۹ تړاکلې مودې وروسته خپل هېواد ته راستانه شوو. په خپل هېواد کې د هوايي پوځونو په ليکو کې د افسرانو په توګه تنظيم او راسپارل شوې دندې مو پيل کړې.

افغانستان په خپل تاريخ کې لومړۍ ځل له شوروي اتحاد څخه د جيټ الوتکو مرسته تر لاسه کړه چې ميګ ۱۷ (تالنده) ښکاري او ايل ۲۸ (تندر) بمبارد الوتکې وې. د تالنده او تندر الوتکو غونډونه د مزار شريف د دهدادي په هوايي ډګر کې ځای پر ځای وو. ما (ليکوال) د ميګ ۱۷ په غونډ کې دنده سر ته رسوله. د بګرام هوايي ډګر په ۱۳۴۰ لمريز کال کې د الوتکو د الوتنې لپاره ګټې اخيستنې ته چمتو شو او ميګ ۱۷ غونډ پکې ځای پر ځای شو. د ۱۳۴۰ لمريز کال د تلې په مياشت کې د ډيورنډ پر ليکه د يوې تانې پر سر د افغانستان او پاکستان تر منځ کړکيچ پيدا شوی و. تانه د پاکستاني د سرحدي مليشو له خوا نيول شوې وه او د افغانستان ځيني پوځي قطعات د احتمالي بريد د تر سره کولو لپاره د ډيورنډ ليکې ته د نږدې کېدو په حال کې وو. دغه مهال د جلال آباد په هوايي ډګر کې زموږ د تالندی (ښکاري جيټ) الوتکو يوه ځای پر ځای شوي کنډک ته د محاربوي پرواز امر وشو. د غونډ د قوماندان محمد اکبر او د کنډک د قوماندان سيد آمير په پيلوټۍ يوه جوړه الوتکې هوا ته پورته شوې، پر تانه يې بريد وکړ او بمونه يې ورباندې وغورځول. دښمن تانه پرېښوده، وتښتيد او افغان سرحدي پوځ بيرته په تانه کې ځای پر ځای شو. د پاکستان له لوري هيڅ غبرګون ونه ښودل شو. بدمرغي دا وه چې دا دوه پيلوټان او هوايي کنډک د هيڅ ارګان له خوا ونه ستايل شول. د اردو هر افسر او سرتېری همېشه د وطن د دفاع او د ځمکنۍ بشپړتيا د ساتنې په لار کې قرباني ته چمتو وي او هېواد د سترګو د کسي حيثيت ورته لري. د سرتېرو او افسرانو سرښندنې ته د اړوندو مقاماتو پاملرنه اړينه وي او بايد په نښانونو او مډالونو وستايل شي چې د هېوادپالنې احساسات يې لا نور هم ځلاند او پياوړي شي. د شاهي اردو په چارواکو کې د دا رنګه احساس روحيه مړه وه. مادونانو ته هيڅ پاملرنه نه کېده. د قانون تطبيق او ټينګ دسپلين او انضباط د پوځي ژوند روح ده. مکافات او مجازات د هر افسر او سرتېري پام په ښه توګه خپلې دندې ته اړوي او لوړ مورال رامنځته کوي چې د اردو لپاره لومړی رکن دی.

افغانستان لـه شوروي اتحـاد څخـه د وخـت لـه غوښـتنې سره سـم پېچلـې محاربوي
تخنيـک تـر لاسـه کـړ او پـه اردو کـې د پوهـو انجينرانـو اړتيـا زياتـه شـوه. لـه دې کبلـه
دويـم ځـل لپـاره د هغـو انجينرانـو پـه ډلـه کـې وم چـې پـه ١٣٤١ لمريـز کال کـې د لوړ
انجيـنري زده کـړو لپـاره شـوروي اتحـاد تـه واسـتول شـول. څرنگـه چـې مـا پـه شـوروي
اتحـاد کـې د تحصيـل پـه لومـړۍ دوره کـې روسـي ژبـه زده کـړې وه، نـو پـه دويمـه دوره
کـې مـې د ژبـې سـتونزه نـه درلودلـه. خپـل درسـونه مـې پـه جـدي توگـه لوسـتل او
ښـکاري جيټ الوتکـې لـه هـوا څخـه هـوا تـه د رهـبري کېدونکـو توغنديـو پـه موضـوع کې
مـې د خپـل ديپلـوم دفـاع وکـړه. دا هـم بايـد زياتـه شـي چـې توغنـدي د بنفش شعاع په
وسـيله رهـبري کېـدل، د دفـع او طـرد پـه موخـه کارېـدل او د شـل کيلومـترو پـه واټـن کـې
يـې هـدف لـه منځـه ووړ. مـا د ماسـترۍ علمـي درجـه تـر لاسـه کـړه او پـه ١٣٤٧(ل) کـې
تـر شـېږ کلـن تحصيـل وروسـته وطـن تـه راسـتون شـوم.

هغـه مهـال دا دود و چـې تـر لـوړو زده کـړو وروسـته هېـواد تـه سـتانه شـوي افسران
لـوړو چارواکـو ملاقـات تـه غوښـتل. هېـواد تـه زمـوږ د انجينرانـو راسـتنه شـوې ډلـه د
وخـت د دفـاع وزيـر، سـترجنرال خـان محمـد خـان ځـان تـه ومنلـه. زمـوږ پـه ليـدو ډېـر
خـوښ شـو او خپلـو دنـدو تـه يـې متوجـه او تشـويق کـړو. د افغانسـتان د دفـاع وزيـر ستر
جنـرال خـان محمـد خـان پـه ١٩٦٧ (ز) کـې د اوکرايـن مرکـز «کيـف ښـار» تـه د هوايي
اکاډمـۍ د قومانـدانـۍ پـه بلنـه راغلـی و. د اکاډمـي لـه خـوا هغـه درسـي پروگـرام چـې د
انجيـنرۍ د زده کـړو پـر يـوه محصـل د تطبيـق وړ و، پـر مېزونـو ايښـی و او پـه اړه يـې د
اسـتادانو لخـوا د افغانسـتان د دفـاع وزيـر، سـتر جنـرال خـان محمـد تـه توضيحـات ورکړل
شـول. د افغانسـتان د دفـاع وزيـر خـوښ شـو او د اکاډمـۍ لـه قومانـدان او اسـتادانو يې
منتـه وکـړه. کلـه چـې يـې لـه مـوږ سره پـه کابـل کـې پـه خپـل دفـتر کـې خبرې کولې
د اکاډمـي هغـه درسـي پروگـرام يـې پـه ډېـرې خوشـحالي يـاد کـړ او ويـې ويـل چـې پر
تاسـي ويـاړم او بـاور لـرم چـې خپـل هېـواد او پـه ځانگـړې توگـه افغـان اردو تـه بـه د خدمت
مصـدر وگرځـئ. هغـه ووېـل اردو سـتاسـو ډېـر کار او زيـار تـه اړ دی... سـتر جنـرال خان
محمـد مـوږ پـه ډېـره مينـه خپلـو دنـدو تـه وهڅولـو. امـا کلـه چـې د هوايـی او هوايی
مدافعـي لـوی قومانـدان ډگـر جنـرال عبدالـرزاق ځـان تـه ومنلـو د دې پـر ځـای چـې مو
تـه ښـه راغلاسـت ووايـي او خپلـو دنـدو تـه مـو متوجـه کـړي پرلـه پسـې يـې پـه بـدو

الفاظو وګواښلو او کمونیستی ټاپې یې راباندی ولګولې. د هوايي او هوايي مدافعې د لوی قوماندان له دفتر څخه ډېر ناهیلي راووتلو. هک پک پاتي شوو چې دا ټول د څه لپاره او زموږ ګناه څه وه؟ زموږ له راستنېدو سره سم په هوايي ځواک کې هر څه بدل شوي وو، اردو په ټولیز ډول او هوايي ځواک په ځانګړي توګه بهتره بڼه غوره کړې وه. د افغانستان ځمکني او هوايي پوځ له شوروي اتحاد څخه جګړه ییز ترانسپورتي تخنیک تر لاسه کړی و. دلته اړینه بولم چې د افغانستان د هوايي پوځ پر تاریخچه باندې لنډه رڼا واچوم:

## د هوايي ځواک لنډه تاریخچه

د افغانستان د اردو په تشکیل کې د هوايي ځواک بنسټ د هېواد د آزادۍ تر لاسته راوړنې وروسته په ۱۳۰۰ لمریز هجري کال کې د شاه امان الله خان د سلطنت په دوران کې کېښودل شو. د اردو دری تنه ځوان افسران، هر یو، محمد احسان خان، محمد هاشم خان او غلام دستګیر خان په هوايي ښانګه کې د زده کړې لپاره د ایټالیا هېواد ته ولېږل شول. هغوی له ټاکلي مودې زده کړې وروسته په بریالیتوب سره هېواد ته راستانه شول. محمد احسان خان کنډک مشر د پیلوټ په توګه، محمد هاشم خان ټولی مشر د کشاف او غلام دستګیر خان ټولی مشر د الوتکې د تخنیک په دندو وګمارل شول. وروسته محمد احسان خان د غونډ مشرۍ په رتبه کې د الوتکو د قوماندان چې اوس ورته د افغانستان د هوايي ځواک قوماندان وايي، محمد هاشم خان کنډک مشر د کشاف او غلام دستګیر خان کنډک مشر د الوتکې د مسلکي انجینر په توګه دندې تر سره کړې. د افغانستان مشرتابه د اردو تشکیل ته د ځانګړې پاملرنې له مخې په ۱۳۰۴ لمریز کال کې د انګلستان له هېواد څخه دوه او له پخواني شوروي اتحاد څخه یوه الوتکه وپېرلې. له دې نېټې وروسته، هوايي ځواک د تکړه افسرانو او مسلکي اشخاصو په درلودلو سره له مرکزي قول اردو څخه جلا شوې او خپلې دندې یې په مستقلانه توګه تر سره کړي دي. په یاد کال کې محمد احسان پیلوټ د خپلو همکارانو په ملګرتیا سوېلي ولایتونو ته لومړنۍ جګړه ایزه الوتنه تر سره کړه چې د غازی امان الله خان د ځانګړې پاملرنې او خوښۍ وړ وګرځېده. وروسته هوايي ځواک ته د پاملرنې کچه نوره هم

زیاته شوه او ۲۵ تنه نور ځوانان د زده کړې لپاره شوروي اتحاد ته ولېږل شول. په مخکې یاد کال کې د شېرپور هوايي ډګر تأسیس او د الوتکو د الوتنې او کېناستنې وړ وګرځېد. د هوايي ډګر د رسمي پرانستنې په مراسمو کې غازي امان الله خان او نورو مخورو ګډون کړی و. محمد احسان خان پیلوټ شاه امان الله خان ته وړاندیز وکړ چې د وړې د میاشتې دریمه نېټه هوايي ورځ ونومول شي او هر کال یې لمانځنه وشي. دا وړاندیز د هېوادپال ملي مشر لخوا ومنل شو. د شېرپور هوايي ډګر د پرانیستنې په مراسمو کې د محمد احسان خان په پیلوټۍ یوه الوتکه هوا ته پورته شوه او د شېرپور د ډګر د پاسه یې الوتنه وکړه. مراسمو ته ځینو راغلو مېلمنو شک وښود چې ګواکې د الوتکې پیلوټ افغان نه دی او یا الوتکه د افغانانو نه ده. په مراسمو کې د ګډونوالو له ډلې څخه د خلکو یو استازی چې عبدالمحمد نومېده، له محمد احسان خان پیلوټ سره یو ځای الوتنې ته چمتو شو. عبدالمحمد له محمد احسان پیلوټ سره یو ځای الوتنه وکړه او دا په ډاګه شوه چې افغانان هم الوتکه لري او هم وړتیا. د مراسمو په پای کې غازي امان الله خان خپل فرانسوي ماډل (داج) موټر محمد احسان پیلوټ ته او همدارنګه یو یو موټر سیکل محمد هاشم او غلام ـ دستګیر ته ډالۍ کړل او پخپله د آس پر سپرلۍ ارګ ته روان شو.

د ۱۳۰۴ کال په اوږدو کې د شېرپور په هوايي ډګر سربېره د مزار شریف، ګردیز، غزني او ننګرهار هوايي ډګرونه هم جوړ او فعال شول. په ۱۳۰۵ لمریز کال کې د عبدالحسین خان په شان یو شمېر پر هېواد مینو ملي سوداګرو له خپل دولت سره د مرستې په موخه د وخت له برتانوي هند څخه دوه الوتکې وپېرلې او د دولت په واک کې یې ورکړې. د تاج محمد او محمد افضل خان په نومونو دوو سوداګرو دولت ته د یوې الوتکې نغده بیه د مرستې په توګه ورکړه. شاه امان الله خان د یادو سوداګرو د هېواد پالنې د نیک احساس قدرداني او مننه وکړه. په ۱۳۰۵ کال کې د هوايي ځواک د ټولو کار مندانو شمېر ۴۰۰ تنو ته ورسېد. په ۱۳۰۶ لمریز کال کې شوروي اتحاد ته له تللو محصلینو څخه فضل احمد خان پیلوټ افغانستان ته را ستون شو. په ۱۳۰۶ ــ ۱۳۰۷ کلونو کې د کابل او تاشکند هوايي ډګرونو تر منځ د ملکي الوتنې تړون لاسلیک شو چې له مخې یې د افغانستان او شوروي اتحاد تر منځ په اوونۍ کې دوې الوتنې تر سره کېدلې. په ۱۳۰۸ کال کې په هوايي ځانګه کې د زده کړې لپاره یوه پنځلس کسیزه ډله فرانسې او بله شل کسیزه ډله ایټالیا ته واستول شوه. په ۱۳۱۶ کال کې د پیکرهایند په

نامه یو شمېر انګلیسي ماډل الوتکې وپېرل شوې. په همدغه یاد کال کې لومړی هوایي غونډ چې قوماندان یې شاه محمد خان و پرانستل شو. دغه غونډ څلور ټولي درلودل د لومړي ټولي الوتکې پیکرهایند ډوله وې چې قوماندان یې محمد موسی خان و . د دویم ټولي الوتکې رومیو ډوله او قوماندان یې شاه محمد خان و . د دریم ټولی الوتکی هم پیکرهایند ډوله وې او قوماندان یې شاه محمد خان کندهاری و . څلورم ټولی ډول ډول الوتکې لرلی چې قوماندان یې خان محمد خان و . په ۱۳۳۴ کال کې یو ډېر شمېر روسي ډوله الوتکې افغانستان ته ورکړل شوې او د مزار شریف په هوایي ډګر کې ځای پر ځای شوې. په دې الوتکو کې میګ-۱۷، میګ-۱۵، ایل-۲۸ او همدارنګه ترانسپورتي ایل-۱۴، یاک-۱۱، یاک-۱۲ او یاک-۱۸ الوتکې او همدارنګه مې-۲، مې-۴ او مې-۱ ډوله چورلکې شاملې وې. په ۱۳۳۵ (ل) کال کې د خواجه رواش په هوایي ډګر کې یوه غونډ شتون درلود چې له دوو کنډکونو څخه جوړ و . د غونډ قوماندان شاه محمد خان تره خیل و . د لومړي کنډک قوماندان محمد موسی خان او د دویم کنډک قوماندان شیرین خان پیلوټ و .

په ۱۳۳۴ (ل) کال کې د پیلوټی او تخنیکې زده کړو لپاره دویمه دوره شاګردان هندوستان ته ولېږل شول. په ۱۳۳۵ (ل) کال کې د الوتنې او تخنیکې زده کړو لپاره یوه بله لویه ډله شاګردان شوروي اتحاد ته واستول شول. د ۱۳۴۰(ل) کال د وږي د میاشتې په لومړۍ نېټه، د خپلواکۍ په جشن کې، د لومړي ځل لپاره میګ-۱۷ او ایل-۲۸ جیټ الوتکو، له پلیو پوځونو سره یو ځای، په رسم ګذشت کې برخه واخیسته او نندارېزې الوتنې یې تر سره کړې. په ۱۳۱۸ (ل) کال کې د شېرپور هوایي ډګر تر څنګ د یوه هوایي ښوونځي د بنسټ ډبره کېښوول شوه. دغه ښوونځی په ۱۳۳۶ (ل) کال کې هوایي پوهنځي ته لوړ شو چې په ۱۳۳۹ (ل) کال کې یې د پیلوټانو لومړۍ دوره فارغان د ټولنې خدمت ته وړاندې کړل. هوایي پوهنځی په ۱۳۵۹ (ل) کال کې د هوایي او هوایي مدافعې پوهنتون ته لوړ شو. دغه پوهنتون څلور پوهنځي درلودل: هوایي پوهنځي، د راکټ او توپچي دافع هوا پوهنځی، د رادارونو او مخابرې پوهنځی او نقلیه او لوژستیک پوهنځی.

هوایي ځواک له ۱۳۶۰-۱۳۷۱ لمریز کال پورې د سیمې په کچه خورا پیاوړی ځواک و . دا غښتلی ځواک وروسته د ناوړو شرایطو د برلاسي په پایله کې زیانمن او ټوټې ټوټې

شو.

د هوايـي او هوايـي مدافعې قـوا، د مؤقتي اداري تر راتګ وروسته پـه ۱۳۸۱ (ل) کال کـې د جمهـور رئيـس د فرمـان له مخې د هوايي قـول اردو په نامه ونومول شـوه.

## د شاهي نظام د ړنګېدو لاملونه

د مخـه مې يادونـه کـړې وه چـې د افغانسـتان د نظامـي زده کـړو پـه مؤسسـو کـې لـه تعليمـي نصاب څخـه بهـر د هـر ډول کتـاب او خپرونـې پـر لوسـتنه بنديـز و. پـه دې توګه شـاګردان پټـې سـترګې او ناخبره سـاتل کېدل. وروسـته له شـوروي اتحاد او نـورو هېوادونو سره د موافقـو لـه مخې بهرنيـو هېوادونـو ته د عسـکري محصلينو اسـتونه پيل شـوه. افغان محصلينـو ليـدل چـې نړيوالـو څومره پرمختـګ کـړی او د کار او زيار له برکته يـې په ژوندانه کـې څومـره بدلـون راغلـی او اسـانتياوو تـه يې لاسرسـی پيدا کـړی دی.

دا هـم د مخـه وويـل شـول چـې پـه ۱۳۴۷ (ل) کال کـې د انجينرانـو هغـه ډلـه چې زه (ليکـوال) هـم پکـې شـامل وم، لـه لوړو انجنيـري زده کړو وروسـته هېواد ته راسـتانه شـوو. دا مهـال د افغانسـتان اردو د پخـوا پـه پرتله څه نـا څه پرمختـګ کـړی و او له شـوروي اتحاد څخـه يـې نـوی جګـړه ايـز تـخنـيـک تر لاسـه کـړی و. هوايي ځـواک پـه رنګارنګ جګړه ايـزو، ترانسـپورتي او چورلکـو الوتکـو سـمبال شـوی و. زه (ليکـوال) د (۷) ښـکاري بمبارد غونـډ انجينـر وټـاکل شـوم. د دغه غونـډ الوتيزه (پـروازي) او تخنيکې عملـه د نوي تخنيک د زده کـړې پـه موخـه د شـپږو مياشـتو لپـاره شـوروي - اتحـاد تـه ولاړه چې زه (ليکـوال) هم د دې ډلـې ګډونـوال وم. تـر زده کـړې وروسـته هېواد ته راسـتانه شـوو، پر کار بوخت شوو، غونـډ مـو پـه پښـو ودرېد او جګـړه ايـزو دندو ته چمتو شـو.

د وخـت پـه تېرېـدو سره هـر څـه بدليږي. روڼانـدي د تل لپـاره په دګم کې نشي سـاتل کېدلـی. د اردو منسـوبين پـه هر څه پوهېدل پـه ناهيلۍ کې يې ژوند تېـراوه. بيعدالتي زياته وه او هـر افسر تـه دا پوښـتنه پيـدا وه چـې د چـا لپاره خدمت کـوم او ولي يې کـوم؟ د خلکو او د اردو د منسـوبينو د ژوندانـه سـتونزو تـه د لـوړ پوړو چارواکو پاملرنه له هيڅ سره برابره وه. افغانسـتان د وروسـته پاتي هېوادونو په کتار کې سـاتل کېده. د هېواد د ميليوني پرګنو ژوند لـه سـتونزو ډک و او برخليـک يـې د يـو موټـې زبيښـاکګرو لخـوا ټاکل کېـده. بزګرانـو چې د

هېواد د وګړو په سلو کې اتیا برخه یې جوړوله، ډېری یې بې ځمکې و او د فیوډالانو او سود خورو تر اسارت لاندې یې ژوند کاوه. د کرنې او غلې دانې د حاصلاتو کچه ډېره ټیټه وه او افغانستان د نړۍ د یوه خورا فقیر هېواد په توګه تل له بهر څخه د خوراکې توکو واردولو ته اړ و.

په هېواد کې صنعت کمزوری و او ډېره لږ وده یې کړې وه. اومه مواد په ډېره لوړه بیعه پر محصولاتو بدلېدل. د فابریکو او کارخانو د نه شتون له امله د کارګرانو شمېر محدود و. په هېواد کې همېشنۍ بېکاري وه او په کلیو او ښارونو کې غریبي برلاسي وه. دولتي مامورین په فساد، رشوت او اختلاس کې ښکېل و. د هېواد په سلو کې نوي وګړي په لیک او لوست نه پوهېدل. هڅه کېدله چې افغانان په سیاست کې دخیل نه شي او له خپلو حقونو ناخبره وساتل شي. ناخبري تر دې کچې وه چې د هېواد په لیرې پرتو سیمو کې ډېری خلکو د خپل پاچا نوم نه پېژاند. سیمه ایز ملایان، ملکان، پیران او روحانیون د هغوی لپاره د واک سرچینې وې او واکمنې یې ورباندې کوله. دا سرچینې پر خپل وار د خلکو پر وړاندې په روانو تېریو او ظلمونو کې له محلي حکامو سره شریکې وې.

د وخت په تېرېدو سره هر څه بدلون مومي او ناخبري هم تل تر تله پر خپل حال نه پاتې کېږي. ټولنیزې، سیاسي، اقتصادي او ملي ستونزې د حل غوښتونکې وې. پاچا د فیوډالي واک استازی و او د هغه په شتون کې په هېواد کې د بنسټیزو بدلونونو راتګ ناشونی و.

د اردو منسوبینو په بې وزلي او ناهیلۍ کې ژوند تېراوه. کله چې سردار محمد داود خان په پټ ډول (سري توګه) د اردو د منسوبینو پر جذب لاس پورې کړ. نو ما (لیکوال) هم د ټولنیز عدالت د رامنځته کېدنې په خاطر خطر ته غاړه کېښوده او په ډېره مینه مې په روان بهیر کې ونډه واخیسته. سردار محمد داود د واک د تر لاسه کولو موخه د دیموکراتیک نظام ټینګول ګڼل او د ټولنیز عدالت د رامنځته کولو ژمنې یې درلودلې.



## دویم څپرکی

### په افغانستان کې د جمهوري نظام ټینګښت

د ۱۳۵۲ لمریز کال د چنګاښ په شپږویشتمه نېټه چې د ۱۹۷۳ (ز) کال د جولای د میاشتې له اولسمې نېټې سره برابره وه، سهار اووه بجې او شل دقیقې له کابل راډیو څخه د محمد داود وینا خپره شوه. په وینا کې خلکو ته د پاچاهي نظام د نسکورېدو او د جمهوري نظام د ټینګښت زیری ورکړل شو او دغه بدلون ته یې انقلاب ووایه. د انقلاب د مشر په وینا کې د خلکو د بشپړو حقوقو د خوندیتوب، ولسواکۍ او د ملي واکمنۍ د ټینګښت ژمنې وې. شاهي رژیم یو فاسد رژیم او د محمد ظاهر د واکمنۍ وروستۍ لسیزه چې د دیموکراسۍ لسیزه نومېده «قلابي دیموکراسي» بلل شوې وه. په وینا کې په هېواد کې د معقولې دیموکراسۍ پر ټینګښت ټینګار شوی و.

محمد داود په هېواد کې د هر اړخیزو بدلونونو او سمونونو د را وستلو په اړتیا ټینګار وکړ او د هغو پلي کول یې د جمهوري نظام له دندو څخه وګڼل. د هېواد بهرنۍ سیاست یې د ناپېیلتوب او د ملګرو ملتونو منشور ته د وفادارۍ او د نړۍ له هېوادونو سره د دوستانه اړیکو دټینګولو پر بنسټ اعلان کړ او ویې ویل چې «پاکستان یوازینی هېواد دی چې د پښتونستان پر مسئلې ورسره سیاسي اختلاف لرو چې تر اوسه پورې مو د هغه په حل کې بری نه دی ترلاسه کړی». (انیس ورځپاڼه کابل ۱۸ جولای ۱۹۷۳ ز لومړی مخ).

په افغانستان کې د نظام بدلون د زبرځواکونو پام ځانته راوګرځاوه، ځکه چې نوي رژیم په مشرتابه کې محمد داود چې له شوروي اتحاد سره د افغانستان د هر اړخیزه اړیکو نوښتګر ګڼل کېده ولاړ و. له بلې خوا د جمهوري نظام اعلان شوي تګلارې چې د هېواد پرمختګ ته یې لار هواروله د واشنګټن او د هغه د سیمه ایزو متحدینو او په ځانګړي توګه د دوو ګاونډیو ایران او پاکستان له ګټو سره ټکر کاوه. د نوي دولت په مشرتابه کې د محمد داود را څرګندېدل په لوېدیځ کې اندېښنې پیدا کړې چې افغانستان د شوروي اتحاد په سپوږمکۍ اوړي. هغوی خپلې اندېښنې د لاندینیو لاملونو پر بنسټ حقې ګڼلې:

**الف-** محمد داود ته یې د کیڼ اړخي ګومان کاوه، ځکه چې هغه د صدارت په دوره کې له شوروي اتحاد سره د اقتصادي او پوځي مرستو تړون لاسلیک کړی و. که څه هم افغان حکومت لومړی له واشنګټن نه د پوځي مرستو غوښتنه کړې وه، خو منفي ځواب یې ترلاسه کړی و.

**ب-** د نظام په بدلون کې د کیڼ اړخو افسرانو د پام وړ ګډون او د جمهوري دولت په کابینه کې د پرچمیانو شتون په محمد داود باندې هم د کمونیست او د شوروي د ګوډاګي ټاپه ووهله.

**ج-** محمد داود په سلطنتي کورنۍ او افغان سیاستوالو کې د پښتنو او بلوڅو د داعیې رښتینی پلوی ګڼل کېده چې د ده د صدارت په موده کې په دې مسله له اسلام آباد سره د یو نیم کال لپاره د کابل ډیپلوماتیکې اړیکې وشلېدلې. پاکستان د کراچۍ - تورخم ترانزیتي لار د افغان سوداګرو پر مخ وتړله چې بیا شوروي اتحاد افغانستان ته اړینې ترانزیتي آسانتیاوې برابرې کړې. محمد داود واک ته له رسېدو سره سم پخپله لومړی وینا کې د افغانستان او پاکستان تر منځ په اړیکو کې د پښتونستان د ستونزې یادونه وکړه چې دا دریځ یې د اسلام آباد د اندېښنو سبب شو.

**د-** په افغانستان کې د سلطنتي رژیم ړنګېدل او د جمهوري نظام ټینګښت د ایران شاهنشاهي دولت اندېښمن کړ چې د افغانستان د پاچاهي نظام بدلون ښایي پر ایران هم اغیز ولري او هلته د نظام د نسکورولو هڅې پیاوړې کړي. د جمهوري دولت د ټینګښت په درشل کې له ایران سره د هلمند د

اوبو د وېش تړون لاسلیک شوی و او ایراني لوري اندېښنه لرله چې نوی نظام به له دغه تړون سره مخالفت وښيي.

ف- افغانستان په سیمه کې یو وروسته پاتي هېواد و چې د ګاونډیو او په تېره د پاکستان او ایران د صادراتي توکو لپاره یو ښه استهلاکي مارکېټ ګڼل کېده. نو دغو هېوادونو اندېښنه لرله که د افغانستان جمهوري دولت خپلې ژمنې عملي او افغانستان د خپل ځان د بسیا کېدو په لور ګامونه پورته کړي دوی به دا مارکېټ له لاسه ورکړي.

پورتني لاملونه د دې سبب شول چې واشنګټن، د هغه ستراتیژیک متحدین او سیمه ایز انډیوالان د افغانستان په کورنیو چارو کې لاسوهنې پیل کړي. پاکستان د اورپکو په روزلو او افغانستان ته د هغو په رالېږلو لاس پورې کړ چې د ورانکاره عملیاتو په تر سره کولو سره د نوي نظام لپاره ستونزې جوړې کړي او د ریفورمونو خنډ شي.

مخکې یادونه وشوه هغه وخت چې محمد ظاهرشاه پر هېواد واکمن وو، د هغه په واکمني کې خلکو په سوله او امن کې ژوند کاوه خو د خلکو د ژوند کچه ډېره ټيټه وه. وزګاري، بېوزلي او اداري فساد د ټولنې له ځانګړتیاوو څخه شمېرل کېدل. ولس د تغیر او بدلون غوښتونکی و، محمد داود چې هغه مهال د حکومت په سر کې و د ۱۹٦۲ ز کال د جون په نهه ویشتمه یې په یو لیک کې د پاچا دارالتحریر ته یو وړاندیز وکړ چې په هغه کې د مشروطه پاچاهۍ، پارلماني دیموکراسۍ او یو ګوندي حکومت رامنځته کول غوښتل شوي وو. پاچا د وړاندیز ځواب ورنکړ. څه موده وروسته هغه د دویم ځل لپاره بیا خپلې غوښتنې پاچا ته وړاندي کړې خو بیا هم ځواب ورنکړل شو. په پای کې محمد داود د یاد کال د مارچ په لومړۍ نېټه خپله استعفی پاچا ته وړاندي کړه چې په لاندې جملو پیل شوي وه: «اعلیحضرتا! مملکت او خلکو ته په صداقت سره د خدمت کولو پرته بل سپېځلی شی نشته او که د یوه انسان لپاره ژوند ارزښت ولري بیا هم د هغه ارزښت په همدې کې دی او بس». د ځینو سیاسي شنونکو له انده محمد داود غوښتل چې پاچا یوازې د دولت د تشریفاتي رئیس رول ولري. له دې وړاندیزونو څخه د هغه موخه دا وه چې هغه د لنډې مودې لپاره له دې ډګر څخه لرې شي او وروسته د یوه سیاسي ګوند د مشر

په توګه د هېواد د چارو لاربښوونه وکړي. پاچا د محمد داود استعفی ومنله او د نوي اساسي قانون د جوړېدو پرېکړه یې وکړه. دغه قانون د لویې جرګې له لوري ومنل شو او پاچا هغه لاسلیک کړ چې له مخې یې د سلطنتي کورنۍ واکونه لږ شول. پدې مانا چې مطلقه پاچاهي په مشروطه سلطنت واوښته. د نوي اساسی قانون د څلور ویشتمې مادې له مخې چې هغه په سیاسي کړیو کې د داود خان د مادې په نامه مشهوره شوه د سلطنتي کورنۍ د غړو لپاره د سیاسي فعالیتونو اجازه نه وه او د دې کورنۍ غړو د ژوند تر پایه د پاچا د کورنۍ حیثیت ساته. محمد داود د پاچا د تره زوی او د سلطنتي کورنۍ غړی و. محمد حسن کاکړ په خپل (د سرطان کودتا، د افغانستان د اوږدې بې ثباتۍ پیلامه) نومي کتاب په اوومه پاڼه کې د یوه کس د وینا پر اساس چې نه غواړي نوم یې واخیستل شي او د پاچایي کورنۍ غړی یې له نږدې پېژندل لیکي چې محمد داود له پاچا سره خپل تړاو د «طوق لعنت» یا د «لعنت کړی» ګڼله.

د یادولو وړ ده چې محمد داود په خپل لیک کې پاچا ته دا هم لیکلي وو چې «د هېواد دا ډول اداره او د کورنۍ دا ډول چاپېریال، نور زما له پاره د زغم وړ نه دي». حسن کاکړ په یاد کتاب کې لیکي چې په اساسي قانون کې د مخکې یادې ۲۴ مادې له مخې محمد داود ته د سیاسي فعالیت امکانات له منځه ولاړل او هغه باوري شو چې د هغه خلاف په دولت کې دسیسې کیږي، نو د سلطنتي نظام دښمن شو.

پاچا د نوي اساسي قانون پر بنسټ ډاکټر محمد یوسف ولسي جرګې ته د لومړي وزیر په توګه ور وپېژاند، ولسي جرګې د هغه کابینې ته د باور رایه ورکړه او حکومت یې په کار پیل وکړ. د ډاکټر محمد یوسف حکومت او تر هغه وروسته نورو حکومتونو ونشوای کړای چې د قانون له مخې له ټاکل شوي وخت سره سم د حکومت چارې پر مخ یوسي او یو پر بل پسې ړنګ شول. پدی لس کلنه دوره کې چې هغې ته د دموکراسۍ دوره ویل کیږی د چنګاښ تر انقلاب پورې پنځه حکومتونه ړنګ شول. هغه مهال په هېواد کې د کړکېچ کچه لوړه وه. له دې څخه جوتیږي چې د محمد یوسف دویم ځل حکومت یوازې څلور ورځې دوام وکړ او ړنګ شو. شنونکي عقیده څرګندوي چې د حکومتونو د ړنګېدو او اغېزمنتوب سرچینه

پاچا و او پاچا نه غوښتل د اساسي قانون د حکم له مخې له پاچاهي کورنۍ بهر صدر اعظمان ملي شخصیتونه شي.

له بله پلوه د پاچا په کورنۍ کې تربګنۍ او د واک پر سر سیالۍ ټولو ته جوتې شوي وې چې محمد داود او د هغه ورور محمد نعیم (د پاچا د تره زامن او د خویندو مېړونه) په یوه لوري کې او پخپله پاچا، تره یې شاولي خان او د شاولي خان زوی سردار عبدالولي (د پاچا زوم) د اختلاف بل لوري ته درېدلي وو. په واکمنه سلطنتي کورنۍ کې دا ډول کړکېچ په دولتي چارو باندې منفي اغېز درلود او په لوی لاس یې د دولت په چارو کې خنډونه پیدا کول. د پاچاهي کورنۍ په داخلي اختلاف کې د نورو په پرتله د سردار محمد داود او سردار عبدالولي نومونه ډېر یادېدل. هغوی د خپل نفوذ له امله په دولت او ټولنه کې د ځواکمنو سیاستوالو، جنرالانو او افسرانو څخه چې له دربار سره یې اړیکې درلودې پخپله ګټه استفاده کوله. دغو سیاستوالو بیا د دوی تر وزر لاندې سیاسي فعالیتونه کول، آن تر دې چې محمد داود او عبدالولي دواړو خپلو پلویانو له لارې په پارلمان، حکومت او د دولتي واک په سیمه ایزو ادارو کې بې نظمیو ته لمن وهله.

د سلطنتي کورنۍ دننه واک غوښتونکو حریفانو خپله زیاته پاملرنه ملي شورا ته ګرځولي وه او هغه وکیلان چې شخصي ګټې یې له ملي او دولتي ګټو څخه لوړې ګڼلې د سلطنتي کورنۍ د یادو ځواکمنو غړو سره په همیشني تړاو کې وو. د حسن کاکړ د لیکنې له مخې د پارلمان یو شمېر غړي چې سهار به د کار د پیل لپاره له کوره ووتل نو لومړی به یې د پاچاهي کورنۍ له یادو دوو ځواکمنو څېرو څخه هدایت تر لاسه کاوه او بیا به د کار ځای ته تلل. په دې توګه د شورا چارې د سلطنتي کورنۍ دوه زورمندانو له هرج او مرج سره مخامخولې.

د چنګابښ د کودتا په درشل کې د سلطنتي کورنۍ د غړو لخوا د حکومت په چارو کې لاسوهنه او سبوتاژ خورا زیات شوی و. د پاچا د واکمنۍ د وروستي لومړی وزیر، موسی شفیق په کابینه کې د اطلاعاتو او کلتور وزیر صباح الدین کشککي لیکي: «د سلطنتي کورنۍ د غړو له لوری د موسی شفیق د حکومت په چارو کې لاسوهنه د مملکت په کارونو کې یو اصلی خنډ او اخلال ګرځېدلی و». د سلطنتي کورنۍ دا

ډول چلند ښيي چې هغوی د دې پر ځای چې په ټولنه کې د خپلې کورنۍ د اعتبار د لوړولو او د دولت د چارو د ښې سمبالتيا په خاطر هلې ځلې وکړي د حکومتونو لپاره يې خنډونه او ستونزې جوړولې او خپلې ريښې يې پخپله کښلې. سر بېره پر دې د تېرې پېړۍ د اوبايمو کلونو په درشل او پيل کې پرله پسې وچکاليو او په ژمي کې خورا زياتو يخنيو او سړو د سياسي کړکېچ تر څنګ ټولنيز-اقتصادي کړکېچ هم رامنځته کړ چې پر (تاجداره ديموکراسي) باندې يې د خلکو او په تېره بيا د روڼ اندو باور ته سخت زيان ورساوه. د وخت تحول غوښتونکو کېڼ اړخو ځواکونو د سياسي واک د تر لاسه کولو لپاره خپل فعاليتونه پياوړي کړل. د هغوی پر وړاندې ښي اړخو بنسټپالو ډلو سخت غبرګون وښود او ډګر ته راووتل. په دې توګه په وروسته پاتې افغان ټولنه کې چې د سياسي مبارزې تجربه يې نلرله دوو مخالفو خوځښتونو سياسي مبارزه پيل کړه او په تعليمي مؤسسو کې يې پياوړې زړې کېښودل. د ۱۹۶۴ ز کال د اساسي قانون په رڼا کې ګوندونو او غونډو جوړولو ته اجازه ورکړل شوې وه، خو ټولواک د ګوندونو قانون لاسليک نکړ. په يوه هېواد کې چې د قانون له مخې يې سياسي سيستم پر پارلماني بنسټ ولاړ مشروطه پاچاهي وي، خو د ګوندونو قانون موجود نه وي، نو د تيوري او عمل تر منځ ځرګند تضاد په اړينه توګه د انارشۍ او داسې کړکېچونو لامل ګرځي چې د هواري لپاره يې د لارې موندل ستونزمن وي. په پارلماني سيستم کې د ګوندونو د نه شتون په حالت کې په پارلمان کې د ټاکل شوو استازو غوښتنې او ليد د هغوی د مؤکلينو په سيمه ايزو اړتياوو څرخي، نه پر هغو هر اړخيزو ټولنيزو او اقتصادي طرحو چې د ګوندونو کړنلارې يې وړاندې کوي. په پارلمان کې د ګوندونو تشه پارلمان د بې مفهومه بحثونو او مشاجرو پر مرکز اړوي.

د تاجدارې دموکراسۍ په دوره کې چې حکومتونه په پرله پسې توګه ړنګېدل يو عامل يې دا هم و چې حکومتونو د کوم ګوند يا ايتلاف ملاتړ نه درلود. د حکومت مشر اړ کېده چې په شورا کې د ځواکمنو څېرو يا ډلو تر اغېز لاندې راشي. که دا څېرې او ډلې به نه توانېدلې چې حکومت تر خپل آغيز لاندې راولي او غوښتنو ته يې غاړه کېږدي، نو بيا يې د حکومت د ړنګولو هڅې پيلولې. په داسې شرايطو کې د حکومت مشر اړ کېده چې پاچا او يا د سلطنتي کورنۍ ځواکمنو غړو ته مخه کړي او د هغو تر سيوري لاندې حکومت وکړي. سربېره پر دې حکومتونه د کينو او ښيو

سازمانونو د پرلپسې مخالفت سره مخامخ و او د لیبراله کړیو نه شتون چې د رژیم په ملاتړ کې ودریږي دې ته لاره هواروله چې حکومتونه یو په بل پسې ړنګ شي.

له بلې خوا د اوبایمو کلونو وچکالي لامل شوه چې د بادغیس، غور او نورو وچکالۍ ځپلو سیمو بې وزله وګړي نورو سیمو ته کډه شي او آن تر کابله را ورسیږي. حکومت دومره امکانات نلرل چې د دې اړو خلکو لاس نیوی وکړي او هغه مرستې چې نړیوالو ورکړي وې د واکمنې بیروکراسۍ او اداري فساد په شتون کې په خپل وخت خلکو ته ورسوي. وچکالۍ ځپلو د لوږي له ستونزو او حتمي مرګ څخه د خپلو اولادونو د ژغورنې لپاره د هغوی خرڅلاو ته مخه کړه. په ښارونو کې خلکو د حکومت ضد لاریونونه پیل کړل او ویل کېدل چې د افغانستان په لویدیځ کې ملایانو د لمانځه تر ادا وروسته د پاچا د نسکورېدو لپاره دعاوې کولې.

د چنګابښ د کودتا په درشل کې هېواد د یوه بنسټیز بدلون لپاره چمتو و. دا ځکه چې د خلکو غوڅ اکثریت په فقر او بې وزلۍ کې ژوند کاوه او له ټولنیزو خدمتونو بې برخې و. په پرمختللو بشري ټولنو کې د خلکو د ژوند کچه د ارقامو او احصایو په وړاندي کولو سره تثبیتیږي. له بده مرغه افغانستان له احصایوي ارقامو بې برخې دی. زه غواړم د چنګابښ د کودتا په درشل کې افغان ولس ته د روغتیایي خدمتونو د وړاندي کولو او هم په خورا مهمه مساله چې د مور او ماشوم روغتیایي څارنه او درملنه ده، رڼا واچوم. بیا به لوستونکې قضاوت وکړي چې افغان ولس د شلمې پیړۍ په دویمه نیمایي کې په کومو شرایطو کې ژوند کاوه. د یوه زراعتي هېواد په توګه د افغانستان ډېری وګړو په کلیو کې ژوند کاوه. هغه مهال په ټول هېواد کې یوې داسې ولسوالۍ شتون نه درلود چې هلته دې روغتیایي مرکز موجود وي. آن چې په ډېرو ولایتونو کې د روغتونونو څرک نه لګېده. امیدوارو ښځو په تولیز ډول په خپلو کورونو کې د ډاکټر او قابلې له شتون پرته ولادت کاوه. که چیرې یوه امیدواره ښځه په یوه لیري پراته ولایت، د بېلګې په توګه په ارزګان کې د ماشوم د زېږد پر مهال له روغتیایي ستونزې سره مخامخیدله، باید کندهار ته لیږدول و. په داسې یوه حالت کې ناروغه ښځه یا د هغې ماشوم یا دواړه له منځه تلل. د هېواد په زیاتره ولایتونو او ټولو ولسوالیو کې د روغتیایي بنسټونو او ډاکټرانو د

نشتوالی له امله ولادتونه د زړو ښځو له خوا تر سره کېدل. له زېږېدنې وروسته که به مور یا ماشوم ناروغه شول د هغوی درملنه به همدې ښځو کوله او له ملایانو څخه به یې تعویذونه او بندونه تر لاسه کول. زیارتونو ته به هم د بندونو د حصول په خاطر ورتلل. او ناچارو ژوندیو انسانانو له مړو نه د مرستې تمه کوله. زیاتره داسې پیښېدل چې نهه میاشتې به په خپله ګېډه کې د ماشوم د ساتنې او د زېږون د درد له زغمنې وروسته مور له بل ژور درد سره مخامخ شوه. زېږېدلي ماشوم به ځان حق ته وسپاره او بوری مور به یې د هغه پر مرګ اوښکې تویولې. د کلي خلکو به هغې ته داسې تسلي ورکوله: «مه ژاړه ګناه کاره کېږې، خدای درکړی و بیرته یې در څخه واخیست». د روغتیایي خدمتونو د نه شتون له کبله به ډېری میندو او ماشومانو ژوند له لاسه ورکاوه او ځینې ماشومان به معلول او معیوب زیږېدل چې هغه بیا د کورنی او ټولنې لپاره یوه بله ستونزه وه.

برسېره پر دې، له دوو ګاونډیو (پاکستان او ایران) سره سرحدي اختلافونو او د افغانستان په کورنیو چارو کې د هغوی لاسوهنې هم د هېواد په پرمختګ او د خلکو په ژوند اغېز درلود. د ګاونډیو له لوري د افغانستان په کورنیو چارو کې لاسوهنې د فشار د یوې وسیلې په توګه تر سره کېدلې تر څو افغان لوری د پولو پر سر اختلافات وړاندې نه کړي. ایران له افغانستان سره د هلمند د اوبو د وېش پر سر اختلاف درلود چې دا ستونزه د بریتانیایي ښکېلاک ګرو له تګلارو سره تړاو لري. د اتلسمې پیړۍ په دویمه نیمایي کې فارس زموږ په هېواد یرغل وکړ او سیستان یې ونیو. هغه مهال د سیمې د هېوادونو تر منځ د اختلافاتو په اړه وروستۍ خبره انګریزانو کوله او د فارس او افغانستان تر منځ د سولې د ټینګښدو په موخه یې د جنرال ګوډ سمیت په مشرۍ یو پلاوی وګماره او د فارس پر ګټه یې پرېکړه وکړه. د وخت افغان مشر امیر شیرعلی خان د نوموړي پلاوي پرېکړه ونه منله او ستونزه هماغسې پر ځای پاتې شوه. په ۱۹۰۲ ز کال کې انګریزانو یو ځل بیا د دواړو هېوادونو تر منځ د ستونزې د حل لپاره د ماکماهن په مشرۍ یو بل پلاوی وګوماره. یاد پلاوي د هلمند د اوبو دوې برخې افغانستان او یوه برخه یې د فارس (اوسمهالي ایران) لوري ته وټاکله، خو په موافقه کې د سیستان په هکله هیڅ نه و راغلي. امیر شیرعلي خان چمتو نه شو چې موافقه لاسلیک کړي او د اختلاف وړ ستونزې هماغسې

لاینحل پاتي شوي، ترڅو د محمد ظاهر شاه د واکمنۍ په مهال په ۱۹۷۳ ز کال کې لومړي وزیر موسی شفیق له ایران سره د هلمند د اوبو د وېش موافقه لاسلیک کړه. د وخت تحول غوښتونکي خوځښت له تړون سره مخالفت څرګند کړ او د هېواد په ښارونو کې یې لاریونونه او مظاهرې وکړې.

هغه مهال چارواکو غوښتل چې له پاکستان او ایران سره د اختلاف وړ مسالې حل کړي او له دغو هېوادونو سره د دوستانه اړیکو د ټینګولو له لارې له شوروي اتحاد سره پر اړیکو له سره غور وکړي. د وخت د چارواکو له انده «د سره سیلاب د مخنیوي لپاره په لومړي ګام کې د دوو مسلمانو ګاونډیو هېوادونو همکاري او له هغوی سره دوستانه مناسبات اړین و او په ځانګړي توګه ایران په راتلونکي کې له افغانستان سره ډېرې اقتصادي مرستې کولی شي». خو د سلطنت له سقوط څخه وروسته پېښو وښودل چې نه یوازې د شمال له لوري هېواد ته د سره سیلاب ګواښونه وو، بلکې له ختیځو او لوېدیځو خواوو څخه د ډېرو زیاتو خطرناکو خړو سېلابونو ګواښونو شتون درلود چې دغو دواړو سېلابونو افغانستان وران او په کنډواله واړاوه.

له پاکستان سره د افغانستان سرحدي ستونزه هم د انګریزي ښکېلاک د افغان ضد پالیسیو میراث دی. انګریزانو د هند له نیمې وچې څخه د ځواکونو د ایستنې په وخت کې د پاکستان په نامه د مصنوعي هېواد د زېږد پرېکړه وکړه چې په سیمه کې د هغوی ګټې وساتي. انګرېزي ښکېلاکګرو د پاکستان په نامه نوي زېږولي هېواد ته د افغانستان هغه خاوره ورکړه چې په زور یې ترې جلا کړې وه. دا خاوره د ډیورنډ په نامه کرښې د افغانستان له بدنه بېله کړې ده او د یوه تاریخي هېواد بدن یې پر ښکېلاکي خونړۍ توره ټوټې کړی دی. انګریزانو پاکستان ته د ښکېلاکي میراث په ورکړې سره افغانستان له سمندري لارې بې برخې او اړ کړی یې دی چې د خپلو صادراتي او وارداتي توکو په لېږد رالېږد کې د پاکستان فشارونه وزغمي. پاکستان د خپل زېږد له ورځې راهیسې له یوې خوا پښتانه او بلوڅ له خپلو انساني حقونو او په تېره بیا د هغوی ماشومان پر خپلو ژبو له زده کړې محروم کړي او له بلې خوا یې د افغانستان د سوداګرو لپاره تل ترانزیتي ستونزې رامنځته کړې دي. دا رنګه ستونزې د افغانستان پر اقتصاد او ټولنیز ژوند منفي اغېزې لري.

په ۱۹۷۳ ز کال کې حالاتو کړکېچنه بڼه غوره کړې وه او د دوبي په پيل کې آوازې خپرې وې چې ظاهرشاه پارلمان ړنګوي او د يوه ناڅرګند وخت لپاره نوي پارلماني ټاکنې ځنډوي. داسې برېښېدل چې يو بنسټيز بدلون پېښېدونکی دی. د مخه د سلطنتي کورنۍ د دوو ځواکمنو څېرو، هر يوه سردار محمد داود او سردار عبدالولي تر منځ د سياليو يادونه وشوه. په دغو دواړو سربېره، محمد هاشم ميوندوال هغه پېژندل شوي سياسي څېره وه چې د هېواد په سياسي کړيو کې يې اغيز د پام وړ وو. هغه منظمه سياسي مبارزه او د يوه ګوند مشري کوله. ميوندوال په افغانستان کې د لوېديځ په څېر ديموکراتيک پارلماني نظام غوښت او په هېواد کې د شوروي اتحاد له آيډيالوژيک او فرهنګي نفوذ څخه خورا انديښمن وو. هغه د داسې يوه نظام د ټينګښت لپاره مبارزه کوله چې د اسلاميت، افغانيت، ولسواکۍ او سوسياليزم په محور وڅرخيږي. محمد داود له خپلو سيالانو څخه مخکې شو او له هغه کړکېچن حالت څخه يې ګټه پورته کړه چې د پاچا په وسيله د پارلمان ړنګېدو رامنځته کړی و. هغه د يو شمېر ټيټ رتبه پوځيانو پر مټ د پوځي کودتا له لارې سلطنت ته د پای ټکی کېښود. سردار داود تر کودتا وروسته جمهوريت اعلان او سردار ولي يې واک ته د رسېدو په شپه زنداني کړ. ميوندوال هم لږې ورځې وروسته د جمهوري رژيم پر وړاندې د کودتا په تور بندي شو. او په زندان کې په مرموزه توګه ووژل شو. خو، سردار ولي څه موده وروسته له بنده خلاص شو او ايټاليا ته د تګ اجازه ورکړل شوه. پخواني پاچا هم له خپلې کورنۍ او د سردار ولي له ميرمنې سره چې لور يې وه په ايټاليا کې ژوند کاوه.

کودتا له کوم مخالفت پرته او له لږو تلفاتو سره چې له ۱ - ۹ تنو پورې ګڼل کېدل بري ته ورسېده. د دې کودتا ځانګړتيا په لږو تلفاتو سربېره په دې کې هم وه چې په بريا کې يې ټاکونکی رول د شاهي ارګ د ساتنې ځواک او په ځانګړې توګه د ټانک د ټولۍ قوماندان حبيب الله زرمتي لوبولی و. د ټانک ټولس د حبيب الله زرمتي تر قوماندې لاندې، له ارګ څخه په وتلو سره د مرکز نورې عسکري قطعې کلابندې کړې چې د پاڅون کوونکو خلاف وه نه درېږي.

دلته اړينه بولم چې د حبيب الله شهيد په هکله يو څو ټکي بيان کړم:

شهید حبیب الله زرمتي په داسې وخت کې د افغانستان په اردو کې خدمت کاوه چې د وطن شریف خلک د بېوزلی، بېسوادی، لوږې او ناروغی له امله رنځېدل. ځوان حبیب الله د دا رنګه شرایطو تر اغیز لاندې په وطن کې د نظام د بدلون له غوښتونکو سره همغږی شو او هوډ یې وکړ چې په بدلون کې فعاله ونډه واخلي. هماغه وو چې د سردار محمد داود تر مشری او لار ښوونې لاندې یې له نورو په وطن مینو افسرانو او سر تېرو سره یو ځای د ۱۳۵۲ کال د چنګاښ په ۲۶ نېټه، په ډېره مېړانه او زړورتیا د شاهي ګارد له منځه د ټانک ټولی د پاچاهي نظام په ککره د ګوزار لپاره چمتو کړ او پر خپل وخت یې په اتلوالی سره برید وکړ. پاچاهي نظام نسکور او جمهوري نظام د هېواد په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره اعلان شو. پخپله حبیب الله زرمتی د دندې د تر سره کولو په وخت کې شهید شو. اروا دي یې ښاده وي.

جمهوري نظام د پوځیانو د یوې کوچنی ډلې پر مټ ټینګ او پوځ د ولس په شان د نوي نظام په ملاتړ کې ودرېد. ځکه چې پوځ د ټولنې د یوې برخې په توګه د سلطنت او واکمن حالت څخه ناخوښه و او دا هیله یې لرله چې نوی نظام به د وسله وال پوځ په ژوند کې مثبت بدلون راولي. د هېواد نوي واکمني ته په کار وه چې د وسله وال پوځ د منسوبانو او په ځانګړي توګه د ټیټ رتبه افسرانو، وړو ضابطانو او سر تېرو د ژوند د ښه کېدو په برخه کې یې ګامونه اخیستي وای او په اردو کې یې د بې عدالتیو تغر ټول کړی وای.

نوي واکمنی واک ته په رسېدو سره په ظاهري بدلونونو لاس پورې کړ، د ساري په توګه د بیرغ او ملي سرود بدلون، د شاهي ارګ او شاهي اردو نوم په جمهوري ارګ او جمهوري اردو اړول او داسې نور، چې د خلکو او وسله وال پوځ په ژوند یې کوم اغېز نه درلود. هماغه حالت چې په شاهي اردو کې برلاسی وو، په جمهوري اردو کې یې هم دوام وموند. یوازې په القابو او نومونو کې بدلون راغی چې د یوه پوځي د ستونزو او نا خوښی کچه یې نه راټیټوله.

د اردو په ساحه کې د جمهور رئیس سردار محمد داود خان لاندینیو تېروتنو د وسلوالو ځواکونو د پوځي چمتووالي (محاربوي احضاراتو) کچه ټیټوله:

۱ - په لوړو پوځي دندو د هغو ټيټ رتبه افسرانو ګمارل چې په پاځون کې يې ګډون کړی و. لوړ رتبه افسرانو ته د آمر په توګه د يوه داسې چا منل چې رتبه، تجربه او پوهه يې د هغوی په پرتله ټيټه او کمه وه، د زغم وړ نه و. دغه کار د وسلوالو ځواکونو د پوځي چمتووالي کچه راټيټوله. د چنګاښ «انقلاب» نوښتګر او مشر ته په کار و چې تر هر څه د مخه يې د امنيتي ارګانونو په مشرتابه کې ژمن او په کار پوه کدرونه ګمارلي وای. يوازې پوهو او وړ افسرانو کولای شول د اردو په قطعاتو او مؤسسو کې نيمګړتياوې له منځه يوسي. داود خان بايد د اردو د سمون او رغاوي په موخه اړين ګامونه اوچت کړي وای. د قوماندانۍ پر دندو د وړ کسانو ګومارنې د پوځ د چمتووالي کچه او مسلکي پوهه لوړوله او له نظام سره يې مينه را ژوندۍ کوله. همدارنګه پوځيانو په دې باور پيدا کاوه چې نوی رژيم د خلکو او پوځ د ژوند د ښه والي لپاره عملي ګامونه اوچتوي. په دغه صورت کې د امنيتي ځواک منسوبينو ځانونه مکلف ګڼل چې خپلې دندې او مسئوليتونه په ښه توګه تر سره او د احتمالي بغاوتونو هڅې له بېخه شنډې کړي. خو پدې لاره کې هيڅ عملي ګام اوچت نه شو. يو شمېر پوه او مجرب جنرالان او لوړ پوړي افسران په دې نامه چې پاچا ته وفادار او نا مطلوبه کسان دي ګوښه او زنداني شول او پر ځای يې رهبر ته وفاداره خو بې تجربې او فرصت غوښتونکي سياست بازان په دندو وګمارل شول.

۲ - بله خورا ستره تېروتنه دا وه چې په کودتا کې ګډونوالو پوځيانو ته دوه رتبې ترفيع او له کودتا سره مرسته کوونکو ته يوه رتبه ترفيع ورکړل شوه. دغه کار په پوځ کې د کودتايي او غير کودتايي په نامه ډلبندي او درز پيدا کړ. همدا رنګه ټولو وړو ضابطانو ته د دريم بريدمنۍ ترفيع ګاني ورکړل شوې چې په افسري کدرونو او حتی د پوځ د عالي مؤسسو په محصلانو يې ناوړه اغېز وکړ. د حربي پوهنتون محصلانو د ورته امتياز د لاسته راوړلو لپاره مظاهره وکړه، چې د دې مؤسسې په تاريخ کې لومړۍ مظاهره وه. دا لومړی ځل و چې د افغانستان په پوځ کې د ټاکلي قانوني مودې له تېرولو پرته افسران او واړه ظابطان په توپيري توګه پر فوق العاده ترفيعاتو ونازول

شول. یوه افسر او یا د افسرانو یوې ډلې ته د دغه شان فوق العاده ترفیعاتو ورکړې د قانون ماتولو، عسکري لوړې ته د شا گرځولو او د نظام خلاف دربېدلو ته لار هواروله. پوځیانو ولیدل چې د واکمن نظام خلاف د دربېدو له کبله د شان او شوکت، د لوړو رتبو او منصبونو خاوندان گرځي. دغه نامعقول کار پوځیانو ته په سیاسي فعالیتونو کې د بوختیا روحیه ورکوله او سیاسي کړیو او سیاستوالو کولای شول چې د واک تر لاسه کولو په موخه په پوځ کې سازمانونه جوړ کړي او ناقانونه گټه ترې واخلي. همدا لامل و چې د سلطنت له نسکورېدو وروسته کودتایي بازار تود شو او د سردار محمد داود د حکومت په دوران کې ډېرې کودتایي هڅې شنډې شوې. په ۱۹۷۹ ز کال کې چې شوروي اتحاد په افغانستان یرغل وکړ او ببرک کارمل یې د افغانستان سرواکمن کړ د فوق العاده ترفیعاتو بهیر بیا پیل شو. دا مهال د وسله وال پوځ د افسرانو د خوشحالولو او د هغوی په منځ کې د پرچم ډلې د پلویانو د زیاتولو په موخه لومړی ټولو افسرانو ته دوه دوه قدمه امتیاز ورکړ شو او ورپسې د فوق العاده ترفیعاتو لړۍ پیل شوه. د نجیب الله په واکمنۍ کې داسې افسران لږ نه و چې د شوروي اتحاد تر پوځي یرغل وروسته د لسو کلونو په موده کې له دویم بریدمنۍ څخه جنرالۍ ته رسېدلي وو.

د جهادي تنظیمونو لخوا خپلو وتلو جنگیالیو ته د جنرالۍ د رتبې ورکولو په اړه تبصره له دې امله اړینه نه بریښي چې د جهادي ډلو هر قوماندان جنرال نه، بلکې ډگر جنرال و.

۳- د چنگابش له کودتا وروسته د امنیتي ارگانونو په مشر تابه کې یوه څنډنه او تصفیه پیل شوه چې پر لوړو مقامونو باندې د پوهو او مجربو افسرانو پر ځای یوازې لاربشود ته وفاداره افسران گمارل کېدل. دا رنگه بې تجربې کسان د دې جوگه نه و چې د اردو او نورو امنیتي ارگانونو په ناوړه حالت کې مثبت بدلون راولي. په دغې لړۍ کې د غوره پوځي ځانگړتیااوو خاوندان ورو ورو له ډگره ایستل کېدل، ځکه چې د پوهو او مجربو افسرانو د شتون په صورت کې یوازې لاربشود ته د وفادارو نوو گومارل شویو بې تجربې

آمرانو او قوماندانانو ناوړتیا او نیمګړتیا بربنډېدله. پخپله د دفاع وزیر جنرال غلام حیدر رسولي د دا رنګه بې تجربې او ناپوهو افسرانو ډېره ښه بېلګه وه. له بلې خوا داسې انګېرنې هم وې چې له ایران سره د محمد داود له نږدېوالي وروسته هغه په تهران کې چارواکو لمسولی و چې یو شمېر هغه افسران له خپلو دندو لیري کړي چې د چنګاښ په کودتا کې یې ګډون کړی و . پر دغو افسرانو د کمونیست ټاپه وهل کېدله. زه (لیکوال)، چې د بګرام په هوایي ډګر کې مې د میدان د آمر په توګه دنده ترسره کوله، د کمونیست په نامه احتیاط ته ور کړل شوم. په داسې حال کې چې زه د هیڅ یو ګوند غړی نه وم. له یو څه وخته وروسته بیا جمهور رئیس ځانته ومنلم او داسې یې راته وویل: "مایوس نباشي این وطن از شما است به این وطن شما خدمت خواهید کرد». د محمد داود تر دغه ډاډ وروسته مې دوه کاله نور هم په احتیاط کې تېر کړل.

## د سردار محمد داود خان نورې تېروتنې او ستونزې

د نوي نظام په ټینګېدو سره چې د مطبوعاتو په آزادۍ بندیز ولګېد، ډېری خلکو فکر وکړ چې دا به یو لنډ مهالی اقدام وي. خلکو داسې ګڼله چې دا لنډ مهالی اقدام به د دې لپاره وي چې د نوي نظام مخالف تبلیغات وه نه شي او مخالفین د بیان له آزادۍ څخه سملاسي ناوړه ګټه پورته نکړي. د خلکو په اند سره دا بندیزونه ډېر ژر لیري کېدونکې وو او د خلکو مدني حقونو ته درناوی هرومرو رامنځته کېده. خو د وخت په تېرېدو سره عملي ګام پورته نه شو او په ټولنه کې د وینا پر آزادي بندیز همېشنی بڼه غوره کړه. د لاسبري اختناق په شرایطو کې د کودتایي هڅو پر تور د پاچا او سلطنت د پلویانو او د نظام د مخالفانو نیونې او وژنې هم پیل شوې. له کړو ژمنو څخه د سردار داود خان سرغړونو پر نظام باندې د خلکو او په ځانګړي ډول د روڼ اندو باور او اعتماد له منځه یووړ. د هېواد پر پېژاندي او ازمویلي سیاستوال محمد هاشم میوندوال باندې د کودتا لګېدلی تور د هیچا لپاره د منلو وړ نه و او دا یې له یو دیموکرات سیاسي سیال څخه د خلاصون لپاره د داود خان او د هغه د ملګرو دسیسه ګڼله. د کودتا د هڅې پر تور له محمد هاشم میوندوال سره دوه څلوېښت

تـه جـنرالان او افـسران، د شـورا پخـواني وکیـلان، سـوداګر او مـلي پانګـوال بندیـان شوي وو. دا پېښـه هغـه مهـال رامنځتـه شـوي وه چـې د ببرک کارمـل پـه مشرۍ پرچمي سـازمان د سردار محمـد داود خـان د کودتـا کلـک ملاتـړی و. پـه زنـدان کـې د محمـد هاشـم میونـدوال تـر وژل کېـدو وروسته کابـل رادیـو او دولتـي رسنیو خـبر خپـور کـړ چـې هغـه د نکټایـي پـه وسیله ځـان وژنـه کـړې وه. د دولت لخـوا د محمـد هاشـم میونـدوال د ځـان وژنـې ادعـا د داود خـان د کابینـې د غـړي (د فوایـد عامـې وزیـر) غـوث الدیـن فایـق د څرګندونـو لـه مخـې چـې میونـدوال یـې یـوه ورځ مخکـې لیدلـی و بـې بنسـټه او دروغ جوتیـږي. غـوث الدیـن فایـق لیکـي: «سبا تـه خـبر شـوم چـې میونـدوال مـړ شـوی دی. د مرجـع کارکوونکـو او مسـتنطقینو اوازې خپـرې کـړې چـې میونـد وال د نکټایـي پواسـطه وژل شـوی دی. زه حیـران شـوم چـې یـوه ورځ مخکـې مـې د تحقیـق لـه هیئـت سره د هغـه پوښـتنه وکـړه، دریـشي یـې نـه لرلـه پرتـوګ او کمیـس یـې اغوسـتي وو، څـه ډول یې د نکټایـي پواسـطه ځـان وژلـی دی؟». لـدې املـه واقعیـت تـه نـږدې ده چـې د میونـدوال پـه څېـر د یـوه ځواکمـن سیاسـتوال وژنـه پـه رژیـم کـې د هغـو کړیـو کار و چـې د خپلـو راتلونکـو پلانونـو د پلـي کولـو لپـاره یـې خپـل سیالان لـه ډګـره ایسـتل. د میونـدوال وژنـه د رژیـم پـر اعتبـار سـخت ګـوزار و. دا پېښـه لا پـه سیاسـي ټولنـو کـې د بحـث او اندېښـنې وړ موضـوع وه چـې پـه کابـل کـې اوازه شـوه چـې د زمـان خـان پـه ښـارګوټي کـې پـه څـو روایتونـو اوه او پـه یـوه روایـت پنځـه سـوه جسـدونه کشـف شـول...، دغـه مـړي لـه کفـن او اسلامي سـنتونو پرتـه ښـخ شـوي وو. د چارواکـو لـه کوښښـونو سره سره چـې دغه پېښـه خپـره نـه شي، هغـه خپـره شـوه. ویـل کېـدل چـې پـه نومـوړې ډلـه ییـز قبر کـې عقلـي ناروغـان ښـخ کـړای شـوي وو. لـه هغـه سره جوخـت پـه دولتـي ادارو کـې فسـاد او لـه سلطنتي رژیـم څخـه پـه میـراث پاتـي بـې روزګاري او بېوزلي چـې هیـڅ کمې پکـې رانغی د نظـام د تجریدېـدو بهیـر غښـتلی کـړ. د اساسـي قانـون د تصویـب لپـاره پـه جـوړه شـوې لویـه جرګـه کـې د یـوه داسـې اساسـي قانـون تصویب چـې سیاسـي آزادي پکـې محدودې وې او ګوندونـو تـه پکـې د فعالیـت اجـازه نـه وه، د خلکـو کرکـه راوپارولـه. همدارنګـه، پـه لویـه جرګـه کـې د بـل کـوم نومانـد لـه شـتون پرتـه د جمهـور رئیـس ټاکنـه لـه یـوې سیاسـي ننداړې پرتـه بـل څـه نـه وو. دغـې ټاکنـې نـه یـوازې د رژیـم اعتبـار تـه زیـان ورساوه، بلکـې د نظـام پـر مـشر او لاربـود بانـدې د بـې بـاورۍ کچـه هـم لـوړه شـوه.

د چنګاښ د ۲٦ نېټې له کودتا وروسته، واشنګټن، اسلام آباد او تهران يو له بله په همغږۍ کې وپتېيله چې د رژيم هغه مخالفې ډلې چې د مذهبي افراطيت پلويانې وې، بغاوتونو، کودتاګانو او ترهګريزو فعاليتونو ته وهڅوي او ملاتړ يې وکړي. دغه افراطي ډلې نه يوازې له دولت سره په دښمنۍ کې وې، بلکې د هېواد له ديموکراتو سياسي سازمانونو سره په څرګنده دښمنۍ کې يې د هغوی د غړو پر ترور او وژنه هم لاس پورې کاوه. په دې توګه په هېواد کې وضعيت کړکېچن او ترور او اختناق واکمن شو. تهران محمد داود تر فشار لاندې نيولی و چې شکمن کمونيستان له دندو څخه ليري کړي. د ايران جاسوسي سازمان (ساواک) د رژيم مخالفينو ته د امريکايي وسلو، ارتباطي وسيلو او تجهيزاتو او د غير پوځي مرستو برابرولو وسيله وه. دا مرستې د افغانستان په لوېديځ کې د ايران پولې ته په نږدې سيمو کې د ناراضه قبيلوي مشرانو له لارې او همدارنګه د پاکستان له لارې افراطي ډلو ته ورکول کېدلې. له پاکستان څخه د داود ناخوښي لدې امله لوړې کچې ته رسېدلي وه چې د دغه هېواد استخباراتو د پنجشېر په دره کې په پوځي اډو باندې د مخالفينو له بريدونو سره مرسته کوله او هغوی يې په اړينو وسلو سمبالول. همدارنګه داسې انګېرنې وې چې د ساواک، سي آی اې او آی اس آی استخباراتي ادارو د رژيم پر ضد په ځينو ناکامو کودتاګانو کې لاس درلود.

د وسله والو مخالفينو دولتي ضد فعاليتونو او د مسکو د متحد (پرچم) چلند محمد داود اړ کړ چې پر خپلو پاليسيو نوی نظر واچوي. داود په ځانګړي توګه يې غوښتل له ايران او پاکستان سره اختلافونه حل کړي او دولت له کيڼ اړخو څخه پاک کړي. دا ټول هغه څه وو چې لوېديځ او د هغه سيمه ايزو متحدينو غوښتل. دغه ډول چلند نه يوازې په هېواد کې له ټيکاو سره مرسته نه کوله، بلکې حالات يې نور هم توپاني او کړکيچن کول.

له پورته خوا څخه د اصلاحاتو د رامنځته کولو لپاره پياوړې دولتي ځواک اړين وي. په افغانستان کې پياوړې دولتي ځواک هيڅ وخت شتون نه درلود. افغانستان په بېلابېلو وختونو کې نه يوازې د قومي مشرانو، بلکې د عادي وګړو له مقاومت سره هم مخامخېده. د چنګاښ د ۲٦ نېټې تر کودتا وروسته، په هېواد کې د وګړو د ژوند د هوساينې د سطحې لا زياتې خرابتيا، د اقتصادي توپيرونو د له منځه وړلو پر وړاندې

د واکمنو کمزوري او د بېلابېلو ټولنيزو- سياسي ډلو لخوا د مبارزې سختوالي په هېواد کې د واک نه حل کېدونکی کړکیچ را پيدا کړ.

تيوريسنان وايي: «کله چې پورتني نور نشي کولی د پخوا په شان حکومت وکړي او لانديني نور نشي کولی خپلسري، نيستي او بې حقوقي وزغمي نو انقلابي وضع منځته راځي». متل دی: چې په تنګ يې کړې نو په جنګ يې کړې.

په ټولنه کې د خلکو نارضايتي وروستۍ درجې ته ورسېده. د هېواد په بېلابېلو سيمو کې د خلکو د اغتشاشونو او پاڅونونو پيدا کېدنې او په ټولنه کې د سياسي مبارزې سختوالي افغاني پوځ هم په لويه پيمانه سياسي بهير ته وکښاوه.

د ۱۳۵۲(ل) کال د چنګاښ د ۲٦ نېټې تر کودتا وروسته، سردار محمد داود د جمهوري دولت د رئيس په توګه، په يوه وينا کې چې سرليک يې «خطاب به مردم افغانستان» و، د خپل دولت کړنلاره څرګنده کړه. دا وينا د هېواد د راتلونکې اقتصادي - سياسي او ټولنيزې پرمختيا انځور و.

په دې وخت کې د نور محمد تره کي په مشرتابه د افغانستان د خلک ديموکراتيک ګوند، د هېواد د سياسي خوځښتونو په منځ کې تر ټولو فعال او مخکښ سياسي ځواک و. تر کودتا د مخه، د مشروطه پاچاهي په لس کلنه ديموکراسۍ کې پاچا د ګوندونو قانون نه و لاسليک کړی، نو ځکه دغه ګوند د احتياط په پام کې نيولو سره پټ او څرګند فعاليت کاوه. د چنګاښ تر کودتا وروسته د افغانستان د خلک ديموکراتيک ګوند د پوځ په منځ کې په سياسي کار پيل وکړ او په وسلوال پوځ کې يې هم اغېز تر ټولو زيات شو. د داود خان د «خطاب بمردم افغانستان» وينا له خپرېدنې وروسته نور محمد تره کی له دغې وينا او جمهوري نظام څخه د خلک ديموکراتيک ګوند ملاتړ اعلان کړ او په يوه اعلاميه کې يې له دولت سره د جبهې جوړولو وړانديز وکړ. داود خان د نور محمد تره کي وړانديز ونه مانه.

د نور محمد تره کي په مشرۍ د افغانستان د خلک ديموکراتيک ګوند خپل مستقل هويت وساته او د داود د رژيم له شديد اختناق سره سره يې د ټولو ملي او بين المللی غوره پېښو په اړه خپلې اعلاميې خپرولې. د دولت له خوا په خلقيانو او په ځانګړې توګه په تره کي باندې ورځ په ورځ فشار زياتېده. له ترور څخه نيولي تر

زندانه پورې یې زغمل او له دولتي ارګانونو څخه هره ورځ د خلقیانو شړل د عادي بهیر بڼه غوره کړې وه. په دا رنګه حالاتو کې د خلکو او د اردو د منسوبینو باور د افغانستان پر خلق دیموکراتیک ګوند باندې ورځ په ورځ زیاتېده.

سره لدې، نور محمد تره کي نظامي کمیټې ته هدایت ورکړ چې د داود خان په مشرتابه له دولت څخه کلکه دفاع وکړي او چاته اجازه ورنکړي چې رژیم نسکور کړي. د نور محمد تره کي په هدایت کې زیاته شوي وه چې که رژیم د نسکورېدو حالت ته ورسېد او کوم بل ځواک یې د دې لپاره د سقوط هڅه وکړه چې قدرت ورڅخه ونیسي، نو د افغانستان د خلق دیموکراتیک ګوند به دغه کار ته اجازه نه ورکوي او د قدرت واګې به پخپله په لاس کې اخلي. د نور محمد تره کي په هدایت کې دا هم ویل شوي وو چې، که د داود خان تر مشرۍ لاندې دولت پر خلق دیموکراتیک ګوند باندې برید وکړي او د ځینې اراده یې ولري، نو ګوند باید له ځان څخه دفاع وکړي.

ګوند د خپل لارښود له هدایت سره سم د مبارزې تېره څوکه په وسله وال پوځ کې د وطنپالو افسرانو او سرتېرو جلب او جذب ته واړوله. په وسله والو ځواکونو کې د ا. خ. د. ګ. اغېز ډېر زور شو. د جلب او جذب کچه یې پکې په ګړندیتوب سره لوړه شوه او په ضربتي قطعاتو کې یې د پام وړ وده وکړه. په ۱۳۵۵(ل) کال کې د وسله وال پوځ نظامي کمېټې نور محمد تره کي ته په لیکلي توګه رپوټ ورکړ چې د افغانستان د خلق دیموکراتیک ګوند د وسله وال پوځ سازمان کولای شي په ډېرو لږو تلفاتو سره سیاسي واک ترلاسه کړي. نور محمد تره کي د نظامي کمېټې رپوټ په شدت سره رد کړ. هغه هدایت ور کړ چې د افغانستان د خلق دیموکراتیک ګوند غواړي د دیموکراتیکو اصولو پر بنسټ یوازې د افغانستان د خلکو په ملاتړ سره واک ترلاسه کړي.

د ۱۳۵۷ (ل) کال په لومړیو ورځو کې محمد داود دې ته وهڅېد چې د خپل سیاسي اپوزیسون تر ټولو خطرناک خوځښت (د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند) ته سزا ورکړي. د محمد داود لخوا د افغانستان د خلق دیموکراتیک ګوند د مشرانو د نیولو امر وشو او هغوی یې بندیان کړل. د مشرانو تر بندیانولو وروسته هرو

مـرو د ګونـد د کدرونـو او غړو بندیانـول پـه پـام کـې وو. د افغانسـتان د خلقـو انقـلابي ګوند د نورمحمـد تـره کـي لـه هغـه هدایـت سره سم چـې د مخـه یـې یادونـه وشـوه د ځـان دفاع تـه چمتـو شـو. ګونـد وسـلوال پاڅون وکـړ او د محمـد داود حکومـت یـې د ۱۳۵۷ (ل) کال د ثـور د میاشـتې پـر ۷ نېټـه چـې د ۱۹۷۸ ز کال د اپرېـل د میاشـتې لـه ۲۷ سره برابـره وه، لـه پښـو وغورځـاوه او د هېـواد واک یـې ترلاسـه کـړ. نورمحمـد تـره کـي تـر دولتـي واک اخیسـتنې وروسـته لـه کورنیـو او بهرنیـو خبریالانـو سره پـه لومـړي مطبوعـاتي کنفرانـس کـې وویـل:

«کـه پـه دې ډول قـدرت اخیسـتل زمـوږ د ګونـد غوښـتنه وای، نـو دوه کالـه مخکـې مـو هـم دا کار کـولای شـو. دا رنګـه قـدرت نیـول، سردار داود زمـوږ پـر ګونـد تحمیـل کـړل.».

**اړینه بولم د نور محمد تره کی پر شخصیت لږه رڼا واچوم:**

## نور محمد تره کی د ثور له پاڅون څخه مخکې

نـور محمـد تـره کـی یـو سـیاسي او فرهنګـي شـخصیت و چـې پـه شـلمه پېـړۍ کـې د هېـواد د وتلـو او نامتـو شـخصیتونو پـه لیکـه کـې راځـي. هغـه د یـوې ټینګـې مسـتقلې ارادې خاونـد و . د هېـواد مـلي ګټـو او د خلکـو د پراخـو پرګنـو ارمانونـو تـه یـې پـه ریښـتیني توګـه ژوره وفـاداري درلودلـه. تـره کـي لـه هېـواد او خلکـو سره مینـه درلـوده او خپـل ژونـد یـې د هغـوي چوپـړ تـه وقـف کـړی و. پـه ځوانـۍ کـې یـې د خلکـو د پراخـو پرګنـو د ارمانونـو د تـر سره کولـو پـه خاطـر نـه سـتړې کېدونکـې مبـارزه پیـل کـړې وه او پـه دې مبـارزه کـې یـې ډېـرې بډایـې تجربـې لاسـته راوړې وې. برسـېره پـر دې یـو شـمېر ادبي اثـار او لنـډې کېسـې یـې ولیکلـې چـې پـه دې ترتیـب سره هغـه نـه یـوازې دا چـې د یـوه مـلي سـیاسي شـخصیت پـه توګـه را څرګنـد شـو، بلکـې د یـوه پیـاوړي ریالسـت لیکـوال پـه توګـه یـې پـه پښـتو ادبیاتـو کـې د ریالیـزم د سـبک بنسـټ هـم کېښـود. نـور محمـد تـره کـي خپلـه سـیاسي مفکـوره د خپلـو ادبي لیکنـو لـه لارې خپرولـه او لـه هماغـې ځوانـۍ څخـه یـې د هېـواد ځوربـدلي خلـک د سـیاسي مبـارزې ډګـر تـه وربلـل. نـور محمـد تـره کـي پـه کلیـوالي وروسـته پـاتي

او د بيعدالتۍ په چاپېريال کې زېږېدلی، لوی شوی او بلوغ ته رسېدلی دی. د چاپېريال ناخوالو د ده پر ژوند زيات اغيز کړی او ځورولی يې دی. همدا لامل دی چې هغه د پېښو په انځورولو کې ترخه او دردېدلي ژبه کاروي. د خپل چاپېريال له شرايطو سره سم هغه ځانته ځانګړی فکر او ارمان درلود چې د ډېرې ساده، رواني او له لفظي پېچلتيا خخه د آزادې ژبې په کارولو سره يې څرګنداوه. پيياوړي ليکوال شاه محمود حصين په «د شپو زړه کې د رڼا نښه» ليکنه کې د نور محمد تره کي د اثارو او په ځانګړي ډول د هغه د لنډو کيسو يوه ډېره پرځای علمي او ادبي ارزونه کړېده او ليکي:

«اروابنساد نور محمد تره کی د حقيقت لټونې، حقيقت موندنې، حقيقت څېړنې او په حقيقت بدلېدنې هغه روښانه بېلګه ده چې له رڼا او حقيقت پرته له هر څه څخه بې نيازه و. د هغه ژوند د انسان په ژوند کې د تيارو پر خلاف د رڼا او حقيقت د اوږدې مبارزې يوه وتلې نښه ده. هغه ته ژوند د انسان په نيکمرغۍ، لوړېدو، هوسباينه او خپلواکۍ کې د تعريف، بيان او پېژندنې وړ و. د اروابنساد نور محمد تره کي ليکنې، لنډې او منځنۍ کيسې، ناولونه او له بهرنيو اثارو څخه په زړه پورې ژباړنې او ټول قلمي کارونه چې يو نسل ګام په ګام د لوړېدو په لور خوځيږي، ټوله تومنه يې د انسان د نېکمرغۍ په لور د بدمرغيو پر خلاف د اوږدې جګړې يو دروند فصل دی. د هغه د ادبي کار اصلي سوژه، او کرکټر هغه انسان دی چې د ظلم، تېري، ناروا او محروميت درنې څپېړې يې خوړلي دي. اروابنساد نور محمد تره کی يو ليکوال او د خپل چاپېريال يو انځورګر دی. د هغه چاپېريال د ظلمونو، تېريو، تيارو، لوټ، دوکه ماريو، فرېب، غوړه ماليو، ناوړه دودونو او له حقيقت څخه توهم ته د ورلوېدو چاپېريال دی. دی د همدغه چاپېريال پر خلاف د حقيقت په اوږو د رڼا لور ته خوځيږي. دی په ښکاره ارام خو په زړه لګېدلی او قهرجن دی. دی د ډېرو اوچتو هنري او ادبي استعارو، کنايو، سمبولونو او هنري زړه راښکونکو انځورونو ډکې ليکنې لري. هنر يې خوښيږي خو هنر د هنر لپاره د ده موخو ته مرسته نه شي کولی. دی هغه څه وايي چې ويني يې، په هغه ژبه يې انځوروي چې د ده د چاپېريال خلک خبرې پرې کوي. کليوالي ژوند سخت او شډل دی، هلته له ناولتيا سره د سپېڅلتيا جګړه هم سخته

او درنه ده. د دغه چاپېریال ژبه هم درنه، شډله خو له ریا پاکه ده». (۳، ۸ مخ)

سره له دې چې د نور محمد تره کي اثار په ډېره ساده او روانه ژبه لیکل شوي دي، خو بیا هم ځینې روڼآندي د هغه ادبي او هنري مقام له درک څخه عاجز دي چې تره کی یې د ریالیزم په سبک کې لري. دا ځکه چې هغوی د ده د اتلانو او د هغوی له چاپېریال سره هیڅ اشنا یي نه لري. په دې هکله ش. حصین لیکي: «ځینې کورني او بهرني کره کتونکې د ده سبک ته د فکر، لارې او ارمان له موخو سره منطقي پیوند نه شي ورکولی. هغه ټولنیز شرایط چې د لیکوال د لیکلو اتلان په کې رازېږي نه شي لیدلی او تر ټولو درنه خبره دا چې هر څه د نن ورځې په معیارونو تلي او پرون له یاده باسي. په دې لړ کې د ادموند ویلسون دا خبره چې وایي: «زموږ د زمانې یوه فکري ناروغي هم دا ده چې ډېر هغه څوک د کره کتنې په اډانه کې قلم خوځوي چې په ځانګړې توګه په همدې برخه کې په هیڅ نه پوهیږي.»، په ځای بولو.» (۴، ۹ مخ).

په ۱۳۴۳ ز کال کې لویې جرګې هغه نوی اساسي قانون تصویب کړ چې د سیاسي مبارزې د آزادۍ ژمنې پکې شوې وې او سیاسي ګوندونو ته یې د فعالیت اجازه ورکړې وه. په دې وخت کې نور محمد تره کي یو ځل بیا د سیاسي مبارزې ډګر ته د وتلو پخه اراده وکړه. هغه له مخه د سردار شاه محمود خان د صدارت په دوران کې د ویښو ځلمیانو د ګوند په تأسیس او فعالیت کې مخکښ نقش لوبولی و. په اساسي قانون کې د شویو ژمنو په رڼا کې، نور محمد تره کي په عملي توګه په سیاسي نوښت لاس پورې کړ. هغه له دې امله چې پاچا د ګوندونو قانون نه و لاسلیک کړی په نیمه- څرګنده مبارزه پیل وکړه. نور محمد تره کي د نوي ګوند د تأسیس لپاره له هغو روڼآندو سره لیدنې کتنې پیل کړې چې پخواني دوستان یې وو او یا یې له نورو سیاسي کړیو سره تړاو درلود. په پای کې د ۱۳۴۳ کال د مرغومي په ۱۱ نېټه د ۳۰ تنو په شاوخوا کې مبارز ځوانان د نورو په استازیتوب د کابل ښار په څلورمه کارته کې د نورمحمد تره کي په کور کې را ټول شول او د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند مؤسسه کنګره یې دایره کړه. په کنګره کې د ګوند مرکزي کمېټه وټاکله شوه او نور محمد تره کی د مرکزي کمېټې لومړي پلینوم د مؤسسې کنګرې د غړو په حضور کې، د

رایـو پـه اتفـاق د افغانسـتان د خلـک دیموکراتیـک گونـد عمومـي منشي وټاکـه. نور محمـد تـره کـي وکـړای شـول چـې پـه هېـواد کـې د ارتجـاع او امپریالیـزم د استازو، د فاسـدو بېروکراتیکـو حاکمـو ټولنـو او د انشـعابي او فراکسـیوني تخریبـي اعمالـو پـه شـتون کـې د افغانسـتان د خلـک دیموکراتیـک گونـد څوارلـس کالـه، یعنـې، واک تـه د رسـېدنې تـر وختـه پـه هوښـیارۍ او خلاقیـت سره رهـبري کـړي. د نورمحمـد تـره کـي پـه لارښـوونه گونـد لـه سـتونزو ډکـه لار پـه بریالیتـوب سره ووهلـه. لـه یـوې خوا د دولـت لـه پلـوه سـخت تعقیـب، لـه بلـې خـوا فرکسـیوني فعالیتونـو او د گونـد د ننه د ځـان غوښـتونکو او انشـعابگرو شـتون د اصولـي مبـارزې پـه لار کـې گنـې سـتونزې زېږولـې وې. د نـور محمـد تـره کـي د مدبرانـه لارښـوونو لـه برکتـه گونـد پـر سـتونزو لاسبرى شـو او سیاسي واک یـې ترلاسـه کـړ.

د ثـور د ۷ نېټـې پاڅـون پـه بـې سـاري توگـه بریالیتـوب تـه ورسـېد. دا ځکـه چـې د وطنپالـو ځواکونـو د یـوه منظـم، متشـکل او د ټینـگ دسـیپلینوال پوځـي سـازمان او پـه ټولیـزه توگـه، د افغانسـتان د زیارکښـو خلکـو لـه زامنـو څخـه د جـوړ شـوي انقلابي گونـد مـشري او لارښـوونه، یـوه سـپېڅلي او پـر خلکـو مییـن مـشر، نـور محمـد تـره کـي کولـه. هغـه ټینـگ بـاور درلـود چـې یـو منظـم او متشـکل انقـلابي سـازمان پـه هېـواد کـې سـتر او د پـام وړ بدلـون راوسـتلای شي. د هغـه هیلـه او ارمـان د افغانستان د رنځېدلـو خلکـو رښـتینی خدمـت وو. تـره کـي د کلاسـیکې اصولـي مبـارزې تـر څنگ د افغانسـتان پـه اردو کـې د کارگرانـو او بزگرانـو زامنـو تـه پـام واړوه چـې د هېوادپالنـې پـه مـلي او دموکراتیکـه روحیـه د افغانسـتان پـه خلـک دیموکراتیـک گونـد کـې وروزل شي.

پـه ۱۳۵٦ کال کـې د گونـد او پـه تېـره بیـا د نـور محمـد تـره کـي پـر ضـد د دولت لخـوا پراخـې توطئـې او دسیسـې پیـل شـوې چـې د خلقیانـو ځینـې تـه لار هـواره شي. نـور محمـد تـره کـي د گونـد د لا پیاوړتیـا او خوندیتـوب لپـاره وپتېیلـه چـې د خلقیانـو او پرچمیانـو یووالـی رامنځتـه کـړي. د ۱۳۵٦ کال د چنگابښ پـه میاشـت کـې د ا. خ. د. گ. یووالـی تأمیـن شـو. د پرچـم ډلـه د ا. خ. د. گ. څخـه پـه ۱۳٤٦ کال کـې جلا شـوي وه. د خلقیانـو او پرچمیانـو د بیـا یـووالي پـه برخـه کـې نـور محمـد تـره کـي غـوڅ رول ولوبـاوه. سره لـه دې چـې د گونـد یووالـی پـه ظاهـري بڼـه تأمیـن شـو، ولي

ارګانیک یووالی هیڅ وخت رامنځته نه شو. ډاکټر صالح محمد زیری لیکي: «خلقیانو او پرچمیانو ځانونه تر ډېره وخته پورې په واضح ډول بېل ګڼل او هرې خوا له خپل لوري سره اساسي مسئلې بیلې او بیا په ګډه غونډه کې مطرح کولې». (۵، ۳۵۳ مخ).

نورمحمد تره کي هڅه وکړه چې د ګوند یووالی په واقعي او رښتیني توګه تأمین شي، خو په رهبري کې د ځینو خود خواه او جاه طلبو عناصرو د شتون له کبله بریالی نه شو.

د ثور د ۷ نېټې انقلاب زموږ د ټولنې له تاریخي اړتیاوو او عیني شرایطو سره سم، په داسې حال کې بریالیتوب ته ورسېد چې زموږ د خلکو د سیاسي شعور کچه ډېره ټیټه وه. د پاڅون له بریالیتوب سره جوخت نړیوالې ارتجاع خپل شیطاني تبلیغات پیل کړل. د افغانستان د خلکو دښمنانو په خپل پروپاګندي جنګ کې داسې تورونه لګول: «په افغانستان کې د کمونیست ګوند په مشرۍ کودتا شوې ده. کودتا د شورویانو په مرسته شوي ده. په کودتا کې شوروي پیلوټانو برخه اخیستې ده. او افغانستان د شوروي اتحاد یوه سپوږمکۍ ده.».

نور محمد تره کي کورنیو او بهرنیو ژورنالستانو ته په مطبوعاتي کنفرانسونو کې وویل:

«د ثور انقلاب بریالیتوب مسکو او واشنګټن یو ډول حیران کړل. لیونید بریژنیف په کرملین او جیمي کارټر په سپینه ماڼۍ کې ګوتې په غاښ کې ونیولې.». هغه همدارنګه وویل: «د ثور پر انقلاب نه روبل مصرف شوي دي او نه ډالر. افغانستان مستقل هېواد دی او د هیچا سپوږمکۍ نه ده.». دا څرګندونې د دې ښکارندوی دي چې د ثور د ۷ نېټې پاڅون د ا. خ. د. ګ. په مستقلانه توګه سر ته رسولی دی چې شورویان حتی خبر هم نه و.

د شاهي او د داود د جمهوري نظامونو په وخت کې د افغانستان او شوروي اتحاد تر منځ د تړونونو له مخې په اردو کې یو شمېر مشاورینو شتون درلود. د بګرام په هوایي ډګر کې هم ځینې مشاورین له خپلو کورنیو سره اوسېدل. کله چې د ثور په ۷ نېټه پاڅون پیل شو، زه (لیکوال) د بګرام د هوایي ګارنیزون د

میدان آمر وم. د شوروي اتحاد مشاورینو له ما څخه هیله وکړه چې د هغوی او د هغوی د کورنیو امنیت ته پاملرنه وکړم. د ثور له اوومې نېټې څخه تر هغې ورځې پورې چې شوروي اتحاد د افغانستان نوی دیموکراتیک جمهوریت په رسمیت وپېژاند، په بګرام کې اوسېدونکې مشاورین له خپلو کورونو څخه بهر نه دي راوتلي. هغوی هېڅ نه پوهېدل چې څوک د چا پر ضد جګړه کوي. زموږ په ملي دیموکراتیک انقلاب کې هیڅ یوه بهرني برخه نه ده اخیستې. له بده مرغه د افغانستان دښمنانو ډېر پوچ تبلیغات تر سره کړل.

نور محمد تره کی د ویښو زلمیانو د غورځنګ له پیل څخه په سیاسي ډګر کې هم یو شمېر انقلابي اثار او په لسګونو ناولونه او لنډې کیسې لیکلي دي چې د نور محمد تره کي د سیاسي افکارو او ارمانونو ښکارندوی دي چې د هغوی له جملې څخه په ۱۳۳۵ ش کال کې د کابل مجلې په ۲۰ ګڼه کې د ادبي لیکنو تر نامه لاندې یوه سیاسي مقاله د «کله به وي...» تر عنوان لاندې خپره کړه، چې محتویات یې په لاندې ډول دي:

کله به وي:

«کله به وي هغه ورځ چې لوږه او بربنډتوب په انسانانو کې وجود وه نه لري. لوږه څوک نه پیژني او هر څوک چې هر څه ته ضرورت لري، هغه په آساني او هوسایي سره لاس ته راوړلې شي او څه چې یې له لاسه کیږي د ټولنې د سعادت او د انسانانو د راحت لپاره یې پیلوي. هغه ورځ چې د ظلم او استبداد د ناروا او حق تېري کمپله بشپړه ټوله شي او د هیچا زړه د بل چا له لاس څخه آزار نه شي او نه داسې لاس وجود ولري چې بل چا ته دي ضرر ورسوي. که چیري څوک دا فکر او هڅه کوي چې د ټولنې قوانین یې دا ډول بې اغېزې کړي لکه څوک چې تندی په لوی کاڼي وهي.

هغه ورځ چې یو د بل له سر څخه لاس واخلي. هیڅوک دي زړه نه شي ښه کولی چې د بل چا په حساب ژوند وکړي. هیڅوک د بل چا له لاس څخه ګوله نه څلوي او لکه د «ژورې» غوندې د بل چا په وینو او غوښو یې ګذاره نه وي.

هغه ورځ چې دسیسه سازۍ ورکې شي، یو د بل د پښو خاورې نه سره کاږي، یو د بل په اور کې نه سره اوړي، خپل برۍ د بل چا په کمینۍ کې نه لټوي، تل موقع ولري چې د هر چا په نسبت د مینې او محبت فکر وروزلی شي.

هغه ورځ چې اقتصادي مساوات او اجتماعي یووالی بشپړ تأمین شي او د هغو لېوانو منګولې چې د انسان په بڼه یې د نورو انسانانو په شارګو کې خښې کړې دي او هیڅوک دې ته نه پرېږدي چې طبعي ژوند وکړي، وکښلي شي.

هغه ورځ چې د اقتصادي سویې د لوړوالي او کفایت په اثر درواغ ویلو او چمونو ته هیڅ ضرورت پاتي نه شي. هر څوک بشپړ فرصت ولري چې د ځان د تکمیل او انکشاف لپاره په خپلواک صورت سره اقدام وکړي او دا تکمیل او انکشاف یې د یوې کارکوونکې ټولنې د سعادت او آرامۍ لپاره وي نه د نورو د بربنډولو لپاره.

هغه ورځ چې یوه فعاله او پاکه ټولنه موجوده شي او د هغې په سعادت کې څوک نر وي که ښځه موثره برخه واخستلای شي او هر څوک مساوي موقع ولري چې د هغې په تعمیر او ارتقاء کې بې له کوم مانع څخه مرسته وکړای شي.

هغه ورځ چې د خدمت او زحمت ایستلو په نامه خلک نه غولول کیږي او په دې پلمه او تر دې پردې لاندې د دوی اقتصادي، اجتماعي او سیاسي حقوق تر پښو نه لاندې کیږي.

هغه ورځ چې پوهنه او معرفت عام شي او هیڅوک بېسواده او ناخوانه پاتي نه شي. په هر ګوټ کې هلکان او جینکۍ په مساوي ډول له معارف څخه برخورداره وي، د استثمار په خاطر څوک بې تعلیمه نه پرېښودل کیږي.

هغه ورځ چې د نړۍ له ټولو ملکونه څخه داخلي او خارجي استعمار او استثمار بیخي ورک شي. ټول کارکونکي په آزاد صورت سره د دې واک او اختیار ولري چې دا نړۍ په خپل زحمت ودانه کړي او د هغه د ودانۍ ثمر د عامو د مفاد لپاره وي، نه د دې او د هغه لپاره.

هغه ورځ چې د نړۍ ټول خلک د وروري لاسونه سره ور کړي او په موثر ډول سره ټول هغه عوامل او منابع چې د استثمار کولو، ظلم کولو او د خلکو له بدبختيو سره اړه لري بيخي ويجاړې کړي او پر ځای يې بې الايشه منابع چې د ټولو په ګټه او هوسايي وي ودروي.

نو زنده باد هغه ورځ او پاينده باد دغه ډول نيکمرغه او په زړه پورې ساعت. د دې ورځې د راتلو او يا راوستلو لپاره ډېرې مساعۍ او قربانۍ پکار دي. دا ورځ هرو مرو راتلونکې ده، خو که د نړۍ زلميان په موثر ډول برخه پکښې واخلي. هغه به ژر راسي او ژر به دا فلاکت وهلي او استثمار ځپلي انسانان له زحمت او تکليف څخه خلاص شي او د تيار خورو او د خودخواه انسانانو لاسونه به د ټولنې له مرۍ څخه لنډ کړل شي نو د طفيلي او استثماري عناصرو پر خلاف لاس يو کول په کار دي.»). (د بزګر لور ۷۱ ـ ۷۴ مخونه، پښتو ادبي غورځنګ، کوټه).

پورته ذکر شوې مقاله ۵۱ کاله مخکې د نور محمد تره کي د افکارو زيږنده ده چې د اختناق په ډېرو سختو او ناوړه شرايطو کې په ډېر سياسي مهارت او درايت سره د هېواد په مطبوعاتو کې خپره کړې ده چې د هېواد ناوړه شرايط يې د نړۍ د ناوړو شرايطو تر نامه لاندې بيان کړي دي او د هېواد خلک او په خاصه توګه زلميان يې د نړۍ د خلکو او زلميانو تر نامه لاندې يووالي او مبارزې ته را بللي دي.

ګرانو مينه والو او لوستونکو راځئ چې عيني قضاوت وکړو چې د داسې انسان او شخصيت (نور محمد تره کي) چې ژوند يې د افغانستان د خلکو او د هغوی د نېکمرغۍ او هوساينې لپاره يې وقف کړی و ، د ځان غوښتونکي امين له خوا د ټولو بشري نورمونو په خلاف په ډېر بې رحمانه او ظالمانه ډول ووژل شو او د قدرت واګې يې لاسته راوړې. نور محمد تره کی له معنوي اوتوريتې چې په ګوند او خلکو کې يې لرله، بې برخې شو او ژوند يې ځينې واخيست. ټولې هيلې او ارمانونه يې چې د دې مظلوم ملت لپاره لرل، له خاورو ايرو سره برابر شول.

د ويلو وړ ده، چيرته وو د وخت هغه د سياسي بېرو او د انقلابي شورا غړي؛

چې سورې او نارې به یې وهلې او د افغان مظلوم ملت په نامه به یې شعارونه ورکول. د دې همت یې نه درلود چې خپل غبر اوچت کړي او ګوند ته ځواب ووایي ، چې عمومي منشي او د انقلابی شورا رئیس د کومې محکمې پرته په داسې بېرحمانه او ظالمانه شکل وژل کیږي.

# درییم څپرکی

## د ثور د اوومې نېټې پاخون پیل

د ثور په شپږمه (۱۳۵۷) کال ماښام په اتو بجو له کابل راډیو څخه د باختر آژانس خبرونو په پیل کې د افغانستان خلک دیموکراتیک ګوند مشرتابه غړي د نور محمد تره کي او ببرک کارمل په شمول ونیول او په زندان کې واچول شول. د دې خبرې په اورېدو سره ډېر اندېښمن شوم او له انجنیر محمد هاشم سره مې ولیدل. انجنیر هاشم په هغه وخت کې د بګرام د هوایي ډګر د ګارنیزون د ا. خ. د. ګ. مسئول و او ترې ومې پوښتل چې خبرونه دې واورېدل؟ په نیولي آواز یې ځواب راکړ هو! وا مې ورېدل له انجنیر صاحب سره مې داسې ارزونه وکړه او ورته ومې ویل: چې موږ د هغه دستور او هدایت په اساس چې نور محمد تره کي نظامي کمېټې ته پخوا ورکړی و ، باید عمل وکړو او نوموړي راسره ومنله.

د دفاع وزیر جنرال حیدر رسولي د ا. خ. د. ګ. د غړو بندیانول نمانځل او پدې ویاړ یې پرتمینه مېلمستیا جوړه کړې وه او ټولو قطعاتو ته یې د خوښی د مراسمو اوامر صادر کړي وو. د بګرام هوایي ډګر قوماندانۍ ته هم د هوایي او مدافعه هوایي د لوېې قوماندانی له خوا ابلاغ شول چې سبا ورځ د ګارنیزون ټول قطعات او جزتامونه په خوشحالیو او ملي اتڼونو تجلیل کړي.

موږ انتظار یوست چې د ګوند له خوا کوم دستور یا هدایت تر لاسه کړو مګر

هیڅ مو ترلاسه نکړل.

شپه تېره شوه او سهار شو، بیا هم د ګوند له خوا کوم دستور او هدایت لاس
را نغی. زموږ ښه والی پدې کې و چې د بګرام د هوایي ډګر ګارنیزون د قطعاتو
جزتامونو رهبري غړي د ګوند غړي وو او که د ګوند غړي هم نه وو، نو مخالف هم
نه وو.

د پنجشنبې ورځ وه، له نوکریوال جزوتامونو پرته نور قطعات باید رخصت شوي
وی له قوماندانی عمومي هوایي او مدافعه هوایي څخه هم امر راغی چې قطعات
رخصت کړی. قطعات مو رخصت نکړل، هغه ترانسپورتي موټرونه چې باید پرسونل
یې کابل ته انتقال کړی وای اجازه مو ورنکړه او له ځان سره مو وساتل. د بګرام د
هوایي ډګر قطعات او جزتامونه مو په لومړی درجه احضاراتو راوستل. وضعه ګونګه
وه. د غرمې مخکې د یوولسو بجو په شا او خوا کې ډګر جنرال موسی خان امر وکړ
چې هله پرواز وکړی، له پل څرخي څخه ټانکونو حرکت کړی، له مکروریانو څخه
یې تر پلڅرخي پورې له منځه یوسئ.

د هوایي او مدافعه هوایي د لویې قوماندانی له امر سره سم موږ ته پته ولګېده
چې دا ټانکونه د چا پر ضد عمل کوي، سره له دي هم موږ یوه جوړه میګ ۲۱ د
کشف په موخه هوا ته پورته کړې. الوتکی د کابل ښار پر سر وې چې له محل
قوماندې عمومي (محل چنار) څخه چې، په دی وخت کې محل چنار د داود خان
د رژیم د پلویانو په لاس کې و ، ورته امر یې ورکړ چې ټانکونه هوایي ډګر ته
داخل شول انداخت پرې وکړي یوازې یوې الوتکې د عبدالوهاب مشهور په (ماما)
په پیلوټي میدان انداخت وکړ چې په نتیجه کې سید محمد ګلاب زوی ټپي شو.

موږ یعنې د ګوند غړیو د انجنیر محمد هاشم په مشري چې د بګرام د هوایي
ډګر د ګوند استازیتوب کاوه، د ګوند د مشرتابه د پخواني دستور په اساس، برېکړه
وکړه چې د ګوند په پلوي عمل وکړو.

پورتنیو ټکو، د سیاسي احتمالي پېښو په وخت کې موږ افسرانو ته د دریځ نیولو
یو ښه اوټ لاین را کاوه. بلاخره سیاسي پېښو داسې وده وکړه، چې داود خان پر
ګوند برید وکړ او د ګوند د مشرتابه بندیانول زموږ افسرانو ته د قیام دستور بلل کېده.

د دولت اعلان موږ ته د پاځون قومانده وه، نور د عقب نشيني امکان پاتي نه و. نو د دې انجام شوي عمل په مقابل کې موږ ته يوازې د دفاع حق پاتي و.

څومره چې د بګرام په هوايي ډګر پورې اړه لري، په ډاډه توګه وايم چې موږ ته هيڅ نوع شفر نه دی رسېدلی او نه کومې مرجع قومانده راکړيده. زه (ليکوال) د هوايي ډګر آمر وم او انجينر محمد هاشم د بګرام د ګارنيزون حزبي مسئول و. موږ دواړه په اوضاع مسلط و او د ګوند د پخواني دستور له مخې مو د بګرام د هوايي ګارنيزون لومړۍ درجه احضارات ورته ونيول کړل. د ثور پاځون بريالی شو، او د هوايي ځواکونو غوښ ګډون د دې بريا مهم لامل ګڼل کيږي.

څرګنده ده چې هر پاځون او بدلون داخلي او باندنيي ملاتړې او مخالفين لري. د ثور پاځون هم له دې څخه استثنا نه دی. خو څومره چې په نظامي عمل کې د ګډون په مسئلې پورې اړه لري، زه په ټول ډاډ او مسئوليت ويلی شم چې دا عمل خالص افغاني او ګډون کوونکي يې هم افغانان وو.

بايد څرګنده کړم چې د پاځون د ټولو جزياتو ټاکل او په عمل کې هو به هو د هغه پلي کول ډېر درونډ کار دی. موږ ته هم د ثور د قيام په موقع له زرهدارو قوتونو سره د هوايي قواوو د عملياتو هماهنګی ستونزه راولاړه شوه، چې د هغه له امله هوايي قواوو په عملياتو کې يو څه ځنډ راغی، خو دا ځنډ يوازې د تخنيک د آمادګي له امله را پېښ شو. ځکه چې د يوه هوايي غونډ محاربوي دندې ته آماده کول ډېر وخت نيسي (کم تر کمه درې ساعته). تر څنګ يې نورې غټې وړې ستونزې هم وې. خو له دې ستونزو سره سره هوايي ځواک له پاځون څخه د ملاتړ لپاره چمتو او د قيام کوونکو په برياليتوب کې يې غوښ رول ولوباوه. د هوايي قواوو کاميابه عمليات د هغې فضا نتيجه وه، چې د بګرام د هوايي ډګر د منسوبينو تر منځ وجود درلود. زموږ خپل منځي مناسبات صرف نظر له دې چې څوک حزبي و يا غير حزبي، ډېر صميمانه او د اعتماد او باور پر بنا ولاړ و، له همدی امله د عملياتو په موقع هم ټولو د يوه موټي په شان عمل وکړ او بريا ته ورسېدل.

په دې ورستيو وختونو کې ګڼ شمېر ليکوالان د ثور د پاځون او د نورو سياسي پېښوو په هکله ليکنې او کتابونه خپروي دا ټولې ليکنې او کتابونه يو شانته ارزښت

نه لري. ځينې يې تر يوې معينې پولې پر واقعيتونو تکيه کوي، خو يو شمېر يې
نه يوازې حقيقت نه بيانوي، بلکې ذهنونه مغشوشوي. په همدې لړ کې د جنرال
قادر خان کتاب هم يادولی شو.

زما په اند د سياسي پېښو تعبير او تفسير يو شی او د دې پېښو سم روايت او
بيان بل شی دی. يوې معينې سياسي پېښې ته ممکن دوه تنه جدا جدا تعبيرونه
ولري او دا طبعي او نورمال کار دی. خو د ټاکلې سياسي پېښې روايت او بيان نشي
کېدای دوه ډوله وي. د قادر خان ستونزه په همدغه ځای کې ده. که له هغې پېښې
څخه چې ده انځور کړې ده، خپل تعبير وړاندي کړی وای، نو ما نه ملامتاوه، خو
هغه د دې پېښې بيان او روايت سم نه دی کړی. که په څرګندو ټکو يې بيان کړم،
زما او د ده تر منځ د قيام په هکله هيڅ پلان نه دی څېړل شوی. جوته ده چې د يوه
قيام د پلان څېړنه د دوو يا د دريو تنو تر منځ، هغه هم چې په يوه سياسي ګوند
پورې اړه ولري، خپله يوه خطرناکه ماجرا جويي بلل کيږي.

د ثور پاڅون زمونږ د ټولنې له تاريخي اړتياوو سره سم او د يوه ملي او ديموکراتيک
غورځنګ په توګه بريالیتوب ته ورسېده. د ۱۳۵۷ کال د ثور د مياشتې په ۱۱ نېټه د
افغانستان د ديموکراتيک جمهوريت نوې رهبري وټاکل شوه چې، د خلکو د پراخو
پرګنو له خوا يې ټينګ ملاتړ او په ګرمو احساساتو او خوشحاليو سره د نوي دولتي
مشرتابه هرکلی وکړ.

## د ثور د پاڅون په اړه بهرنۍ سرچينې:

سهار وختي، د کابل ژوبڼ ته څېرمه، د پاڅون د هماهنګۍ د شورا غونډې
جريان درلود. د کودتا جزيات يې تر غور لاندې نيولي وو. سيد محمد ګلاب زوی د
کودتا پلان د غونډې ګډون کوونکو ته وړاندې کړ. په قطعاتو کې خلقي افسرانو د
پاڅون خبرتيا تر لاسه کړې وه او چمتو ولاړ وو. د راتلونکو پېښو د څرنګوالي اټکل
ګران و. څرګنده شوه چې پاڅون ته چمتووالی نشته، ښکاره نه وه چې څه به پېښ
شي. اما شاتګ ته ځای نه و پاتې. ملګري په بند کې وو. لدې کبله د شورا غړو
دندې سره ووېشلې او ځينې جزيات يې هم فيصله کړل. ګلاب زوی وويل: شفر به

زما نوم - سيد محمد وی، پيل «ميگ ۲۱».

غونډه پای ته ورسېده، د غونډې ټول ګډون کونکي، په بېړه خپلو قطعاتو ته روان شول. اسد الله پيام د څلورمې زغروالې لوا په لور وخوځېد. همدا، د ټانک د توپ فشنگ د پاځون د پيل نښانه وه. خبرې اسانه دي....

د ټانک د لوا قومندان د داود د ريژيم پلوی و ، د هغه له امر او مهماتو پرته، د شورا له خوا د ټاکل شوو دندو سرته رسول ناشوني و .

د کنډک قوماندان محمد اسلم وطنجار ته دا دنده وسپارل شوه چې وروسته بيا هغه د افغانستان د کورنيو چارو وزير شو. اوس نوموړي هوښيار او ځيرک جگړن يوازې وروسته پرېکړه وکړه. رښتيا، هغه په ځان ستر گواښ ومانه، اما په وړاندي يې د انقلاب برخليک پروت و. هغه جدي څېره غوره کړه چې په داسې حالاتو کې ډېر گران کار وي، د لوا قوماندان ته ورغی او ورته يې وويل:

- د کابل په ښار کې د کمونيستانو د بنديتوب وروسته کېدای شي څه دسيسې وشي.

- د لوا قوماندان ور سره هوکړه وکړه.

- هو بشپړ احتمال لري.

وطنجار پوه شو چې د لوا قوماندان د دفاع وزير په مهربانۍ سره، پرونۍ پېښه په بشپړه توگه په پام کې ساتلې ده. هغه د لوا قوماندان ته قناعت ورکړ چې ښايي داود خان مرستې ته اړتيا ولري او اجازه يې تر لاسه کړه چې لسگونه ټانکونه د کابل ښار ته واستوي او هر ټانک ته له ډيپو څخه د توپ شپږ شپږ مرمي هم تر لاسه کړي.

د لوا قوماندان پدې باور چې درست عمل يې کړی دی، ولاړ استراحت يې وکړ. او وطنجار له ډيپو څخه ۶۰۰ مرمۍ واخستلې چې وروسته يې بيا پر ارگ باندې گوزار کړې. ټانکونه ۱۱ بجې له څرخي پله څخه د کابل ښار لور ته وخوځېدل.

په پلازمېنه کې عادي ژوند جريان درلود. په سړکونو کې ښاريان څوک د خپلې کورنۍ او څوک بې کورنۍ روان وو. سوداگر، ښځې، کوچنيان پر آشنا سړکونو باندې

په حرکت کې وو. څوک بازار ته تلل او څوک له بازاره را تلل. موټرو کوچنيانو ته چې د سرک په سر پسې په منډو وو، هارندونه وهل. نابېره په ورځني ښاري شور کې د ټانکونو د روان کتار غرمبار پورته شو. موټرونه د سړکونو خواوو ته ودرېدل، د خلکو ډلې له سړکونو څخه کوچنيو لارو ته په شا شوې او يوازې ماشومانو په ټانکونو پسې منډې وهلې، نوې مستي ورته پيدا شوې وه.

کتار د ارگ مخې ته ورسېد او د اصلي وره په مخکې ودرېد. د پخواني پاچا ظاهر شاه ماڼۍ، د ننه په کې ناستو کسانو سره، د انتظار په سکوت کې پاتې شوو. د ټانک د توپ لومړنۍ فير په ۱۲ بجو وشو، مرمۍ د دفاع وزارت په ودانۍ ولگېدله-دا د اسلم وطنجار ټانک و.

پدې وخت کې، په ماڼۍ کې غونډې جريان درلود. د محافظ گارد قوماندان راپور وړاندې کړ چې ارگ کلابند شوی دی. داود خان د دفاع وزير ته په ارامي سره وکتل، بيا ودرېده او و يې ويل:

- هر يو کولای شي چې څنگه يې زړه غواړي، همغسې وکړي، له ماڼۍ څخه ووځئ او خپل ژوند څنگه چې کولی شي، وژغورئ.

او بيا يې تکرار کړه:

- کولی شئ چې ووځئ.

پر ماڼۍ باندې انداخت پيل شو.

د دفاع او کورنيو چارو وزيران د ماڼۍ له شا دروازې څخه بهر ووتل، خپلو وزارتونو ته رهي شول چې د قانوني واکمنۍ دفاع سازمان دهي کړي. نور وزيران شاهي مسجد ته چې د ننه په ماڼۍ کې وو، ننوتل. انداخت دوام درلود. اوس نو ټول فيرونه خپل هدف ته رسېدل.

د کابل په سرکونو کې جگړه روانه وه چې لومړي بريدمن مصطفی د ا. خ. د. گ. بندي مشران له بنده را خلاص کړل.

سملاسي د وروروليۍ يو ميټنگ جوړ شو. د ډرامې د ننداړو مينه وال (امين) د وضعې څخه په استفاده، په ټانک کې سپور د کابل ښار صحنې ته راغی.

امین د ټانک سر ته پورته شو، ښی لاس یې چې زولنې لا پرې ځړېدلې، پورته کړ او په خوځولو سره یې له قیام کونکو سره روغبړ کاوه. د را غونډو شویو خلکو کتلې په شور او زوږ سره ځواب وایه. راډیو د «ماالخیر راگ» خپراوه. دغه نغمه، په افغانستان کې همېشه د واک د بدلون په وخت کې خپرېدله.».

نور محمد تره کي د دې ناوړه تبلیغاتو په هکله داسې څرگندونې کړې دي: «د ثور د اومې انقلاب د افغانستان د خلکو د یوه دیموکراتیک او ملي انقلاب رښتینی پیل دی، نه کودتا. دغه انقلابي لوی پاڅون په څرگند ډول په رڼا ورځ د افغانستان د خلکو د خپلواکۍ پر بنسټ د کوم بهرني هېواد له لاسوهنې څخه پرته د هېوادپالو او سرتېرو افسرانو په سر ښندنې تر سره شوی او د افغانستان د خلکو د ملیونونو پرگنو له خوا لوی ملاتړ ورسره ملگری دی. بل دا چې په افغانستان کې هیڅکله د کمونیست گوند تر نامه لاندې کوم گوند نه و او نه شته بیا پسي زیاتوي افغاني انقلابیون په ټول احترام سره د اسلام د مقدس دین او روحانیونو، د بشر د حقونو د اصولو او د خپلو ملي دودونو او دستورونو په وړاندې برخورد کړی او کوي یې. دا چې افغانستان د یوه بل هېواد په سپوږمکۍ باندې بدل شوی دی، باید ووایم چې د بل هېواد د سپوږمکۍ اصطلاح د بین المللي ارتجاع له زرادخانې څخه راوتلې ده. افغانستان اوس د هیچا تر اثر لاندې نه دی بلکې یوازې د ثور د اوومې نېټې د بریالي انقلاب تر اثر لاندې دی چې افغانستان د ناپېیلو هېوادونو آزاد قضاوت او مثبتې او فعالې بېطرفي له سیاست سره یو ځای سوله غوښتونکی او بشپړ خپلواک سیاست تعقیبوي او له نورو هېوادونو سره د خپلې دوستي او اړیکو ملاک د ثور د اوومې نېټې د انقلاب په وړاندې چې د ټول افغانستان د اولس پوره او بشپړ ملاتړ دی، د دغو هېوادونو د چال چلند له مخې ټینگ کړی او ټینگوي یې.» (٦، ۵۷- ۷۵ مخونه).

## د گوند داخلي کړکېچونه

د افغانستان د خلک دیموکراتیک گوند داخلي اختلافونو داخلي او باندېنې ډېر لاملونه درلودل، چې زما په اند یو لامل یې د حفیظ الله امین ځان غوښتنه وه.

د گوند له یوالي څخه وروسته حفیظ الله امین په پټه «د افغانستان ملي

ديموکراتيـک گونـد» جـوړ کـړ او د نـور محمـد تـره کـي لـه اعتـماد څخـه يـې نا
گټـه پورتـه کـړه. د ثـور لـه پاڅـون څخـه وروسـته د  نـور محمـد تـره کـي د راپرځو
پـه هڅـه کـې شـو. د دې لپـاره لومـړی د اميـن د دسـتور پـه اسـاس بـه پـه ټو
وينـاوو او خـبرو کـې د تـره کـي لـه نامـه سره جوخـت د اميـن نـوم يادېـده. دويـم
چې اميـن د ټولـو مقرراتـو او قوانينـو خـلاف برسېره پـر دې، چې د بهرنيـو چـارو د وزار
دنـدې يـې پـر مـخ بيولـې، هـره ورځ بـه لـه ځلـورو بجـو وروسـته پـه دفـاع وزارت ک
د دفـاع د وزيـر پـر څوکـۍ ناسـت  و  او د قـول اردوگانـو، فرقـو او مسـتقلو جزوتامونو
غونډونـو تـر کچـې قومانـدانـان، سـياسي امـران او د امنيـت امريـن بـه يـې ټـاکل، چ
پـدې ترتيـب سره يـې پـه دفـاع وزارت کـې ټـول خپـل پلويـان ځـای پـر ځـای کـړل
پـه نـورو ټولـو وزارتونـو کـې بـه رئيسـان او د وزيـر مرستيالان د اميـن پـه مشوره ټاک
کېـدل. دا بيـا وروسـته ښرگنـده شـوه، چـې د تـره کـی او اميـن تـر منـځ د مخالفت ل
عمـده دلايلـو څخـه يـو هـم دا دليـل  و .

حفيـظ اللـه اميـن دومـره ريـا کار او دوکـه بـاز و، چـې لـه يـوې خـوا يـې د نو
محمـد تـره کـي د راپرځولـو لارې چـارې لټولـې، لـه بلـې خـوا يـې تـره کـي تـه يو اوږ
نوملـړ القـاب ورکـړه او ځـان يـې تـر ټولـو وفـادار ښکاراوه. پـه خپلـو ويناگانـو کـې يې
د تـره کـي پـه خـبرو تکيـه کولـه او ويـل بـه يـې، چـې «د سـتر تـره کـي لـه هدايت
سره سـم»، «د سـتر لارښـود امـر دی»، «گونـد او سـتر تـره کـی نـوک او ووری» ا
داسـې نـور. دا ټـول القـاب د دې لپـاره وو، چـې لـه يـوې خـوا تـره کـی غافـل کـړي ا
لـه بلـی خـوا يـې پـه ټولنـه کـې د شخصيت د کېښ پـه نامـه اتوريتـه را ټيټـه کـړي

د ثـور لـه پاڅـون څخـه وروسـته پـه دويمـه ورځ د ببـرک کارمـل او حفيـظ الل
اميـن تـر منـځ پـه تشـکيلاتي مسـئايلو مخالفـت را پورتـه شـو. څرنگـه، چـې د ثـو
انقـلاب د گونـد د هغـه نظامـي سـازمان لـه خـوا بريالیتـوب تـه رسـېدلی  و ، چې امين
يـې مسـؤليت پـه غـاړه درلـود. نـو د گونـد پـه مرکـزي کمېټـه او انقـلابي شـورا کـې د
هغـه نظـر او موضعگيـري تـه زياتـه پاملرنـه کېدلـه او زيـات ملاتـړ يـې درلـود، پـه دې
ترتيـب سره اميـن پـه دې تشـکيلاتي مبـارزه کـې بريالـی راووت. همـدا سـبب شـو
چې د ۱۹۷۸ م کال د مـی د مياشـتې پـه لومـړی نېټـه کارمـل خپلـو پلويانـو تـه هدايت
ورکـړ چـې: «تخريـب کنيـد، تخريـب کنيـد و تخريـب کنيـد» پـه دې ترتيـب امين تـه

کافي اسناد او شواهد پـه لاس ورغلـل او نـور محمـد تـره کـي تـه يـې قناعـت ورکـړ، چې د پرچـم د ډلـې يـو شـمېر کسـان د کارمـل پـه شـمول پـه بهرنيـو هېوادونـو کـې د سفيرانو پـه توگـه وگـماري، چې لـه مخـې يـې کارمـل پـه پـراگ کـې د سـفير پـه توگـه وگـمارل شـو.

د ببرک کارمـل او د هغـه د ډلـې لـه ځپلـو وروسـته امیـن د نـور محمـد تـره کـي د گوښـه کولـو هلـې ځلـې پیـل کـړې. پـه لومـړي سر کـې د امیـن پـه دسـتور د ځوانانـو د خلقـي سـازمان لـه خـوا داسـې ډنـډورې خپـرې شـوې، چـې تـره کـی صاحـب اوس سـپينږیری شـوی دی، هغـه بایـد د گونـد افتخـاری رئیـس وي او گونـدي او دولتـي کارونـه امیـن صاحـب تـه وسـپاري، ځکـه هغـه ځـوان دی او انـرژي لـري، کارونـه بـه پـه چټکـۍ سره پـر مخ ولاړ شي او لـه هغـه وروسـته پـه نـورو دولتـي ارگانونـو کـې هـم دا ډول خبـرې خپـرې شـوې.

محمـد هاشـم نـوري، چـې پـه هغـه وخـت کـې يـې د اقبـال وزيـري د سياسي رئيـس د مرسـتيال پـه توگـه يـې دنـده درلـوده داسـې وايـي:

د ثـور انقـلاب لـه لومړيـو ورځـو څخـه د حفيـظ اللـه اميـن او اقبـال وزيـري سياسي کار پـه مرمـوز ډول شروع شـو: اقبـال وزيـري بـه پـه خپـل کـور (مکرويانـو) کـې د ورځـې پـه رسـمی وخـت کـې د کابـل د نظامـي قطعاتـو افسران دعـوت کـړل او د ميز پـه سر بـه د اقبـال وزيـري د اقتصادي قـدرت نـه لـوړ خوراکونـه ايښـي وو. اقبـال وزيـري بـه پـه ډېـره نرمـه ژبـه وويـل:

دا ملگـری (سـيد محمـد گلاب زوی، محمـد اسـلم وطنجـار، اسـد اللـه سروری او شير جـان مزدوريـار) زمـوږ قهرمانـان دی او امپرياليـزم دوی تـه ډېـر متوجـه دی. مـوږ بايـد کوښـښ وکـړو، چـې دوی راتـه خـراب نـه کـړي!

- پـه بـل دعـوت کـې بـه د اقبـال وزيـري تبليـغ پـه غيـر ملمـوس ډول يـو څـه تغير کـړی و او ويـل بـه يـې: متاسـفانه دا زمـوږ قهرمانـان ملگـري د نجونـو خـوا تـه څـه نـا څـه تمايـل لـري او بيـا هـم امپرياليـزم غـواړي د دوی د دې ضعيفـو نقطـو پـه ذريعـه دا ملگـری تطميـع کـړي.

- پـه بـل دعـوت کـې بـه دا تبليـغ نـور هـم تنـد او تيـز شـه او ويـل بـه يـې: دا

قهرمان ملگري اوس په نجونو پسی گرځي.

- دعوتونو دوام درلود...

- په بل دعوت کې به يې ويل - دا قهرمان ملگری په امین صاحب پس
تخریب کوي.

- په بل دعوت کې يې ويل، امین صاحب له تره کي صاحب سره په د
هکله معلومات شریک کړل خو تره کی صاحب خاموش پاتي شو.

- په بل دعوت کې به يې داسې وويل: اوس تره کی صاحب هم له د
څلورو یارانو څخه دفاع کوي.

خلاصه دا چې نور محمد تره کی يې دې څلور یارانو د حمایې په تور پ
اذهانو کې ښه وټکاوه.

د حفیظ الله امین دغه پروژه، ښه په مخ روانه وه یعنې سبوتاژ موفق و.

- بلاخره اقبال وزيري وويل: موږ باید د دغو کسانو پر ضد مبارزه وکړو.
اقبال او حفیظ الله امین مبارزه د نور محمد تره کي په ضد پخه شروع شوي
وه.

مگر د یادولو وړ ده، چې اقبال وزیري د حفیظ الله امین د قدرت په لومړیو
ورځو کې مثبت رول ولوباوه، په دې معنی چې د ډېرو ملگرو ژوند ته يې نجات
ورکړ.

مخکې له دې چې د گلابزوی یاداشتونه وگورو، غواړم زموږ د خوږو گوندي
ملگرو د کرکتر، ارمانونو او قربانیو په مورد څو لنډې دردوونکې خبرې وکړم:

ځینې افغانان فکر کوي او وایې: که د ثور په قیام کې د خ. د گوند له
۴۰۰ تر ۵۰۰ غړي اعدام شوي وای او سردار محمد داود خان ژوندی پاتي وای نو
افغانستان به د اروپا په شان په مخ تللی وای.

دا ښه خیال پلو دی - ای کاش همداسي شوي وای!

خو حقایق پټ پاتي دي. سردار محمد داود زموږ په اوږو قدرت ته پورته شو.

د مرګ استقبال خورا ګران کار دی، خو زموږ ګوندیان نه تنها یو ځل بلکې څو- څو ځله د مرګ استقبال ته حاضر شوي دي او د خپل ولس د سترو ارمانونو په لاره کې یې سترې قربانۍ منلې دي.

بل څوک به دعوی وکړي چې ګوندیانو د امتیازاتو لپاره قربانۍ ورکړې دي! شاید همداسې کسانو به په ګوند کې شتون درلود، خو د ګوتو په شمار به وو. زموږ د ګوند غړي په زرهاوو کسان لا ژوندي دي چې اوس هم د «بخور نمیر» ژوند لري. ضرور به نه وي چې نوموونه یې ولیکم اما د نمونې په توګه د صالح محمد زیري تریخ ژوند ته مختصراً اشاره کوم:

صالح محمد زیری د طب ډاکټر و ، نوموړی د ډاکټري هغه لوړ امتیازات هم د ګوندي کار لپاره قرباني کړل.

صالح محمد زیری د استاد رباني د حکومت په وخت کې خپل شخصي کور په مکرویانو کې چې د څو کلونو په جریان کې یې دولت ته فیصدی هم ورکړې وه تر لاسه نکړی شو او د مجاهد حکومت له خوا مجبور شو چې له افغانستان څخه ووزي. اما دا توان یې نه درلود چې خپل فامیل ورسره وباسي. نو د یوه وحشي او جاني انسان له خوا د ده مېرمن، کوچنۍ لور او کوچنۍ زوی د چاقو په ذریعه ذبح شول.

وګورئ د صالح محمد زیري کوچنۍ لور او کوچنی زوی د چاقو په مقابل کې مقاومت کوي او د لاسونو ورغوي یې زخمي - زخمي او پرې - پرې شوي وو. دا مشروع دفاع ده، هر ژوندی موجود په یو شکل له ځانه دفاع کوي.

موږ هم د داود خان د اعلان په مقابل کې مشروع دفاع کړې ده او بس.

د صالح محمد زیري خوږو اولادونو ته د خدای پاک له دربار څخه د فردوس برین هیله کوو او زیري صاحب ته د تسلیت مراتب وړاندې کوو. قاتلانو ته دي خدای پاک په جهنم کې ځای ورکړي.

زیری صاحب په هره مرحله کې د ګوند دویم شخصیت و . داسې مثالونه خورا ډېر دي خو د دې لپاره چې موضوع اوږده نه شي زموږ د ګوندي ملګرو د

تريخ ژوند لپاره به دا لاندې دوه بيتي مناسب مصداق وي:

در خدمت خلق بندگی مارا کُشت
وندر پی نان دَوندگی ما را کُشت
هم محنت روزگار و هم منت خلق
ای مرگ بیا که زندگی ما را کُشت

که د دې کتاب تيت و پرک شوي مطالب په غور او آرامو حواسو سره ولوستل شي ډېر سوالونه پکې حل کيږي.

مور د ټېرو رهبرانو (داود خان، ببرک کارمل، حفيظ الله امين او نجيب الله) سره زمور د ښکلي هېواد د جوړېدو لپاره صادقانه کار کاوه، خو هغوی د بېگانه جاسوسانو په لمسون مور سرکوب کړو. د دغو رهبرانو په آدرس به په ټول احترام سره د شکسپير يوه مقوله ياده آوری کړم چې وايي:

«کوره را برای مخالفان (یا دشمنان) خود چنان داغ مکن که خودت را بسوزاند.»

متاسفانه د دوی د سياسي لوبو او د گوندي غړو ساده گي او صداقت تر منځ ډېره فاصله موجوده وه. دوی هر يوه نه تنها ځانونه وسوځول بلکې افغانان او هېواد يې يو ځای سره وسوځول.

## د نور محمد تره کي په اړه

هغه څه چې تره کي صاحب د افغانانو په غونډه کې د سرطان دانې ته اشاره کړېده د تعمُق وړ ده، ځکه د تره کي صاحب عملي هڅې کاملاً په برعکس لوري راونې وې. که تره کي صاحب دا خبره کړي وي شايد د مسکو د رهبرانو د تسکين په خاطر يې کړي وي او يا به نور ملحوظات موجود وو...

بايد اعتراف وکړو چې مور تر ډېره حده په احساساتو کې غرق وو او د تره کي صاحب په موضعگيري نه پوهېدو.

د هغه وخت په ځينو مسئلو مو سر نه خلاصېده. مثلاً په دغو کسانو کې چې خاطرې يې ذکر شوي دي د تره کي صاحب موضعگيري همېشه د حفيظ

الله امین په گټه وه. د شوروي د سفیر پیشنهاد چې حفیظ الله امین باید د وزیر دفاع په توګه مقرر نه شي، اما تره کی صاحب سفیر ته رد ځواب ورکوي، یا بریژنف پرله پسې تره کي صاحب ته د حفیظ الله امین خطرونه او حتی کودتا یادونه کوي خو تره کی صاحب ورته وایي: «زه دا موضوع یو خطر نه ارزیابي کوم، تاسو تشویش مه کوئ!»

یا دا چې تره کی صاحب ګلابزوی ته وایي : «زه به د خپل ژوند لپاره یو مچ هم و نه وژنم.»

یا دا چې د خواجه رواش د هوایی میدان آمر (محمد سعید) ته وایي: «امین به دومره خایین نه شي چې ما ووژني، بیا یې که ووژلم، ما خپل عمر خوړلی دی ...»

یا دا چې هاشم نوري ته وایي چې: «زه حزب پخپل منځ کې نه جنګوم» یا ورته وایي چې «له خارج څخه هیڅکله مرسته نه غواړم - دلته یو آزاد ولس پروت دی.»

زه لیکوال په دې راستا کې د اقبال وزیري لیکنه قاطعانه ردوم چې ګویا نور محمد تره کی د ګارد قوماندان ته امر کوي چې د دلکشا مانۍ له خاورو سره برابره کړئ ... او بیا ګویا نور محمد تره کی د هوایي قواوو مرستیال (حاجی محمد) ته تیلیفون کوي چې د پراشوت کنډک له بګرام څخه د تره کي مرستې ته را وغواړي ...

اقبال وزیري په ژوره بدبیني او سپین سترګي سره دا ښکرور دروغ لیکلي دي.

توجه وکړئ! د بګرام د ټولو قوتونو (من جمله د پراشوتو کنډک) اختیار او صلاحیت زما په لاس کې و . موږ ټول قوتونه تر سهاره په اوله درجه احضاراتو کې وساتل خو تره کي صاحب ماته د هر ډول ماجراجویي یا نظامی عملیاتو د نفی په معنی خبرداری راکړ...

دا ټولې لیکنې یوه نتیجه په لاس راکوي چې نور محمد تره کی زموږ د ګران ګوند د ژوندي او سالم پایښت (پاتي کېدل) په خاطر خپل ځان قرباني کړ. !!

## سيد محمد ګلاب زوی د امين او تره کي صاحب مناسبات دا ډول بيانوي:

حزبي ملګرو نور محمد تره کي صاحب ته پيشنهادونه وکړل، چې په اردو او نورو دولتي مقاماتو کې يو څه تغير راشي. لوی درستيز شاه پور احمدزی او د دفاع وزير عبدالقادر د کودتا په تور بنديان شول، بايد پر ځای يې محمد اسلم وطنجار با صلاحيته لوی درستيز، شير جان مزدوريار د کورنيو چارو وزير وټاکل شي او اسدالله سروري د انقلابی شورا غړی شي.

حفيظ الله امين پر دې پيشنهاد باندې عقده واخيسته. نور محمد تره کي داسې نظر ورکړ او ويې ويل، چې بايد سيد محمد ګلاب زوی د رئيس دفتر او سياسي چارو د رئيس په توګه تعين شي. ما (ګلاب زوی) ورته وويل، چې زه دواړه رياستونه په غاړه نشم اخيستی، که چيري انجنير دوست محمد د رئيس سياسي په توګه وټاکل شي زه به د دفتر رياست په غاړه واخلم. تره کي صاحب ځواب رانکړ. تره کي صاحب له امين سره مشوره وکړه، امين ورته وويل، چې ګلاب زوی وروسته له زخمی کېدو عصبي تکلف لري بايد تداوي شي. پر ځای يې بايد داود تړون وټاکل شي تره کي صاحب ورسره ومنله. په سبا يې انجينر علی شاه پيمان د ژاندارم او پوليسو لوی قوماندان او داود تړون د رئيس دفتر په حيث وټاکل شول.

زه (ګلاب زوی) تره کي صاحب ته ورغلم او ورته ومې ويل: زه او انجينر دوست محمد منتظر يو. تره کي صاحب راته وويل. زويه ته خو ټکنی شوی يې تا خو وزارت نه مانه، پدې وخت کې د امين عقده لا نوره هم زياته شوه. او امين وويل ګلاب زوی بايد المان ديموکراتيک ته د سفير په توګه وليږو. تره کی ورته وويل خير دی عجله به نه کوو قبوله يې نه کړه.

پدې وخت کې حفيظ الله امين په دسيسو او توطيو لاس پورې کړ. تره کي صاحب ته به يې غلط او بې بنياده راپورونه ورکول. په هېواد کې جګړو زور اخستی وو، امين به ويل، د وطنجار امر او قومانده څوک نه مني، اداره نلری او زه (امين) بايد د دفاع وزارت سرپرست شم او يعقوب لوی درستيز وټاکل شي. تره کي ورسره قبوله کړه، وطنجار د کورنيو چارو وزير، شير جان مزدوريار د سرحدونو وزير او يعقوب لوی درستيز وټاکل شول.

حفیظ الله امین دوباره نور محمد تره کي ته پېشنهاد وړاندي کړ، چې ګلاب زوی باید شرقي المان ته د سفیر په توګه ولېږل شي. په همدې وخت کې باید په کوبا (هاوانا) کې د غیر منسلکو هېوادونو د غونډې لپاره د افغانستان پلاوی ټاکل شوی وای. خو د پلاوي د ټاکنې په غونډه کې امین ګډون ونکړ.

امین پدې وخت کې په کمین کې و، هغه په توطیه آمیزه توګه د صحت عامې په تالار کې د ګونډي فعالینو جلسه را وغوښته او په جلسه کې یې اعلان وکړ، چې په هاوانا کې د غیر منسلکو هېوادونو په جلسه کې زموږ محبوب رهبر ونډه اخلي.

اصلاً تره کي صاحب له امین څخه غوښتي وو، چې د هاوانا په غونډه کې هغه (امین) د پلاوي د مشر په توګه برخه واخلي. خو امین له دې کاره ځنګ کاوه. کله چې تره کي هاوانا ته سفر وکړ، امین شوم پلان ته زور ورکړ.

## هاوانا ته د نورمحمد تره کي سفر

نور محمد تره کی د ۱۳۵۸ کال د سنبلې په میاشت کې د ناپېیلو هېوادو په کنفرانس کې د ګډون لپاره کوبا ته روان شو او هلته یې د پاکستان له رهبر ضیاءالحق سره ملاقات درلود.

مرحوم خیال محمد کتوازی چې د هغه وخت د اطلاعات او کلتور وزیر و ، په دې ملاقات کې یې ګډون درلود داسې وایي:

- د دوو رهبرانو په ملاقات کې ضاءالحق د مقدمې په توګه وویل، سوسیالیزم له مسکو څخه لومړی منځنی اسیا ته را واوښت او اوس یې افغانستان ته ټوپ وواهه، بل ګام به یې پاکستان ته وي.

- تره کي صاحب وویل: سوسیالیزم د افغانستان لپاره نه دی، موږ فقط د یو پېشرفته او مترقی افغانستان په جوړولو لګیا یو.

- ضیاءالحق: د ثور انقلاب اخبار چې پاکستان ته راځي په لومړیو وختو کې کنترولیدلی شوای اما اوس له کنترول څخه وتلی دی. تاسو لطفاً دغه اخبار موږ ته مه رالیږئ.

- نور محمد تره کی: تاسو د افغان حکومت مخالفين په پاکستان کې ساتلي دي!

- ضياءالحق: موږ به هغه کسان تاسو ته تسليم کړو خو په دې شرط چې د ثور انقلاب ورځ پانه پاکستان ته را ونه لېږئ او هغه کسان چې تاسو ته تسليم کړو ژوندي پاتي شي او د عادي کسانو په توګه ژوند وکړي.

د مرحوم کتهوازي څخه پوښتنه وشوه چې د اقبال وزيري په کتاب کې دا موضوع په يو څه تغير سره ليکل شويده.

مرحوم کتهوازی وويل: ما دغه موضوع په ليکلي ډول اقبال وزيري ته ورکړي وه خو اقبال وزيري تغير ورکړی دی.

کتهوازي صاحب وويل:

- د پښتنو او بلوڅو په هکله هم د رهبرانو تر منځ خبرې وشوې - د نور محمد تره کي موضعګيري دا ډول وه:

- زموږ موقف داسې دی چې تاسې د پښتنو او بلوڅو حق ورکړئ!

- ضياءالحق د خبرو په پای کې وويل: که دا موافقه عملي شي له هغه څخه وروسته که په افغانستان کې يو تک وشو مسئوليت يې زه په غاړه اخلم.

د جلسې په پای کې دواړو رهبرانو اعلان کړل چې د دې موضوع د رسمي کولو لپاره زموږ د هيوادونو خارجه وزيرانو ته وظيفه ور کړه شي.

کله چې حفيظ الله امين قدرت واخيست، ضياءالحق ورته تيلفون کړی و او ويلي يې وو چې ستا سلف (نور محمد تره کی) له ما سره دې موافقې ته رسېدلی وو، ستاسو نظر څه دی؟ نو ځکه د امين په وخت کې اعلان وشو، چې د پاکستان خارجه وزير (آغاشاهي) کابل ته راځي.

له بلې خوا ډاکټر شاه ولي د افغانستان پخوانی خارجه وزير د افغانستان د مستقل سياست په باره کې ليکي:

(ص ۴۱۴ مثلث بې عيب) - داکتر شاه ولی سابق وزير خارجه افغانستان در بارهٔ

سیاست مستقل ملی دوران خلقی روشنی انداخته میگوید: در کنفرانس عدم انسلاک در هاوانا مرکز کوبا، اتحاد شوروي برخی از هیأتهای نمایندگی را آماده ساخته بود که به اخراج مصر از جنبش عدم انسلاک بخاطر امضای قرارداد کمپ دیوید که مصر را به سازش با اسرائیل و از آن طریق با امریکا میبرد رأی دهند. هیأت نمایندگی افغانستان موضوع قرارداد کمپ دیوید را به ضرر منافع ملی مصر اعلام داشت و لیک اظهار نظر کرد که این امر نباید باعث راندن مصر از جنبش عدم انسلاک شود، این موضوع گیری افغانستان به مذاق مسکو و یاسر عرفات برابر نیامد و بدون شک از هیأت نمایندگی ما عقده گرفت.

احتمالاً له همدې کبله به په افغانستان د روسانو تجاوز په عاجله توګه اجرا شوی وي ترڅو دا موضوع د خارجه وزیرانو له لارې رسمیت پیدا نکړي.

نتیجه: د دا ډول مستقل سیاست په وجه، د شوروي رهبري نور محمد تره کي او حفیظ الله امین ته د تیتو په نظر کتل.

کله چې نور محمد تره کی له هاوانا څخه مسکو ته را ستنیږي، بریژنیف ورسره ملاقات کوي او د حفیظ الله امین خطرناک فعالیتونه ورته په څرګند ډول بیانوي. مګر نور محمد تره کی په آرامه لهجه بریژنیف ته وایي «دا موضوع زه یو خطر نه ارزیابي کوم». بیا د شپې له خوا یو نفر (الکسي پتروف) تره کي ته یو لیک راوړي چې په هغه کې واضح او روښانه د امین د کودتا په باب لیکل شوي وو. تره کی په تبسم سره ورته وایي: «خپلې رهبري ته دا مطلب انتقال کړئ چې تشویش دي نه کوي، زه د امین امکانات پېژنم او وضعه کنترولوم.» (ص ۵۰) له کتاب د کې. جي. بي. (افغانستان د جګړې ډګر).

## د شیریمیتوف هوایي ډګر

هېواد ته د تره کي بیرته راتګ پر وخت الکسي پتروف هم هوایي ډګر ته راغی او غواړي له تره کي سره خبرې وکړي. خو د خبرو فرصت نه مومي. پدې وخت کې یو عجیب او غریب افغان دفعتاً پیدا شو او ویل یې: ترجمان! ترجمان! ترجمان! الکسی پتروف په پښتو او فارسی پوهېده، راساً الکسي پتروف ورسره په

خبرو شروع وکړه. دې عجيب او غريب افغان وويل زه د امين له خوا يوه ډېره مهمه اطلاعيه تاسو ته رسوم خو افغان ترجمان غواړم. نوموړي افغان، الکسی پتروف ته وويل: زما خبرې بايد داود تړون ترجمه کړي... دغه عجيب او غريب افغان وايي: هغه څه چې زه تړون ته وايم رښتيا نه دي...

تړون د امين ارادتمند دی او په عين حال کې د تره کي د سکرتريت آمر دی. تړون دعوت شو، چې ترجماني وکړي دغه عجيب اوغريب افغان د تړون په مخکې وويل: ماته صلاحيت راکړل شوی، چې شوروي دوستانو ته اطلاع ورکړم: په کابل کې د امين پر ضد يوه توطيه (کودتا) شروع کيږي او څلور وزيران غواړي، چې امين له قدرت څخه لرې کړي.

عجيب او غريب افغان فقط همدا خبره د تړون په مخکې وکړه او بلافاصله له سترگو څخه پناه شو، خو تړون له دې وروسته هم له الکسي پتروف او بگدانوف سره په علاقه مندي خبرو ته دوام ورکړ او ويې ويل: «نور محمد تره کی په وضع مسلط نه دی او حتی خپل نژدې ملگري هم نه شي اداره کولی...».

بگدانوف دې خبرو ته حيران پاتي و. ډېر ژر دغه عجيب او غريب افغان بيا را پيدا شو او دا وار يې (د تړون په غياب کې) د شوروي ترجمان له لارې بگدانوف ته اطلاع ورکړه چې: دغه څلور وزيران کودتا نه کوي بلکې حفيظ الله امين د تره کي پر ضد کودتا کوي! (ص ۴۸ - ۴۹).

پورتني متن ډېر سوالونه را په گوته کوي:

۱- عجيب او غريب افغان د (کې. جي. بې.) جاسوس گويا نوم نه لري؟

۲- ولې د ترجماني لپاره داود تړون غواړي، نه بل څوک؟

۳- ولې تړون ته وايي چې څلور وزيران د امين پر ضد کودتا کوي؟

۴- بيا ولې وايي، هغه څه چې تړون ته وايم رښتيا نه دي؟

۵- د تړون په غياب کې بيا ولې وايي چې امين د تره کي پر ضد کودتا کوي؟

دا ټوله د (کې. جي. بي.) دسيسه وه چې تره کی او امين دومره يو پر بل بې

باوره کړي، چې د دوی تر منځ د پخلاينې امکان له منځه يوسي. (ليکوال)

د ويروس A کتاب په (ص ۳۹۱) کې د دغه عجيب او غريب افغان نوم عزيز اکبري ذکر شوی دی چې د سروري د خور زوی دی.

سيد محمد ګلاب زوی وايي:

نور محمد تره کی په شلم د سنبلې ۱۳۵۸ کال د سنبلې په شلم له مسکو څخه کابل ته راوالوت. د امين له خوا جوړ شوی پلان داسې و، چې د تره کي د سپرلۍ الوتکه د ناستې په وخت کې د کابل هوايي ډګر له پاسه د بي بي مهرو د غونډۍ او بت خاک د دافع هوا د توپچې د بطريو پواسطه له منځه يوړل شي. څرنګه چې د امين شوم پلان په مخکې کشف شوی و. د دواړو بطريو د توپچې سلاح فعاليت شنډ شوی و.

حفيظ الله امين په خپل دفتر کې د پورتني شوم پلان په انتظار ناست و. د تره کي د سپرلۍ الوتکه دويم دور ته ولاړه. امين د الوتکې له کېناستو سره سم هوايي ډګر ته ځان را ورساوه. د شورای وزيرانو او نورو لوړ پړو چار واکو له خوا د نور محمد تره کي پذيرايي وشوه. حفيظ الله امين پدې ورځ د شورای وزيرانو جلسه دايره کړه. نور محمد تره کی د هاوانا د غير منسلکو هېوادونو او د مسکو په اړونده خپل راپور وزيرانو شورا ته وړاندې کړ.

نور محمد تره کی صاحب په سبا دفتر ته را نغی تولە ورځ په کور کې استراحت و. د چهار شنبې ورځ يې له امين سره تېره کړه. په څه هکله يې خبرې کړې څوک پرې خبر نشول. زه (ګلاب زوی)، وطنجار، شېر جان مزدوريار له تره کي صاحب سره په ملاقات کولو بريالي نشوو. تنها اسد الله سروري د چهار شنبې په ماښام له تره کي صاحب سره وليدل. تره کي سروري ته ويلي وو، چې د پنجشنبې په ورځ ته (سروري)، ګلاب زوی، وطنجار او مزدوريار راشئ. زه به امين را وغواړم چې سره کښېنو، چې څه خبره ده بحث به پرې وکړو.

سيد محمد ګلاب زوی زياتوي چې:

په سبا د پنجشنبې ورځ موږ څلور واړه تره کي صاحب ته ورغلو، تر دوولسو بجو

منتظر پاتي شوو. پدې وخت کې داود تړون راغی چې امين صاحب وويل چې زما لور ناجوړه ده زه نشم درتلای. وروسته تره کي صاحب امين ته تليفوني وويل، چې ته خو رانغلې ستاسي په منځ کې څه دي چې نه تقسيميږي. امين په خواب کې ورته وويل، چې زه نه درځم دوی ما وژني. تره کي ورته وويل دا څنګه کېدای شي چې زما په دفتر کې تا ووژني. موږ دوه‌ی وخوړه د دوو بجو شا او خوا کې سروري او مزدوريار ولاړل زه (ګلاب زوی) او وطنجار پاتي شوو. کله، چې دفتر ته راغلو ما (ګلاب زوی) او وطنجار بعضي سوالونه او پيشنهادونه تره کي ته ورکړه، تره کي صاحب وويل تاسې نظامي مشاورين ياست جنګ مو خوښيږي. جنګ د حل لاره نه ده. وطنجار ولاړ زه (ګلاب زوی) او تره کی صاحب دوه په دوه پاتی شوو. ما (ګلاب زوی) تره کي ته وويل تا وژني موږ خپل مشکل حلولی شو. تره کي صاحب راته وويل:

بچو، «زه به په داسې کار چې زموږ ګوند له دننه ټوټې ټوټې کړي لاس پورې نکړم. تاسې ته هم سپارښتنه کوم، چې داسې اقدام ونه کړی، چې وضعيت خراب شي، زه به د خپل ژوند د ژغورلو په خاطر يو مچ هم ونه وژنم پرېږدئ، چې زما سرنوشت ګوند او خلک وټاکي.».

د پنجشنبې ورځ د سنبلې ۲۳ مه وه پدی وخت کې ما (ليکوال) ته د تره کي صاحب ياور قاسم تليفوني وويل، چې تره کي صاحب امر وکړ، چې «زما له اجازې پرته يوه الوتکه د بګرام له هوايي ډګر څخه پورته نشي.».

ګلاب زوی دوام ورکوي:

د سنبلې ۲۳ مه د کابل ښار په حزبي سازمانونو کې تبلغات شروع شول، چې ګلاب زوی، اسلم وطنجار، اسدالله سروري او شيرجان مزدوريار په امين باندې کودتا کوله خو کودتا شنډه شوه.

ګلاب زوی زياتوي: سبا سهار په ۸ بجو ملګرو زنګونه را وهل، چې موږ د امين ګروپ له خوا خلع سلاح کيږو او نظامي ملګري له دندو ګوښه کوي.

د سنبلې په ۲۴ د لسو بجو په شا او خوا کې زما (ګلاب زوی) په کور کې اسد الله سروري او اسلم وطنجار ناست وو، چې عزيز اکبري راغی او وويل: ماما (سروري)

زه ستا پر ځای وټاکل او معرفي شوم.

په ۱۱ بجو عزیز اکبري له خپلې شعبې را ته تلیفون وکړ او وې ویل، چې محمد دوست قوماندان قوای مرکز له یوه کنډک سربازانو سره حرکت در وکړ تاسی نیسي. پدې وخت کې انجینر محمد هاشم، چې په هغه وخت کې د اردو د رئیس امور سیاسي مرستیال و هم راغی. انجنیر محمد هاشم له تره کي صاحب سره تلیفوني خبرې وکړې او دا لاندې پوښتنې یې ترې وکړې:

۱- آیا نظامي قوت ته ضرورت شته؟




تره کی صاحب: نه زویه، زه نه غواړم چې حزب په خپل منځ کې وجنګوم.

۲- آیا له خارج څخه د کومک انتظار لرې؟

تره کی صاحب: هیڅ کله نه، دلته یو آزاد ولس پروت دی.

انجنیر محمد هاشم مور ته وویل: زه به ولاړ شم مسئله زما په اړه جدي نه ده. تاسو هم ولاړ شئ.

د جمعې ورځ وه د ماښام په ۸ بجو خبرونو کې یو ناڅاپه لاندې متن خپور شو:

د لومړي وزیر په پېشنهاد او د عمومي منشي او انقلابي شورا رئیس په منظوري فقیر محمد فقیر د کورنیو چارو وزیر، ظریف د مخابراتو وزیر، صاحب جان صحرایي د سرحداتو وزیر او عزیز اکبری د اکسا د رئیس په توګه وټاکل شول.

پورتنی مقرري له دې پرته چې عمومي منشي (نور محمد تره کی) خبر شي په خپل سر حفیظ الله امین کړې وي. او یو بل جنایت یې تر سره کړ. اصلاً نه عمومي منشي منظوري ورکړې وه او نه انقلابي شورا دایره شوي وه.

ګلاب زوی دوام ورکوي:

د شنبې په ورځ ۲۵ سنبلې د شوروي د سفارت رهبري غړي د تره کي صاحب کور ته ولاړل امین یې هم د تره کي صاحب کور ته را دعوت کړ. د داود تړون په شمول د تره کي کور ته روان شول. تړون تفنګچه په لاس د حرم سرای د دویم پوړ په زینو پورته شو، امین یې شاته روان وو، د هغه ښی خوا ته سرور، له شا یې رشید

او کینې خوا تـه وزیـر ځیـرک او بیـا د ټولـو شـا تـه حبیب الرحمـن روان و.

پـر داود تـړون چـې ځرخـي تفنگچـه يـې پـه لاس کـې وه د تـره کـي صاحـب د ياورا
ببرک او قاسـم لـه خـوا غبرګ وشـو. چـې لـه سـلاح سره مـه راځۍ، د تـړون او ياورانو
منځ لفظـي شـخړه را پیـدا شـوه پـدې وخـت کـې د تـړون لـه خـوا پـر ياورانـو ډز وشـ
ډاکټـر عظیـم چـې د تـره کـي صاحـب فامیـلي ډاکټـر و او لـه ياورانـو سره ولاړ و ولگېده
ټپي شـو. د امیـن د محافظینـو لـه خـوا ډزی شروع شـوې. چـې پـه نتیجـه کـې یـې وزیـ
ځیـرک چـې د حبیـب الرحمـن د مخـه او تـړون پـه زینـو کـې و د شـا لـه خـوا ولگېدل ا
ځـای پـر ځـای يـې سـاه ور کـړه او ووژل شـول. امیـن شـا تـه پـه منـډه ځـان خپـل دفت
تـه ورسـاوه.

پـه دې اړه هاشـم نـوري لـه ملالـۍ تـره کـي څخـه چـې دا صحنـه یـې لیـدلي وه
سـوالونه طـرح کـړي، چـې مختـصر بیـان یـې دا ډول دی.

مـا (ملالـۍ) غوښـتل خپـل لاسـونه ومینځـم چـې حفیـظ اللـه امیـن او ورسره ملگری
یـې پـه زینـو پورتـه کېـدل، دوی لا پـه زینـو کـې وو، چـې خپـل فیرونـه یـې شروع کـړل.
زه پـه عیـن حـال چـې ډېـره وډارېـدم، دې صحنـې تـه پـه عجلـه ورسـېدم او و مـې لیدل
چـې داود تـړون ولوېـده.

پـه داسـې حـال کـې چـې دوی د تـره کـي صاحـب لـه دفـتر څخـه پـه کافي اندازه
لـرې وو. زه پـه داود تـړون مصروفـه شـوم چـې حفیـظ اللـه امیـن او ورسره ملگـرو یـې
منـډې وهلـې.

د داود تـړون چـپ غـوږ تـه نـږدې مرمـۍ لگېـدلي وه. د تـړون ښـۍ خـوا تـه دیـوال و
او چـپ لاس تـه او هـم شـا تـه یـې خپـل محافظیـن او ملگـري روان وو.

د داود تـړون ځرخـي تفنگچـه هـم د ده پـه څنـگ کـې پرتـه وه او د دغـې تفنگچې ډېر
پوچکونـه د ده شـا او خـوا پراتـه وو. متاسـفانه داود تړون سـا ورکـړې وه.

د گلابـزوی او ملالـۍ تـره کـي لـه برداشـت څخـه داسـې استنباط کېـدای شي چې
داود تـړون د خپلـو ملگـرو لـه خـوا ویشـتل شـوی دی. شـاید پـه دې موضـوع کـې نوري
وژنـې هـم پـه دی غـرض شـوې وی چـې څـوک ژونـدی شـاهد پـاتي نـه شي. کـه دا

استنباط غلط وبولو او بدبیني یې وګڼو نو بیا یو مهم سوال پاتې دی، چې دوی (د امین ډلې) څه حق درلود چې د هېواد اول مقام (شخصیت) ته له وسلو سره ورځي؟

په ټول جهان کې دا ډول تعامل نشته، ولو که شرایط هر څومره په اصطلاح داغ او انقلابي هم وي.

د لیکوال نتیجه ګیري: د څرخي تفنګچې پوچکونه دا مفهوم افاده کوي چې مرحوم داود ترون واقعاً خپله څرخي تفنګچه کارولي ده او فیرونه یې شروع کړي دي، ځکه مړی خو فیرونه نه شي کولای.

له بلې خوا ډاکټر عظیم خان چې له یاورانو سره ولاړ دی زخمي شوی دی. د دې معنا دا ده چې داود ترون اول فیرونه شروع کړي دي.

خلاصه دا چې بې له کې. جي. بي. بل څوک داسې توطئیه نشي جوړولای.

د شوروي سفیر او ملګري یې حیران پاتي شول په امین پسې ورغلل او له هغه ځایه سفارت ته ولاړل.

کله چې ما (لیکوال) ته د پورتنۍ واقعې خبر ورسېده، د بګرم هوایي ګارنیزون مې په لومړۍ درجه احضاراتو ایقاض کړ. پیلوټان مې په طیارو کې کېنولي وو، امر ته منتظر وم، فضا ګونګه وه او له هیڅ مقام څخه مو کوم امر تر لاسه نکړ. له څه وخته وروسته د تره کي صاحب یاور ببرک تلیفون راته وکړ، چې تره کی صاحب وایی احتیاط کوه چې کوم محاربوي عمل تر سره نکړې ټول ګوند به له منځه ولاړ شي. څه وخت وروسته ماښام د ۷ بجو شا او خوا ما (لیکوال) د هوایي او هوایي مدافعې سیاسي امر (دوست محمد) ته تلیفون وکړ او د وضعې په اړوند مې ترې وپوښتل، هغه را ته وویل، زه او مشاور مې د باندې له خوا کوټه قلفي شوي یو له وضعې خبر نه یو.

مور تر سهاره پورې په تیارسۍ کې وو. نه زه او نه زما مشاور په وضعه پوهېدولو. سبا په ۲۶ سنبلې زه (لیکوال) د امین له خوا وغوښتل شوم را ته یې امر وکړ. تر څو، چې د سیاسي بیرو او انقلابي شورا جلسه نه وي دایره شوې بګرام ته نشئ تلای. دلته په ارګ کې اوسه او د دلکشا په ماڼۍ کې یې په یوه خونه کې بندي

کړم. د شپې لـه خـوا اقبـال وزيـري سياسي رئيـس او انجيـنر محمـد هاشـم چې د هغ
مرستـيال و، زمـا سره پـه يـوه اطـاق کـې اسـتراحت کاوه. تـر ځلـورو ورځـو پـورې بندي
پاتـې شـوم. کلـه چـې د سياسي بېـرو او انقـلابي شـورا جلسـه دايـره او حفيـظ اللـه امين
د عمومـي منـشي او انقلابـی شـورا رئيـس پـه څوکـۍ وټـاکل شـو. دا يـې د زړه ارمـان
. پـه بلـه ورځ يـې زه (ليکـوال) د هوايـي او هوايـي مدافعـې د ځـواک د درسـتيز وال پـ
حيـث وټاکلـم.

گلاب زوی زياتوي:

امين د شـپې لـه خـوا پـه تـره کـي بريښـنا او اوبـه قطـع کـړې، تـره کـی صاحب يې
لـه خپلـې مېرمنـې سره د حـرم سرای څخـه گل خانـې تـه انتقـال کـړ.

عبدالرشـيد جليلـی او محمـود سـوما امـين تـه مشـوره او نظـر ورکـړ، چـې تـر څو نور
محمـد تـره کـی وي نـو خلقيـان تـا (اميـن) نـه منـي. نـور محمـد تـره کـی ژر تـر ژره بايد
ووژل شي. هغـه و چـې امين بـې لـه کومـې محاکمـې او د ټولـو انسـاني نورمونـو پـر خلاف
پـه ډېـر ظالمانـه توگـه هغـه د ۱۳۵۸ کال د مېـزان پـه ۱۷ نېټـه پـه شـهادت ورسـاوه. د نور
محمـد تـره کـي د شـهادت جريـان بـه وروسـته پـه مفصلـه توگـه لوسـتونکو تـه وړانـدې
کـړم (ليکـوال).

گلاب زوی زياتوي:

د ۱۳۵۸ کال د مېـزان پـه ۲۲ پـه اوومـې فرقـې او يـو شـمېر نـورو قطعاتـو او جزوتامونو
کـې مسـلح قيامونـه شروع شـول. اميـن پـدې بانـدې پـوه شـو چـې پـه حـزب کـې ورتـه
سـتونزې را پيـدا کيـږي او څـوک يـې نـه منـي. همـدا علـت و ، چـې حفيـظ اللـه امين د
شـوروي اتحـاد رهـبري تـه رجـوع وکـړه او نظامـي مرسـته يـې ورڅخـه وغوښـته. شوروي
اتحـاد ور سره ومنلـه او هوکـې يـې کـړ. اميـن تـه يـې وويـل چـې تاسـی پـلان لـرئ، چـې
د تاجبيـگ او دارالامـان قـصر تـه انتقـال شـئ. مـوږ حـاضر يـو چـې ستاسـو امنيـت پـه
تاجبيـگ او درالامـان قـصر کـې وسـاتو.

د عقـرب د ۱۴ نېټـې مخکـې تاجبيـگ قـصر تـه دفترونـه انتقـال شـوي وو. د امين
د امنيـت لپـاره د شـوروي يـوه لـوا پـه دارالامـان کـې ځـای پـر ځـای شـوې وه. پـدی
وخـت کـې پـه افغانسـتان کـې نظامـي او سياسي وضعـه کړکېچنـه وه. خصوصاً پـه پکتيا،

پکتيکا او غزني ولايتونو کې. امين شورويانو ته وړانديز وکړ چې، په يادو سيمو کې نظامي عمليات تر سره شي. شورويانو ځواب ور کړ چې دا يوه امنيتي لوا ده د عملياتو اجازه نلري. شوروي رهبري ته پېشنهاد وړاندې کړئ، چې نور قطعات او جزوتامونه را وليږي. د امين له خوا شوروي رهبرى ته پېشنهاد وړاندې شو. دا پېشنهاد د شوروي له خوا منظور شو.

شوروي اتحاد درې د ديسانت ميکانيزه فرقې افغانستان ته را واستولې چې:

۵مه فرقه د شينډنډ په هوا يي ډګر، ۱۰۸ فرقه د بګرام په هوايي ډګر او ۱۰۳ فرقه د کابل په هوايي کې ځای پر ځای شوې.

حفيظ الله امين د سياسي بېرو جلسه دايره او ګزارش يې ورکړ، چې اوس نو د ثور د انقلاب برياليتوب تضمين شو. د شوروي اتحاد انترناسيونالستي قطعات او جزوتامونه را ورسېدل.

د شورى اتحاد رهبرى د امين د له منځه وړلو پلان لا له مخکې طرحه کړى و. دا پلان د قوس په ۱۴ نېټه بايد تر سره شوى واى، اما د بعضو عواملو له کبله وځنډېده. په ياده نېټه امين د دوه سوو حزبي غړو او کدرونو د وژلو پلان طرحه کړى و. په همدې نېټه يې د څرخي پله په پليګون کې تر خاورو لاندې کړل.

حفيظ الله امين د جدي په ٦مه پلان درلود چې درى سوه حزبي غړي له څرخي پله زندان څخه وباسي او د څرخي پله په پليګون کې يې ووژني او تر خاورو يې لاندې کړي.

حفيظ الله امين د جدي په ٦مه چې د شوروي عسکرو حمله ور باندې وشوه او ډزې يې واورېدې. هغه چا ته چې د ده چېرکټ ته نژدې ولاړ و داسې وويل: نور محمد تره کی مې د شورويانو په اشاره وژلى دى، اوس يې ما ته خيانت وکړ.

شوروي اتحاد د امين د نظام د ړنګېدو له پلان سره سم د جدى په ٦مه د ماښام په ۷ بجو او ۳۰ دقيقو باندې په حفيظ الله امين بريد وکړ او امين يې ووژل او د امين واکداري ختمه شوه.

# اروا ښاد نور محمد تره کی څنگه په شهادت ورسید؟

## بخش اول - د تحقیق جریان:

اسم من محمد اقبال ولد عبدالقیوم رتبه ام لومړی بریدمن آمر کشف گارد (خانهٔ خلق) و مسکونه پنجصد فامیلی خیرخانه مینه.

بتاریخ شانزدهم میزان سال ۱۳۵۸ من به دفتر بودم و می خواستم بطرف منزل بروم. به همین دلیل یونیفورم نظامی ام را نیز اورده و لباس شخصی به تن کرده بودم. من منتظر بودم تا اگر کدام موتر از داخل خانهٔ خلق (ارگ ریاست جمهوری) بطرف شهر برود و من نیز بتوانم توسط آن خود را به شهر برسانم و از آنجا توسط بس های شهری به منزل بروم. اما درین هنگام تلیفون دفترم به صدا درآمد. گوشی را برداشتم، جانداد قوماندان گارد بود. او از من خواست تا نزد او در دفترش که در طبقه بالا قرار داشت بروم. وقتی وارد دفترش گردیدم ازینکه با لباس شخصی نزدش رفته بودم معذرت خواستم. جانداد گفت فرق نمیکند. بیا بنشین روزی نیز آنجا نشسته بود و متصل رسیدنم ودود هم آنجا آمد.

- روزی و ودود کی ها هستند؟

روزی آمر سیاسی گارد (خانهٔ خلق) و رتبه اش لومړی بریدمن است. همچنان ودود آمر مخابره گارد (خانهٔ خلق) و رتبه اش تورن است.

به هر حال جانداد رویش را جانب ما دور داده گفت «همین طور مسأیل است که چاغ نمیشویم.».

بعد از شنیدن این قسم حرف های جانداد من با خود فکر کردم که ممکن کدام قطعه منتظره باشد و یا کدام جایی چیزی واقع شده باشد و یا هم امپریالیزم در کدام جایی به کدام توطیه دست زده باشد و این قوماندان صاحب حالا میخواهد ما صاحب منصب ها را ازین موضوع با خبر بسازد.

من از او پرسیدم که خیرت است؟

قوماندان صاحب (جانداد قوماندان گارد) گفت که نظر به امر کمیته مرکزی،

بیروی سیاسی و فیصله شورای انقلابی باید رفیق تره کی از بین برده شود و من به شما دستور میدهم که باید این کار را انجام بدهید.

من گفتم: قوماندان صاحب ! وقتی کمیته مرکزی، شورای انقلابی و بیروی سیاسی چنین فیصله نموده است باید درین مورد سندی نیز وجود داشته باشد. آیا چنین سندی وجود دارد؟

جانداد گفت: « کم عقل ! شما چې سندی میخواهید؟ پلینوم کمیته مرکزی دایر شد و از شورای انقلابی کشیدیش از کمیته مرکزی خارج ساخته شد. او (تره کی) حالاً یک آدم عادی است در مورد (قتل تره کی) تصمیم گرفته شده و این طور نیست که این موضوع مخفی باشد.».

من برایش گفتم که پس درین صورت باید خبر از طریق رادیو اعلان شود.

جانداد گفت «اعلان میکنه، خو به یک شکل دیگه. حزب اسرار پنهانی هم داده. شما دیگه شور داده نمیتوانین من به شما امر میکنم که شما این کار را اجرا کنید. »

جانداد در ختم حرفهایش به روزی وظیفه داد تا نزد لوی درستیز برود زیرا به او کار دارد روزی رفت ودود نیز از آنجا خارج شد و من هم به دفترم در طبقه پایین برگشتم. لحظاتی بعد جانداد دوباره مرا نزدش خواسته برایم پنجصد افغانی داده گفت: «این پنجصد افغانی را بگی و برو هشت متر تکه سفید را در بازار بگیر و به شکل روجایی جور کو و پس پیش من بیا.».

من این کا را انجام داده دوباره نزد او برگشتم. روجایی را بالای میزش گذاشتم و او آنرا گرفته بداخل میزش گذاشت. درین هنگام روزی که با لوی درستیز ملاقات کرده بود نیز آمده به جانداد گفت که لوی درستیز میگوید: «ایره (تره کی) در پهلوی مرقد برادرش در اونجه دفن کنید، همونجه که پارسال برادر تره کی فوت کرده بود. در او وقت جانداد همرای شان رفته بود و (مرقد برادر تره کی) را جانداد برایتان نشان میدهد ».

با شنیدن این حرفها جانداد به روزی گفت که لوی درستیز اشتباه نموده است،

زیرا سال گذشته در مراسم برادر تره کی او یعنی جانداد نه بلکې شخصاً لوی درستیز رفته بوده است و آدرس قبر برادر تره کی را نیز خود لوی درستیز باید بداند. بناً او یعنی (روزی) باید بار دیگر نزد لوی درستیز برود و آدرس قبر را از او بپرسد. اما روزی بهانه آورد و از رفتن دوباره نزد لوی درستیز ابا ورزید. بناً جانداد رو به من نموده گفت تا من نزد لوی درستیز بروم و آدرس قبر برادر تره کی را از او بگیرم. من نزد لوی درستیز رفتم و او برایم گفت که قبر برادر تره کی در (قول آبچکان) در نزدیک سرک و در کنار یک درخت قرار دارد. حالا این وظفه جانداد است که آنرا برای تان یافت کند.

وقتی نزد جانداد برگشتم و جریان برایش تعریف کردم، برایم گفت که او شخصاً مصروف است و نمیتواند برود قبر مذکور را پیدا کند. بناً به من وظیفه داد تا این کار را انجام دهم. من هم به (قول آبچکان ) رفتم. اما باوجود تلاش زیاد موفق به یافتن قبر برادر تره کی نشدم. بلاخره از دو تن ریش سفید های محل آدرس را پرسیدم و آنها قبر مذکور را نشان دادند. من بعد از نشانی کردن قبر، دوباره نزد قوماندان گارد یعنی جانداد بر گشتم و برایش از این موضوع گزارش دادم. جانداد برایم گفت «در اونجه نفرهای کام (سازمان استخبارات) موظف هستند و حالا اگر کسی سرت فهمیده باشد و موضوع افشا شده باشد، تو خودت از دست خود اعدام میشی.». من برایش اطمینان دادم که چنین چیزی اتفاق نیافته است.

من تقریباً تا ساعت هشت و نیم شب در دفتر بودم. بعداً جانداد مرا دوباره نزدش فرا خوانده گفت باید با روزی به یک جایی بروم. روزی موتر (لنداور) سفید رنگ را سوار شد و ما بطرف پل محمود خان براه افتادیم. من از او پرسیدم که کجا میخواهد برویم؟ او برایم گفت که لوی درستیز برایش هدایت داده است تا به تپه شهدا رفته و از انجا یک مقدار سنگ را با تعدادی از سر بازان به (قل آبچکان) نزد مرقد برادر تره کی باید انتقال دهیم، وقتی به تپه شهدا رسیدیم ما را غوند محافظ رهنمایی کردند. در آنجا چهار تن صاحب منصب که بیل و کلنگ با خود داشتند با ما پیوستند. اما آنها از دادن سنگ به ما معذرت خواستند. درین هنگام روزی به یادش آمد که چند روز قبل برای نوشتن شعار ها آهن های ضخیمی را به فابریکه حربی انتقال داده است. بناً تصمیم گرفته تا به آنجا رفته به عوض سنگ چند

پارچه آهن را با خود بگیریم. به هرحال بعد از بدست آوردن دو تخته کلان آهن را از فابریکه حربی و گذاشتن آن در موتر، روزی رویش را طرف من نموده گفت: «حالا باید همان قبر برادر تره کی را برایم نشان بدهی.». بعد ازآنکه من قبر را نشان دادم او به صاحب منصبان که با ما آمده بودند هدایت داد تا قبر را حُفر کند. ما افرادی را که با خود از غُند محافظ آورده بودیم دوباره به محل وظیفه شان رساندیم و خود ما دوباره به خانهٔ خلق آمده نزد جانداد رفتیم.

روزی برای جانداد از آماده بودن قبر و سایر ترتیبات اطمینان داد. جانداد گفت «بسیار خوب شما بروید به «اونجه» ودود نیز قبل «اونجه» رفته است.

من از محل نگهداری تره کی اطلاع نداشتم از روزی پرسیدم که تره کی در کجا است، روزی برایم گفت «همینجه در کوتی باغچه است».

روزی موتر را دهن دروازه کوتی باغچه توقف داده اول خودش و بعداً من به داخل رفتیم.

«اینجه، در اطاق» ما هر سه بطرف اطاق روان شدیم. درب منزل اول قفل بود اما روزی کلید با خود داشت و دروازه را باز کرد نخست روزی به تعقیب او ودود و در اخیر هم من بطرف طبقهٔ بالا روان شدیم. در آنجا نیز دروازه قفل بود. با وجود دق الباب کردن کسی در را بروی ما باز نکرد، اما روزی از طریق دیگر وارد اطاق شد. ما در بیرون اطاق صدای حرف زدن او با تره کی را میشنیدیم، پس از لحظه روزی ما را صدا زد تا به داخل اطاق برویم. وقتی تره کی را دیدم که چپن به تن داشته و به پا استاده بود، روزی برایش گفت ما آمدیم تا ترا به جای دیگر ببریم. تره کی صاحب از ما خواست تا بکس هایش را نیز با او بیاوریم. روزی برایش گفت «شما اول با ما بیایید ما بعداً بکس های تانرا میاوریم تره کی بر گشت و یک بکس کوچ را باز کرده گفت «در همی یک چهل وپنج هزار روپه و یک چیزی زیورات است. اینمی را اگر اوشتک ها زنده بودند بری امی اوشتک ها بتین.».

روزی برایش گفت اینها را ما بعداً روان میکنیم ولی حالا شما با ما بیایید. به این ترتیب نخست تره کی و به تعقیب آن روزی بطرف طبقه پایین روان شدند. زمانیکه به طبقه پایین رسیدیم روزی تره کی را به داخل یک اطاق هدایت داد.

من تا آن زمان نمیدانستم که روزی چې هدایت گرفته که چگونه تره کی صاحب
به شهادت برساند. در واقع درین هنگام قومانده ما بدست روزی بود. او ما را نیز
اطاق طلبید. تره کی در آنجا ساعت بند دستی اش را باز کرده و همرا با کارت حز
اش که انرا در جیب خود داشت به روزی داده گفت «این ها را به حفیظ الله امی
بدهید.». روزی آنها را گرفته به کنار گذاشت. بعداً روجایی را گرفته وبه من گفت
«دست هایش را بسته کو. یک دستش را خود روزی بسته کرد ویک دست دیگرش
را همی ودود هم کتی ما کمک شد.».

بعد از بستن دستهای تره کی، روزی به ما گفت شما همین جا باشید تا در را
ببندم. درین هنگام تره کی از ودود خواست تا یک گیلاس آب برایش بیاورد. ودود
به من گفت تا این کار را انجام دهم. من گیلاس را گرفتم و خواستم آب بیاورم
که روزی بالایم صدا زد: چې میکنی؟ گفتم تره کی آب میخواهد روزی گفت: «بیا
حالا وقت آب نیست.». به اطاق برگشتم. ودود پرسید آب نیاوردید. روزی نگذاشت
اینبار ودود گیلاس را گرفت خواست آب را بیاورد اما روزی او را مانع شد. روزهای بعد
و وقتی من از روزی پرسیدم که چرا نگذاشتی برای تره کی آب بیاورم گفت «مه
رواداری نداشتم که باز اگر آب میخوردند به تکلیف می شدند.».

بعداً روزی به تره کی گفت که در روی بستر بخوابد «وقتی او سر بستر خوابید
مرا لرزه گرفت نمیتوانستم حرکت کنم روزی دهنش را محکم گرفت. پاهایش حرکت
کرد. روزی بالای ودود قهر شد که پاهایش را بگیر ! ودود پاهایش راگرفت، اما باز
هم حرکت میکرد. درین هنگام روزی به من گفت که: زانویش بگیر که شور نخورد
! بعد از چند دقیقه دهنش را رها کرده بالشت را روی دهنش گذاشت و این بار وقتی
رهایش کرد، تره کی صاحب جان داد.».

در این هنگام روزی به من گفت تا نزد قوماندان گارد بروم و همان تکه را که
قبلاً آورده بودم از نزدش بیاورم. وقتی همراه با تکه نزد آنها برگشتم دیدم که روزی
و ودود جسد تره کی را توسط شال به بیرون در دهن دروازه انتقال داده اند. من هم
به کمک آنها شتافتم و ما جسد را به موتر بالا کردیم. در نزدیک قوماندانی گارد
روزی بیل ها را نیز گرفت و در همان لحظه جانداد قوماندان گارد نزد ما آمده یک

دستگاه مخابره را به روزی داده گفت: «هر چند امنیت شما توسط «کام» گرفته شده و تعقیب می شوید با آنهم این مخابره نزد تان باشد تا اگر به مشکلی برخوردید با من داخل تماس شوید.».

بعداً من در جریان راه متوجه شدم که واقعاً یک موتر ثارندوی ما را تعقیب میکرد.

- از کدام حصه در تعقیب شما بود؟

تقریباً از حصه پښتونستان واټ به تعقیب ما بود و بعداً وقتی ما جانب قل ابچکان پیچیدیم قریب بود موتر ما با موتر مذکور تصادم نماید. اما سرنشینان موتر مذکور بدون آنکه چیزی بگویند موتر شانرا عقب کشیدند و ما بطرف قل آبچکان روان شدیم. وقتی آنجا رسیدیم جسد تره کی را که در همان شال پیچیده شده بود از موتر پایین کرده لباس هایش را تبدیل نمودیم. روزی لباس او را گرفته به موتر گذاشت و جسد را داخل کفن پیچاند و با احترام زیاد به قبر گذاشتیم. بعداً با همان دو تخته آهن که قبلاً اورده بود سر قبر را کاملاً پوشیدیم و خاک بالایش ریختیم. به تعقیب آن دو دانه سنگ دیگی را که در بالای قبر گذاشته میشود از بالای قبر های دیگر آورده بالای قبرش گذاشتیم و آنرا منظم درست کردیم.

بعد از آن روزی به جانداد تیلیفون کرده گفت «قوماندان صاحب! ما از قل آبچکان گپ میزنم و همو وظیفه که به ما داده بودید ختم شد.». جانداد در جواب گفت «بیائید». وقتی ما نزد جانداد رسیدیم او بالای روزی قهر شد که چرا در مخابره گفتی ما از قل آبچکان گپ میزنم؟ «تو باید میگفتی که پلان مرکز هستم و فلانی مرکز را کار دارم.». جانداد گوشی تیلیفون را برداشت به کدام شخص تیلیفون کرد، درین هنگام ما هر سه گریه میکردیم.

وقتی جانداد صحبت اش را در تیلیفون تمام کرده به ما گفت هر چند افراد «کام» نیز در قل آبچکان وظیفه اجرا میکنند اما با آنهم من با علی شاه قوماندان ثارندوی صحبت نموده و برای او گفتم که یک پهره دار را برای امنیت قبر به آنجا بفرستد. تا کسی جسد را از قبر بیرون نکند. او بعداً بالای ما سه تن قهر شد که «شما گریه نکنید! متأثر نباشین. این فیصلهٔ حزب است. فیصلهٔ کمیته مرکزی

است و ما و شما مجبور هستیم که از هأیت رهبری اطاعت کنیم.».

او بعداً مرا به نان دعوت کرد اما من برایش گفتم که نان خورده نه میتوانم.

ودود گفت هر چند نان خورده است ولی اشتها ندارم و نان خورده نمیتوانم.

- چند بجه شب بود که شما بازگشت کردید از دفن کردن؟

تقریباً درحدود دونیم بجه بود که ما برگشتیم.

- وقتی که تره کی صاحب به شهادت میرسید او برای شما نگفت که نکنید این کار را؟

تره کی صاحب هیچیز نگفت، صرفاً همان ساعت و کارت حزبی اش برای ما داد تا به امین بدهم. یک مطلب دیگر را فراموش کردم که بگویم که وقتی من به جانداد قوماندن گارد گفتم که اگر برای قتل تره کی دستور از طرف حزب داده شده پس باید این فیصله حزب از طریق رادیو پخش شود. جانداد به من گفته بود که «اعلان میشه از رادیو مگر به یک شکل دیگر.» و بعداً فردای همان روز وقتی مرگ تره کی (به بهانه مریضی) از رادیو نشر شد جانداد رویش طرف ما گشتانده گفت «رفقا اینه نه گفته بودم برای تان که از رادیو اعلان میشه اما به یک شکل دیگه؟».

*پایان بخش اول*



**نوت:** این استجواب به ساعت دو وچهل دقیقه بعد از ظهر روز بیست چهارم جدی سال ۱۳۵۸ توسط سر خارمن عبدالرحیم و خارمن جمعه خان به صفت هأیت تحقیق صورت گرفته است.

*ماخذ روزنامه انیس چهارم دلو ۱۳۵۸ شمسی.*

در بخش دوم حرفهای ودود آمر مخابره ارگ را خواهید خواند که نه تنها از قتل نور محمد تره کی بلکې از چگونگی دستگیری خانواده و محافظین تره کی نیز میگوید.

اسم من عبدالودود و رتبه ام تورن میباشد. در ابتدا به صفت آمر مخابره در گارد ایفای وظیفه میکردم ولی بعداً به ستر درستیز به مدیر کام (مدیر استخبارات) تعین گردیدم.

اما از آنجایکه هنوز شخص دیگری بجای من در گارد مقرر نه شده بود من هر دو وظیفه را به شکل همزمان به پیش می بردم یعنی روز ها در ستر درستیز و عصر ها در گارد ایفای وظیفه میکردم. به همین دلیل من در شب ۱۷/۱۶ میزان سال ۱۳۵۸ در گارد نوکریوال بودم. دقیق به یاد ندارم اما فکر میکنم حوالی ساعت هفت یا هفت نیم شام بود که جانداد قوماندان گارد برایم تیلیفون کرد و مرا نزد خود فرا خواند. او در آنجا از موضوع به شهادت رسانیدن تره کی برایم گفت. من از مشکلات این موضوع در همان ساعت شب آن هم بدون آمادگی قبلی برایش یاد آور شدم. جانداد برایم گفت همه ترتیبات قبلاً توسط روزی و اقبال به هدایت لوی درستیز گرفته شده است. او گفت تو صرفاً برو، نوکریوالی ات را تبدیل کو و پس بیا.

من به دفتر خود رفتم و جگړن ظاهر را بجای خود نوکریوال تعین کرده، دوباره نزد جانداد برگشتم.

روزی و اقبال نیز آنجا آمدند، جانداد بعد از رسیدن آنها باری دیگر به موضوع قتل تره کی اشاره نموده از ما خواست تا بنا بر فیصله حزب باید تره کی را از بین ببریم.

من از شایعاتی یادآور شدم که از فرستادن تره کی به شوروی برای تداوی حکایه میکرد. جانداد گفت به دلیل عدم موافقه دولت شوروی، حزب تصمیم گرفته تا نام برده از بین برده شود. روزی نیز حرفهای جانداد را تائید نموده افزود ما نمیتوانیم از تصمیم کمیته مرکزی و بیروی سیاسی سر پیچی کنیم لحظات بعد ما توسط یک موتر لنداور سفید که روزی آنرا اماده کرده بود به جانب کوتی باغچه رهسپار شدیم. در آنجا به طبقه دوم نزد تره کی رفتیم، نخست روزی وارد اطاق شد و سپس من و اقبال را نیز بداخل طلبید.

- لطفاً روزی و اقبال رامعرفی نماید!

روزی آمر سیاسی گارد و رتبه اش لومړی بریدمن بود، اقبال نخست آمر کشف گارد

بود که بعداً به صفت آمر استخبارات گارد مقرر شد و رتبه او نیز لومړی بریدمن بود.

زمانیکه من و اقبال داخل اطاق شدیم روزی از تره کی خواست تا با ما بیاید تره کی کارت حزبی خود را به روزی داده در خواست نمود تا آنرا به امین بسپاریم برعلاوه تره کی تقاضا نمود تا یک بکس سیاه رنگ را که حاوی پول بود به خانمش، د صورتیکه زنده باشد، بسپاریم. بعداً همه به طبقه پایین آمدیم، در آنجا بطرف راست یک اطاق کوچک وجود داشت که در آن یک تخت خواب که پایه نیز نداشت موجود بود. فکر میکنم تخت خواب مذکور از خدمتگار تره کی و یا هم پهره دار شان بوده باش.

به هرحال تره کی را به همین اطاق رهنمایي نموده و خودش رفت تا دروازه دهلیز را قفل نماید. درین هنگام تره کی از من آب خواست ومن هم به اقبال گفتم تا او رفته آب بیا ورد. اقبال خواست آب بیاورد اما روزی مانع شده گفت «آب نبر، روجایی را بگیر و دستهایش بسته کو!». من از اطاق خارج شدم تا آب بیاورم ولی نتوانستم گیلاس را بیابم که در ان آب بیاورم. وقتی من دوباره به اطاق برگشتم دیدم که روزی واقبال دستهای تره کی را بسته اند.

- با چي دستهای شان را بسته بودند؟

با رویجایی بسته بودند. آنها هم چنان به تره کی گفته بودند تا روی تخت بخوابد «و در این وقت که می رسیدم، او به تخت دراز کشیده بود و روزی دفعتاً بالای گلونش فشار آورد و بدستها او را گرفت و اقبال هم در بالای سینه.». بعداً در حالیکه اقبال هم چنان پا ها و سینه تره کی محکم گرفته بود روزی یک بالشت کوچک را نیز بالای دهن و بینی اش گذاشت. هر چند آنها از من خواستند تا به کمک بشتابم اما من عملاً درین کار شرکت نکردم، ولی با وجود آنهم از آنجایکه در بالای سر آنها قرار داشتم همه جریان را به چشمهای خود دیدم. «ده یا پانزده دقیقه وقت را در بر گرفت که تره کی به شهادت رسید. بعد از این هر سه ما او را داخل یک رویجایی و یک کمپل انداختیم و تا دروازه کوتی باغچه انتقال دادیم.».

- درین وقت ساعت چند بود؟

تقریباً ساعت یازده نیم شب بود در آنجا روزی از اقبال خواست تا نزد جانداد برود کفن را بیاورد. وقتی اقبال دوباره برگشت ما جسد تره کی را در همان موتریکه قبلاً آماده

شده بود گذاشته جانب دروازه شرقی گارد حرکت کردیم. در آنجا جانداد نزد ما آمد و یک دستگاه کوچک مخابره را به روزی داد. ما از طریق دروازه شرقی گارد که دروازه جنگی هم نامیده میشود خارج شده از قصر نمره یک گذشته وارد جاده ولایت شدیم و از آنجا نخست به سالنگ واټ و سپس به قل آبچکان رفتیم. در آنجا واقعاً قبر را از قبل آماده ساخته بودند. آنها به من وظیفهٔ پاسبانی را دادند و خود شان جسد تره کی را از کمپل و رویجایی کشیده به آن روجایی دیگر که کفن گفته آنرا آورده بودند، گذاشتند. بعداً جسد را داخل قبر گذاشته و قبر را نیز به یک تخته آهن که از قبل در آنجا گذاشته شده بود بستند و بالای آن خاک ریختند. با اتمام کار، روزی توسط مخابره به جانداد از خاتمه یافتن این ماموریت اطمینان داد و به این ترتیب ما دوباره بطرف گارد به راه افتادیم.

وقتی وارد دفتر جانداد شدیم او روی چپرکتش خوابیده بود. جانداد بعد از شنیدن گزارش تیلیفون را بر داشته به علی شاه پیمان قوماندان خارندوی صحبت نمود. او که به زبان روسی صحبت میکرد از قوماندان خارندوی خواست تا در بالای قبر تره کی افرادی را برای پاسبانی بگمارد.

بعداً جانداد ما را به نان دعوت کرد ولی ما همه از خوردن نان ابا ورزیدیم. سپس جانداد به ما اطمینان داد که نه باید تشویشی را به خود راه بدهیم زیرا انچه را ما انجام داده ایم فیصله بیروی سیاسی وکمیته مرکزی حزب بوده و ما درین قیضه هیچ مسؤلیتی نداریم.

- وقتی شما به دفتر جانداد قوماندان گارد آمدید و جریان دفن شاد روان تره کی صاحب را برایش اطمینان دادید ساعت چند بود؟

تقریباً یازده و نیم و یا دوازده و نیم شب.

- در مورد انتقال فامیل شاد روان تره کی از حرمسرای به جای دیگر روشنی بیندازید!

فکر میکنم دو یا شاید هم سه شب بعد ازینکه محافظین تره کی را از حرمسرای اخراج کردند، جانداد قوماندان گارد مرا، جگرن رحمت الله آمر اوپراسیون و روزی را نزدش فرا خوانده چنین گفت:

«شما بروید به شکل بسیار احترامانه، البته این روزهای اول بود، به استثنای

تره کی و خانم اش باقی همه اعضای فامیل شان را از حرمسرای به (کوتی کول
که در صدارت واقع است، انتقال بدهید» در آن زمان برادر تره کی، راننده، پیش
خدمت و یک نرس همرای شان در داخل حرمسرای موجود بودند.

ما باید این کار را از طرف شب انجام میدادیم بناً وقتی شب شد به حرمسرای رف
دق الباب کردیم. پیش خدمت در را کشود و روزی به او گفت به استثنای تره کی صاح
و خانم شان باقی همه اعضای خانواده باید بیرون بیایند. زیرا قرار است آنها یا به کوتی
کول و یا هم به منزل قبلی شان انتقال داده شوند. بعد از سپری شدن بیست دقیقه
نیم ساعت آنها همه در حالیکه کالای اندکی با خود داشتند از حرمسرای خارج شدند
روزی بعد از آنکه آنها را مورد تلاشی بدنی قرار داد به موتر رهنمایی نمود.

در میان اعضای خانواده تره کی ملالی برادرزاده اش زیاد اصرار داشت تا به او
اجازه داده شود تا نزد تره کی باقی بماند. اما روزی این مطلب را نمی پذیرفت. بلاخره
من مجبور شدم تا به جانداد تماس بگیرم از او درین مورد بپرسم. جانداد برایم گفت
باید همه اعضای خانواده آنجا را ترک گویند. اما نرس میتواند آنجا باقی بماند. بناً ما در
حالیکه اجازه بر گشت به داخل حرمسرای را دادیم، دیگران را به احترام به کوتی کول
انتقال دادیم.

- تره کی و خانم شان چې وقت و به چې شکل از حرمسرای به کوتی باغچه انتقال
داده شدند؟

باز هم دو یا سه شب بعد، جانداد من و روزی را نزدش خواست گفت: «شام میروید
و دروازه حرمسرای را تک - تک میکنید. بشکل بسیار احترامانه از تره کی صاحب
خواهش میکنید که از حرمسرای به کوتی باغچه بروند. در اونجه تمام احتیاجات زندگی
شان یعنی اطاق و چپرکت و همه چیزهای شان آماده است.». وقتی من و روزی به
حرمسرا رفتیم نخست با پیش خدمت صحبت کردیم و بعد تره کی ما را به داخل نزد خود
فرا خواند. تره کی و خانمش تنها نشسته بود و از نرس دیگر خبری نبود. او را قبلاً از آنجا
اخراج کرده بودند. ما از دستوری که برایم داده شده بود برایشان گفتیم.

طوریکه میدانید در داخل حرمسرای سالون است بنام سالون شب جمعه ما آنها را
ازطریق همین سالون به کوتی باغچه آوردیم. بکس های شان نیز توسط افسرانیکه

روزی آنهـا را موظـف سـاخته بـود انتقـال داده شـد. در کوتـی باغچـه در اطاق که بـرای آنها در نظر گرفتـه شـده بـود چپرکت هـای سـیمدار گذاشـته شـده و یـک قالین نیـز در آن فرش شـده بـود. وقتـی آنجـا رسـیدیم روزی گفـت: «اینمـی جـای بـود و باش شـما اسـت.». آنها وقتـی چشـم هـای شـان بـه وضـع اطاق افتـاد خواهـش نموده گفـت «برای مـا باز اگـر امو چپرکت هـای چوبی را بیاورید و یک قالین دیگر بیاورین!». روزی برای شـان اطمینان داد که ایـن کار را انجـام خواهـم داد. بعـد از آن شـب مـن دیگـر با آنهـا تماس نداشـتم ولی در همان شـب آخـر کـه مـا نزد تره کـی رفته بودیم متوجه شـدم کـه قالین و تخت هـای خواب آنهـا را تبدیل کـرده بودند.

- شـواهدی در دسـت اسـت که دو تن از محافظان شـاد روان تره کی صاحب، نخسـت اختطـاف و بعـداً از بیـن بـرده شـدند. شـما به صفت متهـم این قضیه جریـان آنـرا از ابتدا تا آخـر توضیح کنید!

تره کی دو تن از محافظانش را که ببرک و قاسـم نام داشـتند و مسـلح نیز بودند با خود در داخـل حرمسرا همـرا داشـت. ایـن موضوع مشـکلی را نزد یعقـوب لوی درسـتیز و جانداد قومانـدان گارد ایجـاد کـرده بود. بتاریخ پنجم سـنبله که روز شـنبه بود حوالی سـاعت هفت و نیم صبح یعقـوب بـه جانداد تیلیفـون نموده گفت کـه او باید یک دسـته سربازان مسـلح را آماده سـازد تـا آنهـا به شـکل گروهی بـالای حرمسرا حمله نمـوده محافظین مسـلح تره کی را دسـتگیر و از آنجـا اخـراج نماینـد. بعـداً جانداد بـا امین تیلیفونی تماس گرفتـه از او طالب معلومات دریـن مورد شـد.

- ببخشید کدام امین؟

امین، همو امین خاین که مرتکب جنایات بزرگ شده بود.

- یعنی منظور شما از حفیظ الله امین است؟

بلـی، حفیـظ اللـه امیـن. جانـداد بـه او تیلیفون کـرده طالب هدایت شـد، امیـن برایش گفتـه بـود کـه بجـای حملـه مسـلحانه گروهی بهتر اسـت. بـرای محافظیـن تره کـی کتبی اطلاع داده شـود تـا آنهـا بـرای تحقیـق در باره سـو قصدی که قبلاً بالای حفیـظ الله امین صـورت گرفتـه بـود بـه قوماندانـی حاضر شـوند. برعـلاوه باید بـرای آنهـا گفته شـود که این صرفـاً شـامل حـال آنهـا نه شـده بلکه از دیگـران نیز صـورت میگیرد. جانـداد یک نامـه را با

چنین پیامی نوشت و به دست شخصی که فکر میکنم آشپز و یا هم خانه سامان به داخل حرمسرا فرستاد. بعد از گذشت سی یا چهل دقیقه بما اطلاع دادند که محافظین تره کی آماده اند از حرمسرا خارج شده به قوماندانی بیایند. اما جانداد با وصف آن هم برای اینکه مقدمات تدافعی را گرفته باشد قوماندان تولی تشریفات را نزدش فرا خوانده برایش هدایت تا تعدادی از سربازانش را در دو طرف مدخل حرمسرا جا بجا سازد. سربازان مذکور وظیفه داشتند تا در صورتیکه محافظین تره کی دست به حمله بزنند، بالای شان شلیک نمایند.

- اسم قوماندان تولی تشریفات چی بود؟

او محمد صادق نامداشت و نام برده امسال ترفع نموده تورن شده بود، بهر حال او رفت مطابق دستور جانداد عمل نمود. لحظاتی بعد دروازه حرمسرا بازشد و محافظین بیرون آمدند. هر چند آنها خلع سلاح بودند اما با آنهم چون به سربازان هدایت داده شده بود آنها بالای محافظین مذکور حمله نموده ایشان را دستگیر کردند. متعاقباً محمد صادق به جانداد توسط مخابره تماس گرفته و از اجرای موفقانه ماموریتش اطمینان داد. درین هنگام روزی باعجله، خودش را نزد محافظین دستگیر شده رساند و دستهای آنها را سربازان مذکور را با رویجایي بسته کردند.

از طرف دیگر جانداد در همین مدت با یعقوب لوی درستیز تماس گرفته برعلاوه دادن اطمینان از اجرای موفقانه این ماموریت او در سرنوشت محافظین مذکور طالب هدایت گردیده بود. یعقوب برای او گفته بود تا محافظین مذکور را در داخل گارد در بین یکی از گاراجها حبس نماید، اما جانداد این کار را نا ممکن خوانده بود، بناً یعقوب هدایت داده بود تا آنها باید به قواه چهار زره دار انتقال داده شوند.

جانداد نخست به آمر اوپراسیون، اما بعداً تغیر عقیده داده به من هدایت داد تا افراد مذکور رابه قوای چهار زره دار انتقال دهم. نامبرده برایم گفت تا آنها را باید به جگتورن احمد که قوماندان قطعه مذکور میباشد، تحویل بدهم.

من بعد از گرفتن «نام روز» از جانداد با محافظین دستگیر شده تره کی در حالیکه چشمها و دستهای شان بسته شده بود در دو موتر جیپ همرا با روزی بطرف قوای چهار زره دار براه افتادیم. در آنجا برعلاوه جگتورن احمد دو افسر دیگر را ملاقات کردیم، یکی

از آنها «شایسته» نام داشت و اسم دیگرش را متأسفانه نمی دانم. آنها با ما داخل موتر شده ما را بطرف شمال که محل انداخت و پلیگون قوای چهار زره دار است، بردند. بعد از طی نمودن فاصله اندکی موتر ها را متوقف ساختند و ما همه از موترها پایین شدیم در آنجا افسران مذکور به ما گفتند «شما در همین جا منتظر باشید!». بعداً آنها چشم های محافظین تره کی را باز کرده آنها را بطرف یک گودال رهنمایی کردند. محافظین مذکور وارد گودال شده در آنجا نشستند. بعداً همان افسریکه شایسته نام داشت تفنگچه دستی اش را بیرون کشید. روزی نیز خواست تا تفنگچه خود را بیرون آورد و نیز در کشتن محافظان مذکور سهم بگیرد، شایسته برایش گفت: «این وظیفه شما نیست، وظیفه به ما داده شده.».

- بالای کدام قسمت وجود آنها شلیک کرد؟

بالای سر شان شلیک صورت گرفت، به هر حال در فاصلهٔ نه چندان دور از گودال مذکور، بیل و کلنگ وجود داشت که بعداً توسط یک تعداد افسران برای ریختن خاک بالای اجساد محافظین تره کی بکار گرفته شد. بعد ازین حادثه ما با راننده ها و سربازان خود دوباره به گارد برگشتیم. من نزد جانداد رفته برایش گفتم که آنها محافظین تره کی را کشتند. او در جواب برایم گفت که یعقوب لوی درستیز چنین هدایت داده بود.

نوت: این اعترافات بتاریخ بست و چهارم جدی سال ۱۳۵۸ صورت گرفته است مسنطقین قضیه (سر خارمن عبدالرحیم) و (خارمن جمعه) نام داشته و متن استجواب توسط محمد داود تیپ شده است.

متن این اعترفات از شماره های مورخ شنبه ششم و یکشنبی هفتم دلو سال ۱۳۵۸ روزنامه ملی انیس گرفته شده و باز نوشت و تخلیص آن توسط گرداننده و بلاگ رنگرنگ صورت گرفته است.

# څلورم څپرکی

## د ۱۳۵۸ کال د جدي په شپږمه د شوروي تجاوز

کله چه شوروي قوتونه له افغانستان څخه ووتل ۲۵ کاله وروسته يو تعداد نظامي منسوبينو چې په افغانستان کې يې وظيفه اجرا کړې وه مشترکاً يو کتاب «د افغان د جګړې ډګر» په نامه ليکلی او ځينې حقايق يې افشا کړي دي:

د شوروي استخباراتي سيستم (کې. جي. بي.) يو نفر خپل اجېنټ چې مستعار نوم يې حبيبي دی افغانستان ته استوي. حبيبي د شوروي د شرق شناسي له انستيتوت څخه فارغ شوی او د کې. جي. بي. له خوا استخدام شوی چې په پښتو او فارسي ژبه هم خبرې کولای شي، حبيبي د افغانستان په شمالي ولاياتو کې سکونت اختياروي، هغه وخت چې استاد خيبر د غوربندي صاحب د منطقي تحليل په بنا د (ببرک کارمل او کې. جي. بي. په مشترکه سازماندهي ترور شو) نو حبيبي خپل مربوطه مرکز ته خبر ورکوي چې مير اکبر خيبر د حفيظ الله امين او عالميارانو ورونو په واسطه ترور شوی دی او دغه غرض آلوده او غلطه اطلاعيه تر ننه پورې د روسانو په ليکنو کې انعکاس پيدا کوي ترڅو د اصلي تروريست آدرس پيدا نه شي.

حبيبي د ثور له قيام څخه وروسته خپل ځان افغان معرفي کوي او له خلقيانو سره ارتباط پيدا کوي چې ګويا د شمال په ولاياتو کې يې ژوند کاوه او فاميل يې د دولت د مخالفينو په واسطه ټول تلف شوي دي، ځکه چې ګويا حبيبي د حزب

غړی و.

حبيبي د حفيظ الله امين په ګروپ کې ځان تنظيموي او ډېر ژر د حفيظ الل
امين په باډي ګارد بدليږي.

حبيبي په دې توګه له دولتي رازونو څخه کافي معلومات پيدا کوي او پوهيږ
چې حفيظ الله امين غواړي چې ټول قدرت تر لاسه کړي. د دې لپاره استدلال
کوي چې نور محمد تره کی د جولای په ۲۷ نېټه فرمان صادر کړ چې حفيظ الل
امين د دفاع د وزير په توګه مقرر شو. (ص ۴۷)

حبيبي بالاخره د حفيظ الله امين د کور (دربار) سړی بلل کيږي او د نور محمد
تره کي د وژلو جريان هم ورته دقيق معلوم دی لکه څرنګه چې هغه شپه کې.
جي. بي. په تاج بيګ قصر حمله کوي، حبيبي هم د حفيظ الله امين په کور (در
بار) کې موجود دی او د شپږم د جدي جريانات ورته معلوم دي. په ٦ د جدی د شپې
په نيمايي کې د حبيبي پلار هم صحنې ته راځي او په عملياتو کې شامل سړی
دی. خو ظاهراً ګويا حبيبي او پلار يې يو بل نه سره پېژني. د عملياتو په پای کې د
حبيبي پلار له قصر څخه وځي او په عين حال کې حبيبي ته اشاره ورکوي چې د
خپل پلار په تعقيب پسې ووځي.

د دې حقيقي داستان په پای کې ليکل شوي دي چې حبيبي بيرته د افغانستان
شمال ولاياتو ته ولاړ. ختم.

وبه ګورو چې د کې. جي. بي. دغه اجينټ به زمونږ په هېواد کې نور کوم
اورونه بل کړي وي؟

د جدي د شپږمې د کې. جي. بي. د تجاوز په هکله ډېر اسناد شته خو تر هر
څه د مخه به د شوروي د کې. جي. بي. ستراتيژيک هدفونه د محترم نيازي په
ليکنه کې ولولو:

## ډاکتر نجيب الله، پښتو او د افغانستان ملي توازن

کله چې روسانو افغانستان ته خپل پوځي لښکر داخل کړ نو له هغه سره سم

يې په افغانستان کې د واک دوديز سيستم ونړاوه. لږکي يې واک ته ورسول او په دې هڅه کې شول چې د اکثريت اداري ظرفيت او ځواک کمزوری کړي او په پای کې يې د سياسي واک د اصلي ممثل په توګه د هېواد له اداري څخه بې برخې کړي. روسانو له ډېرې پخوا څخه دا هيلې لرلې؛ خو په څلوېښت لمريزو کلونو کې د دوی پدې ارمانونو څرکونه څرګند شول.

د ۱۳۴۳ کال د جدي په ۱۱مه د افغانستان د خلک ديموکراتيک ګوند جوړ شو، څرنګه چې د دې ګوند مشر هم اکثريت قوم ته منسوب د يو شخص په لاس کې و نو روسانو ته د ستراتيژيکو ګټو او باور لپاره دا هم په زړه پورې نه وه. نو ځکه خو يې په ګوند کې بل ګوند جوړ کړ چې نېغ په نېغه يې ځان د لږکيو استازي ګڼل او د هغو را پارونې ته يې لمن وهله. روسانو په دې هم بسنه ونکړه. په ۱۳۴۸ کال کې يې د محمد طاهر بدخشي په مشري يوه ملي ضد او افغاني ضد ډله جوړه کړه. طاهر بدخشی اصلاً په قوم ازبک او د بدخشان اوسېدونکی وو. خو دی داسې فارسي ژبی شوی و چې په غالب ګمان به يې ازبکې ژبه زده هم نه وه. طاهر بدخشی عمداً د فارسي فرهنګ، ژبې او د تاجکانو د «محروميت او مظلوميت» شعارونه ورکول او د اکثريت پښتنو واکمنې يې تاريخي ظلم او ستم ګاڼه.

په ۱۳۵۷ لمريز کال کې چې د يوه پوځي عمل په نتيجه کې د سياسي واک بدلون راغی بيا هم سياسي واک د اکثريت قوم په لاس کې پاتې شو. روسانو داسې فکر کاوه تر څو اکثريت قوم چې په هر هېواد کې د واک اصلي ممثل او څرګندوی په توګه مطرح وي، کمزوری نه شي، او د واک ملي انډول ګډوډ نه شي د دوی د بشپړې لاسوهنې او د چارو کنترول ته لاره نه هواريږي. دوی فکر کاوه چې د ټولنپوهنې له نظره په هره ټولنه کې لږکې له سياسي پلوه بې ثباته وي او د بهرني يرغل په وړاندې د اکثريت په انډول ټينګ عکس العمل نه ښيي او بل دا چې هغوی ته د هغوی له استعداد او سياسي حقوقو څخه پورته امتياز ورکول پخپله د هغوی سياسي دريځ له هر ډول بې ثباتي او بدلون سره مخامخ کولی شي.

روسانو پخپله ګټه د افغانستان له لږکيو څخه د ګټې اخيستنې يو بل فکتور هم په پام کې نيولی و . هغه دا چې قومي لږکې چې د دوی په پام کې و، هغوی

د شوروي اتحاد د منځنی آسیا ځینو جمهوریتونو سره قومي او ژبنی پیوند درلود. په همدې وجه روسانو د ۱۳۵۸ کال د جدي په شپږمه نېټه یو مجهول القوم او مجهول الهویه شخص (ببرک کارمل) د قدرت په ګدی کېناوه. د نوموړي په باب اسناد څرګندوي چې دی اصلاً کشمیری دی او نیکه یې له کشمیره کابل ته راغلی او د کابل په کمریو کښې مېشته شوی دی. خو ببرک کارمل په فارسي ژبه ګړېده او عملاً یې ځان تاجک ښودلو خو په دولتي او سیاسي اسنادو کې یې ځان پښتون معرفي کاوه. ده ځان ځکه پښتون معرفي کاوه چې د افغانې ټولنې اکثریت پښتانه دي او که دوی په بشپړ ډول د ده په قومي هویت خبر شي، نو بیا خو کېدای شي د ده د کاواکه واک پېښې ولړزوي. خو د ده څېره هغه وخت لاپسي رسوا شوه چې په ۱۳۵۹ کال کې د دوی د ګوند خپلې ورځپاڼې "حقیقت انقلاب ثور" د "انقلابي شورا" د غړو لست خپور کړ. په هغه کې د یوه پلار زامنو ته لیکل شوي وو "ببرک کارمل په قوم پښتون محمود بریالی په قوم تاجک".

له پښتنو سره د روسانو دښمني هم له زړونو څخه اخبارونو ته راووتله. د شوروي د دربار یو لیکوال لیا خوفسکی پخپل کتاب "د افغانستان پر ضد نا اعلام شوی جګړه" کې ولیکل "موږ ځکه افغانستان ته لښکرکشي وکړه چې د اکثریت دیکتاتوري ختمه او دولتي ځواک اقلیتونو ته انتقال کړو".

د کارمل په مشري د پرچم ډلې د هېواد د اکثریت او پښتني فرهنګ پر ضد هغه څه تر سره کړل چې د دوی او د دوی د بادارانو ګډه هیله وه.

کله چې ډاکتر نجیب الله واک ته ورسول شو، نو دا وخت په سیمه او نړۍ کې ډېر بدلون را منځته شوی و. شوروي زبرځواک هم له سترو ستونزو سره مخ و. په افغانستان کې هم د رژیم د مخالفو ځواکونو پوځي تحرکات ګړندي شوي وو. روسان د کورني او بهرني فشار له امله مجبور وو، چې په یو نه یو ډول خپلې لښکرې له افغانستان څخه وباسي. د دې کار لپاره داسې اداره چې شخص ته اړتیا وه چې د روسانو تر وتلو وروسته د روسانو د خوښې حکومت روغ وساتي او هېواد اداره کړي. د دې کار لپاره د کارمل په ګډون "د خلکو دیموراتیک ګوند" د مشرتابه اکثره غړي مسکو ته وغوښتل شول چې د روسانو د وتلو مسئله ورسره مطرح کړي. کله چې د

شوروي مشرتابه میخایل گرباچوف له خوا دا خبره مطرح شوه نو لومړی شخص چې د روسانو له وتلو سره یې مخالفت وکړ هغه ببرک کارمل وو. کارمل وویل: "اوس خو مو لا یو نیم لک عسکر راوستي که بیا یو نیم میلیون هم راولئ نو اوضاع به کنترول نه کړی".

خو ډاکټر نجیب الله یادونه وکړه چې د روسانو وتل په کار دي او مونږ له دوی پرته هم هېواد کنترولولی شو. روسان اوس په دې پوه شوي وو، چې اقلیت ته منسوب سیاسي اشخاص په داسې بحراني شرایطو کې د مملکت حالات نه شي کنترولولی، داسې یو شخص ورته پکار و چې هغه دې په ټوله مانا پښتون وي.

ډاکټر نجیب الله د (خاد) د پخوانی سابقې او د پورتنیو لاملونو له مخې دوی ته غوره شخص وو. نو ځکه یې د کارمل پر ځای راووست.

ډاکتر نجیب الله واک ته له رسېدو څخه وروسته حیرانونکې سیاسي بدلونونه را منځته کړل. د ملی روغی جوړی مسئله یې مطرح کړه، په نسبي ډول د ژبې او بیان آزادي را منځته شوه او له مخالفینو سره یې د مخامخ او بالواسطه خبرو اترو ورانديزونه وکړل. څرنګه چې دی په فارسي او پښتو ژبو ښه پوهېده (البته د پښتو په اندول يې فارسي قوی وه) نو د ژبني منطق په زور یې غوښتل خپل مخالفین مات او په خلکو کې ځانته محبوبیت پیدا کړي. خو له روسانو سره د ده اړیکو او د پخواني خاد د ریاست دندې د اولس په ذهن کې د ده د محبوبیت مخه ډب کړې وه. د ده بله ستونزه او اشتباه دا وه چې نه یوازې له دولتي دستګاه څخه د باندې یې بې شمېره مخالفین درلودل بلکې پخپله په دولتي دستګاه او بیا په حساسو پوستونو کې د ده ګڼ شمېر مخالفین ځای پر ځای وو. کارمل له واک څخه ګوښه کړای شو، خو د دولتي دستګاه په اکثرو برخو کې د هغه خاص ملګري ځای پر ځای و او هر وخت یې کولی شول ډاکټر ته ستونزې پیښې کړي.

کارمل د نجیب الله په وړاندې سخته کینه او عقده واخیسته او مناسب فرصت ته منتظر و چې غچ ورڅخه واخلي.

ډاکټر نجیب الله په لومړي سر کې د دولت په دستګاه کې په خلقیانو ډډه ولګوله او د هغوی په مرسته یې د کارمل او د هغه د ډلې تحرکات کمزوري کړل خو

تر پایه دا خبره پاتې نه شوه.

لکه څنګه چې د مخه یادونه وشوه روسانو په افغانستان کې د قومي توازن ګډوډول او له سیاسي واک څخه د اکثریت بې برخې کول د خپلو هیلو د پوره کولو لاره بلله، خو کله چې له افغان ولس سره په جګړه کې ښکېل شول، نو د څو کلونو حیرانونکې جګړې په ترځ کې دا ورته څرګنده شوه چې په پوځی ډګر کې بایلونکې دي، نو بیا په یوه بله لټه کې شول. هغه بل ځل یې د کمونیستانو په رنګ کې د اقلیتونو له یوه کمونیست او دا ځل یې د مجاهدینو په رنګ کې له یوه «مجاهد» مسعود سره ښکاره او پټې اړیکې ټینګې کړې.

روسانو په افغانستان کې د خپل شتوالي په وخت کې د افغانستان ټوله دولتي دستګاه د قومي پرسونل له مخې له نظره تېره کړې وه. دوی ته اوس پوره پته وه چې په کوم دولتي پوست کې د کوم قوم او ژبې سړی مقرر دی. د هغه د اغېز او واک ساحه څومره ده او په ټول دولت کې له هر قوم څخه څومره اشخاص کار کوي. دوی د یوه اوږده پلان له مخې د خپلې خوښې ګڼ شمېر کادرونه وروزل او له خپلې هیلې سره یې په دولتي ارګانونو کې ځای پر ځای کړل. دوی د خپل شتوالي په وخت کې د پوځ له ځینو څانګو پرته په نورو ټولو دولتي څانګو کې د پښتنو شمېره دیارلس سلنی ته را ټیټه کړه. په دې شمېرې کې لا هغه پښتانه هم شامل وو چې پښتو یې زده نه وه او په فارسي ژبې ویونکو اوښتی وو. که دا شمېر هم ترې بیل کړای شي نو د پښتنو شمېر په دولتي پوستونو خصوصاً په ملکي څانګو کې ډېره کمه ګڼل کېدله.

له بلې خوا روسانو د جګړې درانه ګزارونه پښتون مېشتو سیمو ته متوجه کړي وو، چې په دې ډول د پښتنو فزیکې او اقتصادي ځواک کمزوری کړي او خلک مهاجرت ته مجبور کړي او دا شان د هېواد په دننه کې د پښتنو د نفوسو په شمېر کې کمی راولي. د هېواد د شمال په هغو سیمو کې چې پښتانه په کې استوګن وو، هلته یو بېل پلان عملي کېده د جګړې زیات اورونه همغو سیمو ته ورل کېدل، چې پښتانه په کې مېشت وو او یا هم په زور او جبر خلک مهاجرت ته مجبورېدل.

د کارمل د واک په وخت کې د دې کارونو د سر ته رسولو لپاره نه یوازې بهرنی

تګلاره موجوده وه، بلکې په خپله حکومت او واکمن ګوند کې ځانګړي ډلې او اشخاص د دې کار لپاره موظف وو. محمود بريالی، نجم الدين کاوياني، اناهيتا راتب زاد او نور د دې کار مخکښان وو. ډاکټر نجيب الله د خاد رئيس و ، خو د خاد لومړی ځانګې عملاً د دې ډول مسئايلو په رهبري کې مشهورې وې. د پوهنې او جګړه ايزې برخې تر څنګ په فرهنګي برخه کې هم د دوی دا ډول هڅې ډېرې محسوسې وې. کابل پوهنتون، د ژورنالستانو اتحاديه، راډيو تلويزون او «د ځوانانو سازمان» د دې ډول هڅو مرکزونه وو. فريد مزدک، ظاهر طنين، عبد الله شادان، داود کاويان، اسدالله حبيب او نور د دې کړيو فعال غړي وو.

کله چې ډاکټر نجيب الله واک ته ورسول شو او په تېره بيا کله چې روسان له افغانستان څخه ووتل، نو داسې هيله پيدا شوه چې نور به نو د روسانو عقل سرته راغلی وي او په داخل کې به ملي ضد ډلې هم په دې پوه شوي وي چې د اکثريت سياسي حقوقو ته غاړه کېږدي خو خبره نوره هم خرابه شوه.

ډاکټر نجيب الله د خپل واک په لومړيو ورځو کې يوې غونډې ته په خپله وينا کې وويل: «پښتون بايد د مشر ورور په توګه خپل رسالت سر ته ورسوي» له همدې يوې خبرې سره هغه په دولت کې د واکمنې ملي ضد ډلې او اشخاصو له خوا تر دومره نيوکو لاندې راغی چې کېدای شي له خپلې خبرې پښېمانه شوی وي.

سره له دې چې ځينو برخو په ځانګړي ډول په ځينو فرهنګي برخو کې يو لړ بدلونونه راوړل شول. ځينې اخبارونه چې پخوا لومړی په فارسي ژبه چاپېدل او بيا پښتو ترجمه کېدل او له يو څه ځنډ وروسته وېشل کېدل او يا هم بيخي نه وېشل کېدل، دواړه يې سره يو ځای کړل. يعنې تر دې وروسته فارسي او پښتو چاپېدل د دې کار عمده لامل دا نه وو، چې پښتو او ملی فکر ته خدمت وي، بلکې ستر لامل يې اقتصادی تنګلاسي وه. بيا هم پښتو تر يوه حده له ژباړې څخه خلاصه شوه، خو پدی خپرونو کې د فارسي په اندول د پښتو برخه ډېره خواره وه. ځينې هغه کسان هم له يوه ځای څخه بل ځای ته بدل کړل شول چې ملي ضد مسئايلو ته يې لمن وهله. د ساري په توګه اسدالله حبيب چې په کابل پوهنتون کې د ده په دستور او همکاري د افغانستان د ملي ګتو پر ضد ځينې ليکنې چاپ او آن ځينې شپې

پاڼې خپرې شوې. د پوهنتون د رياست له دندې گوښه کړای شو. خو دا کارونه د گوتو په شمار دي. هغه اساسي کړۍ چې دې ملي ضد او افغاني ضد مسئايلو ته يې لمن وهله نه يوازې پخپل ځای پاتې شوې بلکې لا تقويه او پياوړې شوې.

ډاکټر نجيب الله د خپل ځاني قدرت د ساتلو او يا هم د کورنيو او بهرنيو دسيسو له مخې په دولتي دستگاه کې نور پاتې امتيازونه هم په لړکيو وويشل. مثلاً د ده د قدرت په وخت کې سلطان علي کشتمند چې د کارمل او بيا هم تر يوه وخته د ده صدراعظم و ، په ټول دولت آن په بهر کې د افغانستان په نمايندگيو کې د هزاره لړکيو لپاره له پنځه ويشتو څخه تر ديرش فيصد پورې د امتيازونو د ورکړې غوښتنه وکړه او هم يې د باميانو د خودمختارۍ او يا هم د فدراسيون د جوړولو وړانديز وکړ. د ډاکټر نجيب الله په وخت کې د هغوی د دې ډول غوښتنو غوښينه برخه پوره شوې وه، خو د ټولو غوښتنو پوره کول يې نه د ډاکټر نجيب په لاس کې و ، نه د کشتمند او نه هم د دوی د بهرنيو لمسونکو. په همدې وخت کابل کې د هزاره گانو د سياسي او ټولنيز مرکز لپاره "مرکز انسجام مليت هزاره" په نوم يو مرکز جوړ شو. دې مرکز د "غرجستان" په نوم يوه مجله هم خپروله چې افغاني ضد او پښتني ضد ليکنې يې پکې چاپولې. د مرکز او مجلې ټول لگښت د ډاکټر نجيب الله د حکومت په غاړه و . هڅه وشوه چې په حکومتي چارو کې لويې څوکۍ په قومونو وويشل شي چې د دوی په اصطلاح اجتماعي عدالت تامين شي.

د ملي ستم ډله چې ځان يې "سازمان انقلاب زحمتکشان افغانستان" باله ډېر فعال شو. له يوې خوا يې له روسانو څخه ځانگړې مرسته تر لاسه کوله او له بلې خوا يې په دولت کې لوړې څوکۍ اشغال کړې وې. په رسمي توگه د ملي ستم ډلې څو مهمې دولتي څوکۍ په واک کې لرلې. له هغې جملې څخه محبوب الله کوشاني د صدارت مرستيال، بشير بغلاني د عدليې وزير، اسحاق کاوه د معدن او جيولوژۍ وزير او ځينې نور په نورو پوستونو کې وو.

دوی په آزاده توگه د "ميهن" په نوم يوه جريده هم چاپوله چې په سپين سترگي سره يې ملي مسئايلو ته لمن وهله. له ميهن جريدې پرته د دولت له خوا ځينو نورو خپرونو هم په خلاص مټ قومي حساسيتونه راپارول. د «وطن گوند»

مرکزي کمېټې ځینې داسې اثار خپاره کړل چې هغو په ډاګه د افغانستان او افغانانو په وړاندي کینه څرګندوله. ښکاره بېلګه یې د جلال الدین صدیقي تر نظر لاندې د افغانستان د معاصر تاریخ په باب هغه لکچر نوټونه دي، چې د «وطن ګوند مرکزي کمېټې» د لکونو ټوکو په شمېر چاپ او خپاره کړي دي. آن د پوهنتونونو او ښوونځیو تعلیمي نصاب خصوصاً د تاریخ مضمون په برخه کې ځینې داسې مسایل داخل شول چې د افغانستان له اوسني جوړښت سره د کینې بوی ورڅخه راته. دا هڅې د ډاکټر نجیب الله د حاکمیت په وخت کې مخ په لوړه رواني وې. پخپله نجیب الله هم نه یوازې دا چې له پښتو ژبې او د اکثریت له واکمنې سره مینه نه لرله، بلکې په څرګند ډول یې د هغو په مخالف لوري کې حرکت کاوه. د ده په وخت کې هم د پښتنو په سیمو کې درنه جګړه جاري ساتل شوې وه او د پښتنو په سیمو د سکاد په سوونو توغندي وویشتل شول. د ده له ټولو ویناوو څخه پنځه پښتو او پنځه نورې فارسي وې. ده د خپل لنډ مهاله واک او د لړکیو د خوشالۍ لپاره په افغانستان کې د قومي جوړښت په پام کې نیولو سره قومي، پوځي ټولګي، غونډونه او فرقې جوړې کړې.

دې کار د هغه منظم پوځ واک او ارزښت له پوښتنې سره مخ کړ چې په دودیز ډول یې غټه برخه له پښتنو څخه جوړه وه. د قومي غونډونو، تر څنګ یې ځانته خاص ګارد هم جوړ کړ. او د دولت زیاته بودیجه یې په قومي غونډونو، خاص ګارد او د "واد" په وزارت لګوله. د "واد" وزارت، "خاص ګارد" او قومي غونډونه اکثره له داسې کسانو څخه جوړوو چې دوی نه یوازې له افغانستان سره مینه نه لرله، بلکې د هغه د ټوټې ټوټې کولو او وېشلو فکرونه او هوسونه یې هم لرل.

په حقیقت کې ډاکټر نجیب الله پخپله او یا هم د بهرني سنجول شوي پلان له مخې ځان د لړکیو په داسې ځنځیر وتاړه چې بیا نو هر څه د هغو خوښه وه، هغه یې کول. دا لړکي د قومي غونډونو، جهادي تنظیمونو، ماویستي، ستمي او پرچمي ډلو ټپلو پر ځای کېدو سره په پوځي ځواک بدل شول. تر دې د مخه چې دوی په مستقیم ډول په کوم پوځي عمل لاس پورې کړي یوازیني خنډ چې د دوی په مخ کې د زیاتو پښتنو شتوالی و. د بهرنۍ او کورنۍ توطیې په نتیجه کې چې په کورنۍ کچه پکې ستمیان، پرچمیان او په خپله ډاکټر نجیب هم شامل و، "د

شهنواز تني کودتا" په نوم يو پوځي کړکېچ رامنځ ته کړ. د همدې کړکېچ په بهانه شپږ زره افسران يې له پوځه وايستل او په زندان کې يې واچول. دا د هغه پلان وروستی کړی وه چې روسانو غوښتل په بشپړه توګه دولتي ځواک لړکيو ته انتقال کړي او په دې توګه يې افغانستان له سختې بې ثباتۍ سره مخ کړ.

د تني له کودتا څخه وروسته د دوو کلونو په واټن کې د لړکيو د فعاليت لپاره نوره هم لاره هواره شوه، د ۱۳۷۰ لمريز کال په وروستيو شپږو مياشتو کې د دوی فعاليتونه دومره ځرګند شول چې د ډاکټر نجيب له حکومت حخه يې سترګه هم نه سوځېدله. د همدې کال د حوت په مياشت کې دوی له حيرتانو څخه د جنرال مومن او دوستم په ګډ ائتلاف او بغاوت خپل ځان نور هم ځرګند کړ. دوی لا د مزار شريف ښار نه ونيولی چې د نجيب الله د حکومت د شمالي صفحاتو د پوځي قطعاتو عمومي قوماندان جنرال جمعه اخک له ډاکټر نجيب څخه په مکرر ډول هيله وکړه چې ده ته اجازه ورکړي چې دا سازش او بغاوت دړې وړې کړي. خو ډاکټر نجيب هغه له مزاره را وغوښت او پر ځای يې نبي عظيمي چې اصلاً په قوم کشميری دی او د دوستم او مومن له بغاوت سره همغاړی او همنظره و ، مزار شريف ته ولېږه. هغه هلته له هغو سره خبره نوره هم پخه کړه. په پايله کې هغوی له جنګ څخه پرته مزار شريف ونيو او خپل ائتلاف يې په جبل السراج کې له احمد شاه مسعود سره هم تازه کړ. پرچمي او ستمي ډلې چې له پخوا څخه په دولت کې واکمنې وې په کابل کې د شمال د ائتلاف لپاره لاره صفا کړې وه، په آساني سره يې د نجيب څو مهم پلويان لکه د ملي امنيت وزير ستر جنرال فاروق يعقوبي، د همدې وزارت د پنځم رياست رئيس جنرال عبدالباقی ووژل. نجيب الله چې د ملګرو ملتونو له استازي بينين سيوان سره غوښتل له افغانستان حخه ووځي، د کابل په نړيوال هوايي ډګر کې د شمال د ائتلاف د پرچمي او ستمي همکارانو په واسطه را وګرځول شو او د ملګرو ملتونو سازمان ته يې پناه ور وړه. د ۱۳۷۱ کال د حمل په ۲۸مه د کابل له تلويزون څخه داسې اعلان خپور شو چې "پخوانی رئيس جمهور نجيب الله چې غوښتل يې په پټه له هېواده د باندې ووځي د هېواد د امنيتي پوځ له خوا راوګرځول شو".

او په دې ډول د ډاکټر نجيب الله شپاړس ورځې کم پنځه کاله واکمني پای ته

ورسېده او پر افغانستان د سیاسي او پوځي ګډوډۍ غوبل لا پسې قوي شو.

کله چې د مجاهدینو او ملحدینو بېلا بېلو ډلو د کابل ښار او ټول هېواد په وینو او اوښکو ولمباوه، نو د ډاکټر نجیب محبوبیت په خلکو کې زیات شو. آن تر دې چې که آزادو انتخاباتو ته درېدلی وای نو په غالب ګومان له پخواني پاچا پرته نور هیڅوا به ترې نه وای ګټلي. ځکه کومې وړاندوینې چې ده د مجاهدینو په باب د خپل واک په وخت کې کړې وې هغه ټولې په تول پوره وختلې.

ډاکټر نجیب الله د ۱۳۷۱ کال د حمل له ۲۸ څخه د ۱۳۷۵ لمریز کال د مېزان د شپږمې نېټې تر سپېده داغ پورې په کابل کې د ملګرو ملتونو په دفتر کې استوګن وو. کله چې د مېزان د پنځمې ورځې په ماښام طالبانو کابل ونیو، سهار وختی یې د هغه او د هغه د ورور مړي د خونړي ارګ ختیځې څنډې ته د آریانا په څلورلارې کې د ترافیکو د څارنې په یوه داسې ودانۍ کې چې له سمنټي پایې او لرګیو څخه جوړه وه او له ځمکې څخه یې د یو پوړ په اندازه لوړوالی درلود ځړولی و. بې شمېره کابل ښاریان په واټ کې ولاړ وو. اکثره ډېر زیات خفه و او اکثرو افسوس او های های اسوېلي کول. ډاکټر نجیب الله نن پښتني لباس اغوستی و او کوچیاني واسکټ یې په تن و . نن ورځ د واکمني د وخت په اندول ډېر ښکلی معلومېده، خو جامې یې په وینو رنګ وې. تر کمیس لاندې د تن یوه سپیه برخه یې چې سرو وینو پدې لیکې جوړې کړې وې، له ورایه ښکارېده. د سر یوه برخه یې لکه چې په ګولۍ سورۍ شوې وه وینې ترې په مخ راغلې وې، خو اوس ترې وینې نه راتللې، یوازې د وینو سره سره بخري د هغه پر مخ ځلېدل. کله چې دې پایې ته ولاړ یوه طالب به د ده جسد ته تاو تاو ورکړ نو دی به څو ځله تاو شو او ټولو خلکو به ولیده. په همدې وخت کې یو طالب د ده مړی یو ځل تاو کړ او دا غږ یې هم له خولې راووت "همدا ته وې چې په ننګرهار، کندهار او پکتیا دې سکاڼونه ویشتل؟" همداسې ډېرو طالبانو د ده جسد تاواوه، خو دلته اکثرو راغلو خلکو د ژورې خواشینۍ او خفګان اسوېلي زغمل. هغه پخوانی زورواک ورته نن ډېر مظلوم او محبوب ښکارېده. د ځینو په سترګو کې اوښکې هم ښکارېدلې خو د دې په خاطر چې د چا ورته پام نه شي مخ به یې بلې خوا ته اړاوه. خو ځینې پکې داسې هم وو چې په کړس کړس خندا سره یې دا وېرونکې ننداره بدرګه کوله. دا پېښه اکثرو ته ناڅاپي وه. هیڅوا هم

داسې فکر نه کاوه. نو ځکه خو هر یوه له ځان سره ډېرې پوښتنې کولې چې دا به چا وژلی وي. البته په دې کې به د خارجیانو لاس وی؟ خو ډېرو پکې د پاکستان او په تېره آی. اېس. آی نوم اخیسته، ماسپښین مهال د ډاکتر نجیب الله او د هغه د ورور مړی نه و . په همغې سیمتې پایې چې دوی یې ځړولي وو، په پښتو اردو رسم الخط لیکل شوي و "دا د ډاکترنجیب الله د پهنسی کولو ځای دی"چې دا به چا لیکلي وي؟

زه (لیکوال) غواړم چې ووایم ډاکتر نجیب الله د افغانستان رئیس جمهور و. هر څه چې وو، دا به راتلونکې تاریخ ته پرېږدو، اما د نجیب الله بې رحمانه او بې محاکمې غیرقانوني وژل او د ښاریانو په مخ کې ځړول دا د افغان ولس او د افغانستان خاورې ته سپکاوی دی. موږ ټول پرې خفه یو او افسوس کوو. خدای (ج) دې پرې رحم وکړي.

## د روسانو د تجاوز موضوع دوام لري:

د ۱۳۵۸ کال د جدي شپږم چې د اتحاد شوروي له تجاوز سره برابره ده.

باید وویل شي چې د جدي له شپږمې د مخه، خلقیانو د حفیظ الله امین په ضد په پراخه پیمانه فعالیت شروع کړ، خو دغه فعالیت وخت نا وخت د مشاورینو له خوا افشا کېده او حفیظ الله امین ته به یې اطلاع رسوله. د ریشخورو د اومې فرقې قیام د څلورمې زره دارې قوا د ټانکونو په وسیله سرکوب شو، ځکه چې شوروي مشاورینو نه غوښتل چې سیاسي قدرت بیا د خلقیانو په لاس کې ولوېږي.

ببرک کارمل د ازبکستان له پایتخت تاشکند څخه خپله بیانیه خپره کړه په داسې حال کې چې د شوروي نظامي قوتونو په کابل کې خپل عملیات شروع کړي وو. د دې عملیاتو په نتیجه کې حفیظ الله امین او یو تعداد نور خلقیان ووژل شول او ببرک کارمل گویا د افغانستان د رهبر په توگه اعلان شو.

روسانو د خلقي اردو قطعات محاصره کړل، د لاندې خلقي قطعاتو په مقابل کې

یې روسي د (کې. جي. بي.) جزوتامونه ځای پر ځای کړل، ترڅو د کابل پر لور حرکت ونکړي:

۱- څلورمه زره داره قوا.

۲- د ریشخورو اوومه فرقه.

۳- د قرغې اتمه فرقه.

۴- پنځلسمه زرهداره قوا.

د جنرال لیاخوفسکي د کتاب په (۲۳۲) مخ کې د جدي د شپږمې تجاوز داسې ارزیابي شوی دی:

هو، دا هسې یوه ساده او واریزه (نوبتي) دولتي کودتا نه وه چې په دې شپې په کابل کې تر سره شوه او د هغې په ترڅ کې واک له خلقیانو څخه پرچمیانو ته چې شوروي لوري یې ملاتړ کاوه، ولیږدول شو، بلکې په حقیقت کې دې کار په افغانستان کې د کورنۍ جګړې زیاتې چټکتیا او پراخېدو ته په کې لمن ووهله. د هغې په پیل کولو سره یې هم د افغانستان او د شوروي اتحاد په تاریخ کې له غمه ډکه پاڼه پرانستله.

د جدي شپږمې په لومړیو ورځو کې د پل چرخي له زندان څخه یو تعداد زندانیان خلاص شول، چې عمدتاً پرچمیان وو. د دغو زندانیانو د وتلو په وخت کې ځینې پرچمیان او د ببرک کارمل ورور محمود بریالی د هغوی استقبال ته ورغلي وو.

محمود بریالي یوه پرشوره بیانیه ورکړه، چې متن یې د محمد عارف امید د کتاب چې (اکا ذیب یغمای منگلی دوم) نومیري په (۲ مخ) کې ثبت ده داسې وایي: «تسلط یکنیم ساله یک اکثریت بی فرهنگ برای همیش خاتمه یافت».

دا پورتني سوزنده کلیمات د پرچمي رهبرانو اصلي ماهیت او له پښتنو سره ضدیت رسوا کوي.

په هغه وخت کې د بریالي په دې بیانیه باندې د انیس دولتي ورځپاڼې تبصره کړې وه چې د بریالي هدف، پښتون ولس و . چې هغوی ته یې شوونیست او

فاشيست خطاب کړي. د پرچم رهبران همېشه قومي او زباني تبعيض ته لمن وهلي او په دې تبليغ کې د پښتون مخالف موضعگيري کې رهبري ته رسېدلی دی. د کارمل او روهي صاحب ملاقات هم د کارمل دښمني له پښتون سره ښه افشا کړيده. هېره دي نه وي چې پرچمي رهبرانو ته د پښتنو مخالفه موضعگيري د شوروي د (کې. جي. بي.) له خوا هميشگي هدايت او رهنمايي وه چې تر اوسه زموږ ښکلی هېواد د ملي نفاق په اور کې سوځي.

برسېره پر دې، شورويانو تدريجي پټه هڅه کوله چې افغاني کلتور ته تغير ورکړي. مثلاً د ببرک کارمل او نجيب الله په موافقه دا لاندې تغيرات عملي شول:

۱- کابل ننداري په پټو اسنادو کې د کابل تياتر په نامه ليکل کېده.

۲- په اسنادو کې په پټه د ملي دفاع وزارت له نوم څخه د ملي کليمه حذف شوي وه.

۳- همدا رنگه د کابل ښاروالي د (کميته منتخب مردم شهر کابل) په نوم يادېده.

۴- د لينين، مارکس او انگلز عکسونه ځړول مروج شول.

۵- د تنوير په اطاقو کې د شوروي د کمونيست گوند د سياسي بېرو عکسونه نصب شول.

٦- د لينين مجسمه په وزارت خارجه کې کېښودل شوه، چې مراسم يې د تلويزون په پرده خپاره شول او کارمل، کشتمند، نجيب الله او نورو پرچمي رهبرانو گډون پکې کړی و.

۷- د (کې. جي. بي.) په هدايت بيا ځلورمه زرهداره قوه، لومړی بند سردې ته او وروسته هرات ته انتقال شوه.

۸- د ريشخور اوومه فرقه زابل ولايت ته انتقال شوه.

۹- د نجيب الله په حاکميت کې د ملي اردو ټول قوتونه لري ولايتونو ته ولېږل شول.

۱۰- د ثور انقلاب ورځپاڼه په (حقيقت انقلاب ثور) ونومول شوه.

۱۱- د سرباز جریده په (حقیقت سرباز) بدله شوه.

۱۲- د غازي امان الله عکسونه چې د دهمزنګ او دارالامان په درې لارې کې نصب وو، لرې کړای شول.

کارمل او نجیب الله له پورتنیو تغیراتو سره په افتخار موافقه کوله. افغاني فرهنګ ته تغیر ورکول نه بښونکې ګناه ده، چې کې. جي. بي. او د پرچم اماتور رهبران یې مسئول دي.

یوه شوروي لیکونکې (ییوګیني کروتیکوف) د مشعل سایت ته دا لاندې مضمون ورکړی او نشر کړی دی:

د شوروي د اشغال په دوره کې به مجاهدینو پراګنده حملات اجرا کول. په عامه توګه د افغان حکومت او شوروي قوتونو سیاسي ارادې کلیدي اهمیت درلود. مګر افغان دولتي مقاماتو هیڅ ډول ابتکار نه درلود.

ببرک کارمل او د هغه مبتکر او شجاع کادر نجیب الله همیشه، په هر ځای کې، په هره بهانه کوښښ کاوه چې خپل ځانونه د شورویانو تر شا پټ کړي. د کابل حکومت په بې مفهومه دسیسه سازي، خورده ګیري او توطیو مصروف و او شوروي قوتونه ناګزیر و چې په ولایتونو کې ملکې اداره هم په غاړه واخلي. که د افغانستان رهبران د منحطې جهان بیني په حلقه کې بندي نه وای کېدای شوای چې تاریخ په بل مسیر حرکت کړی وی. هره ورځ د مارکسیستي شعارونو تکرارول، مسلماً د دولت سقوط ته لاره هواروله. البته دغه شېوه د شوروي نظر پردازانو د تایید وړ وه...

## د میر صاحب کاروال په کتاب (ص ۱۳۷) کې داسې لیکل شوي دي:

تمام بست های کلیدی چون صدارت، وزارت دفاع، امنیت دولتی (خاد) اپارات کمیته مرکزی (شعبات تشکیلات، قوای مسلح، تبلیغ و ترویج و غیره) وزارت خارجه، قوماندانی های قول اردوها، فرقه ها، موسسات تعلیمی نظامی، حربی پوهنتون، حربی ښوونځی و پوهنتون هوایی، آمیرین سیاسی قوای مسلح (اردو، څارندوی و خاد) رهبری حزبی و دولتی ولایات شمال و سایر ولایات عمدهٔ کشور در اختیار جناح

پرچم قرار گرفتند.

از سوی دیگر کادرهای خلقی را به نام های مختلف - امینی، باندپست
فاشیست، انتی سویتست (یا ضد شوروي) یا ضد رهبری جدید و ده ها بهانه دیگ
رد میکردند.

په هر حال، دا ټول مقامات او قدرت دې د پرچمیانو په لاس کې وی... خو
تأسف ځای دا و چې د پرچم رهبران اصلاً زموږ له وطن سره بیگانه و. او د ماکیاول
له فلسفی سره مطابق يې ځانونه عیار کړي وو.

خلقیان په دې عقیده و چې شوروي قوتونه په افغانستان کې دومره ډېر وخت نه
شوای پاتې کېدلای او افغانستان به یو وخت خپلواک شي. ځکه چې خارجي شرایط
(محیط) اغیز لري خو داخلي محیط ټاکونکی دی.

د میر صاحب کاروال کتاب (ص ١١٣) د جدي د شپږمې په اړه داسې وايي

اکنون ببینیم که در تپه تاجبیگ چې میگذرد: امین و سایر مهمانانش توسط
آشپز شوروي بنام ازبک محمد جان ذریعه سوپ زهردار مسموم میگردند و مسئولین
عملیات شوروي در انتظار بودند که امین بدون انجام عملیات امکان دارد از بین
برود. ولی میگوید که درین موقع اقبال وزیری مشاور سیاسی او به سفارت شوروي
بخاطر کمک عاجل تیلیفون میکند تا داکتران شوروي برای نجات امین روان کند،
فکرت احمد جانویچ تابییف سفیر شوروي در افغانستان چنین میگوید: "ما یک
گروپ از داکتران شوروي به خاطر کمک طبی به قصر تاجبیگ روان کردیم ولی ما
از اصل قضیه در باره اینکه امین باید از بین برود و یا اینکه برای این امر عملیات
شوروي در نظر بود اصلاً اطلاع نداشتیم و منحیث سفیر بعداً از خانم خویش شرمیدم
که گویا تو منحیث سفیر شوروي اطلاع نداشتید".

لیاخوفسکی درین مورد چنین مینویسد: هنگامیکه سرهنگ ویکتور کوزنیچنسکف
پزشک شوروي، اناتولی الکسییف آمر گروه جراحی بیمارستان و دیگر پزشکان
نزدیک های ساعت دو بجه روز به نخستین پاسگاه محافظ کاخ رسیدند و سلاح
های خود را تحویل دادند، در تفاوت از روز های دیگر با برخورد نهایت خشن رو برو
گردیده و بدقت مورد باز پرسی قرار گرفتند، پزشکان از خود می پرسیدند: چې څ

داده باشد؟ مگر هنگامی دیدند که عده ای در مدخل، روی پلکان و روی فرش اتاق ها به هر گوشه بیهوش و بیخود افتاده اند دانستند که چې شده است؟ کسانیکه بخود می آمدند از درد فریاد میکشیدند پزشکان بیدرنگ درک کردند که مسمومیت گروهی رخ داده است پزشکان میخواستند به اسیب رسیدگان کمک کنند، که پزشک افغانی (داکتر ولایت سرهنگ) به سوی آنان دویده و آنان را با خود نزد امین برد... دبیر کل در وضعیت سخت قرار داشت. پزشکان از پلکان بالا آمدند.

حفیظ الله امین در یکی از اتاق ها با بدن نیمه برهنه بروی زمین افتاده بود. و چانه اش آویزان شده بود و چشمانش بی نور و سفید چیزی را نمی دیدند، نشانه از هوش در وجودش دیده نمی شد. در یک سخن در کومای مُدهشی فرو رفته بود. پزشکان از خود می پرسیدند آیا او مرده است؟ نبض هایش را دیدند به آهستگی می زدند... گویا اینکه در میان مرگ و زندگی میخکوب شده بودند. سرهنگ کوزنیچنکف و سرهنگ الکسییف با نجات "رهبر کشور دوست" طرح های (کې. جي. بي.) را برهم میزنند. خلاصه اینکه تداوی تا ساعت شش شام ادامه پیدا کرد و امین را نجات دادند.

لیاخوفسکی ادامه میدهد: پس از لحظات طولانی، امین تکان خورده بخود آمده و با شگفت زدگی پرسید: چرا در خانهٔ ما چنین چیزی رخ داده است؟ چې کسی این کار را کرده است؟ آیا تصادفی است یا کدام توطیه؟ این واقعه، افسران مسئول امنیت (جانداد و اقبال) را خیلی پریشان ساخته بود... آنها به تیپ چهارم زرهدار زنگ زدند که برای کمک آماده باشند، مگر از هیچ جا کمک دریافت نمیتوانستند -چون کومندو های ما (شوروي) کاملاً یگان های (قطعات) مستقر در کابل را در محاصره خود داشتند.

بدین ترتیب، امین در پلان اول از مرگ نجات پیدا کرد، پس پلان دومی برای از بین بردن امین... ساعت هفت و ۴۵ دقیقه آغاز میگردد. داکتر معالج شوروي میگوید: پس از چند لحظه، امین را دیدم که زیر پرتو روشنایی آتش با زیر پراهنی سفید، برهنه کشان، کشان در دهلیز راه میرود. داکتر الکسیف از پناه گاهش بر آمده بسوی امین دوید، نخست سوزن ها را از دستانش بیرون کشید و با انگشت ها

رگهای اورا فشارداده آنگاه اورا بسوی بار کشانید.

امین به یاور خود دستور داد به مشاورین نظامی شوروي زنگ بزن و آنان را خبر کنید که به کاخ حمله شده است و گفت "شوروي ها کمک میکنند". یاور (جانداد) به امین گفت که "این شوروي ها اند که آتش باری میکنند". این سخنان، دبیر کل را از خود بیخود ساخت، خاکستردانی سیگار را گرفته بسوی جانداد پراند و به خشم فریاد زد "دروغ میگویی این امکان ندارد"، پس خود کوشید با رئیس ستاد و فرمانده تیپ (لوا) چهارم زرهدار (قوای زرهدار) تماس بگیرد، مگر ارتباطات آنها قطع بود پس از آن به آهستگی غُرید "دیگر دانستم، درست است".

در همان کتاب توفان در افغانستان گفته میشود که امین توسط (۳۰۰) تن سربازان افغانی داخل قصر و اطرف آن جمعاً (۲۰۰۰) تن امنیت او را گرفته بود و تقریباً در حدود (۴۰۰) تن در داخل قصر و اطراف آن کشته شده اند و متباقی تماماً اسیر گردیده اند... طبق گفته داکتر الکسییف که داکتر معالج شوروي بنام کوزنیچینکف که امین را نجات داده بود نیز به قتل رسید و جنگ بخاطر (اشغال) قصر تاجبیگ یکنیم ساعت با شدت کامل ادامه پیدا کرد و تلفات در هر دو طرف موجود بودند، مسئول رهبری عمومی گروه مخصوص (کې. جي. بي.) بنام بوریاتف کشته شده بود. هم چنان کندک مسلمان و گروپ های مخصوص (کې. جي. بي.) تلفات سنگین داشتند. در نتیجه امین و دو فرزند او بقتل میرسند. لیاخوفسکی از قول والنتین برایترسکی (کارمند سابق کې. جي. بي.) مینوسد: از گروه "زینت" از جمله (٦٠) تن تنها (۱۴) نفر سالم ماندند... کارمل بما اطمینان داده بود که (۵۰۰) نفر رزمنده وفادارش مارا حمایت خواهند کرد - مگر تنها یک نفر در میدان جنگ آمده بود. او اضافه میکند: برای ما این فرضیه را تلقین و تحمیل کرده بود که امین با امریکایی ها زد و بند دارد و ما یک همسایه خطرناک دیگر در جنوب پیدا کرده ایم. هیچ گاه هیچ سندی دال بر تائید این احتمال ارایه نگردید. برای من وقتی هر چیز روشن شد که ماموری که بسوی امین آتش کشود بمن گفت "دستور بود امین را زنده دستگیر نکنم".

لیاخوفسکی می نویسد: در گروه اشغال یکی از مهره های برجسته پرچم،

عبدالوکیل وزیر خارجه آینده فرمان مجازات یعقوب رئیس ستاد کل نیروهای مسلح افغانستان (لوی درستیز قوای مسلح) را صادر و او را با تفنگچه خود از پا در آورد.

د حفیظ الله امین له وژلو څخه یوه ورځ وروسته، بریژنیف ته راپور ورکړ شو چې د داخله وزارت لومړي مرستیال تورن جنرال وکتور پاپوتین خود کشي کړېده.

تورن جنرال وکتور پاپوتین هغه څوک و چې د ۱۹۷۹ د نومبر په اواخرو کې د یوه محرم ماموریت لپاره افغانستان ته واستول شو.

تورن جنرال پاپوتین، بېله دې چې د افغانستان په اوضاع او احوال کې ژور نفوذ وکړي په عجله سره یې د افغانستان حالات فاجعه بار توصیف او شوروي رهبري ته گزارش ورکړ. جنرال پاپوتین د حفیظ الله امین سره څو، څو واره ملاقات کړی و او امین ته یې داسې ذهن ورکړی و ، چې اوضاع لا نوره هم خرابیږي. په نتیجه کې جنرال پاپوتین بریالی شوی و تر څو امین ته له شوروي اتحاد څخه د نظامي قطعاتو د دعوت کولو قناعت ورکړي.

نه پوهیږو چې جنرال پاپوتین د خپل ژوند په وروستیو لحظو کې څه فکر کاوه او د خپل کوم یو عمل یا نظر څخه پښېمانه و .

(٦ مخ) د کتاب نوم: "د افغان د جنگ ډگر".

## د ولس عقیده او نظریات

یو افغان شاعر، لیکوال او تحلیلگر د محترم ببرک کارمل د وفات د اتلسمې کالیزې په مناسبت یو مضمون لیکلی دی، چې عنوان یې دی "فاوست های روزگار ما".

دا افغان لیکوال پرتو نادري نومیږي.

د دې لیکنې مختصر تکې دا دي چې لوستونکې به پخپله قضاوت وکړي چې دا تحلیل څومره واقع بینانه دی یا نه دی.

لیکوال، ببرک کارمل له شاه شجاع سره مقایسه کوي او وایي: شاه شجاع د

انګليس جاسوس و خو ببرک کارمل د روس جاسوس و.

په متن کې شاه شجاع د انګليس د تجاوز سمبول نومول شوی او ببرک کارمل د روس د تجاوز سمبول ګڼل شوی دی.

ليکوال د آلمانی شاعر او فيلسوف (يوهان ولفګانګ فن ګوته) د اثر "تراژيدی فاوست" په مصداق د يوه شخصيت چې "ډاکتر فاوست" نوميږي داسې شرح ورکړې ده:

ډاکتر فاوست د خپلو شخصي غرايزو او نفساني غوښتنو د ارضا لپاره له شيطان سره د دوستۍ تړون عقد کړی و.

شيطان وعده کړې وه چې د فاوست ټولې نفساني غوښتنې به پوره کړي. فاوست وعده کړې چې د مرګ په وخت کې به خپله روح، شيطان ته سپاري چې همېشه يې شکنجه کړي.

نو ځکه شاه شجاع او کارمل ته د (فاوست های تاريخ کشور ما) عنوان ورکوي چې د دواړو روح په تاريخ کې په نفرت سره ياديږي او شکنجه کيږي. شاه شجاع د انګليس په اختيار کې و، چې تاج و تخت ته يې ورساوه.

- ببرک کارمل د شوروي په اختيار کې و، چې له شاه شجاع څخه ۱۴۰ کاله وروسته يې تاج و تخت ته ورساوه.
- د شاه شجاع د تاج پوشي مراسم په قندهار کې اجرا شول.
- د ببرک کارمل د تاج پوشي مراسم په تاشکند کې اجرا شول، ځکه چې د ۱۳۵۸ هـ. ش. کال د جدي په شپږمه نېټه يې خپله بيانيه د افغانستان د ولس په نامه له تاشکند څخه خپره کړه.
- د قندهار خلکو چې له شاه شجاع سره انګليسي سربازان وليدل نو له ده څخه يې استقبال ونکړ.
- د کابل خلکو چې له کارمل سره شوروي سربازان وليدل، خپل دُکانونه يې وتړل او په مظاهره يې لاس پورې کړ.
- شاه شجاع به د عامو خلکو لپاره دربار جوړاوه او د هغوی شکايتونو ته به

یې رسیدګي کوله.

- اما کارمل د شوروي د شطرنج مُهره وه، هیڅ دستور یا فرمان یې نشوای ورکولای.
- شاه شجاع، مکناټن ته ویلي وو، زموږ په هېواد کې نور امن دی او انګلیسي سربازانو ته ضرورت نشته.
- اما کارمل همېشه تلاش درلود چې شوروي سربازان په افغانستان کې وساتي.
- یو ځل داسې پېښه وشوه چې د خلکو رهبرانو په شاه شجاع اعتراض وکړ چې انګلیسان فریبکار دي او ته په دې موضوع کې مسؤلیت لرې! شاه شجاع ورته ویلي وو، تاسو زما له زړه څخه خبر نه یاست. زه د انګلیس د پهره دارانو په حلقه کې محکوم یم او بېله سوختن او ساختن نه بله چاره نلرم.
- اما باور نکیږي چې کارمل به مشابه جمله له ځان سره هم تکرار کړې وي.
- تاریخ په یاد لري، کله چې بریژنف د دوزخ په لور روان شو، ببرک کارمل یوه هفته ملي ماتم اعلان کړ.
- ببرک کارمل په خپله بیانیه کې چې د بریژنف د مړینې په مناسبت یې ورکړه ډېر سخت وژړل.
- په "افغانستان در مسیر تاریخ" کتاب کې د شاه شجاع په باب لیکل شوي دي:
- بانو فلورنتیاسل انګلیسي راجع به شاه شجاع ګفته است : د ۱۸۴۱ کال د اُکتوبر په میاشت کې ډېر اعلانونه په لاس راغلي وو چې شاه شجاع، خلک د انګلیس پر ضد قیام او جهاد ته دعوتول.
- شاه شجاع، مکناټن ته پیشنهاد وکړ چې له انقلابیونو سره مصالحه وکړي. بالآخره، مکناټن، لارداکلند ته ولیکل چې شاه شجاع له موږ سره خیانت کوي.

- شاه شجاع جنرال سيل ته د جلال آباد د تخليې امرنامه ولېږله.
- مگر ببرک کارمل د داسې کارنامو يوه نمونه هم نه لري.

د ذکر شوو ټکو په باره کې به مکمل اصلي سند تاسو ته وړاندې شي.





ببرک کارمل - بریژنف

فاوست های روزگارما ! درتاریخ کشورها رویدادها و شخصیت های وجود دارند که می شود آن ها را با هم مقایسه کرد و به نتایجی دست یافت. چنانکه در تاریخ معاصر افغانستان دو رویداد نامیمون وجود دارند که می توان دو چهرهٔ اصلی این دو رویداد را با هم مقایسه کرد.

رویداد نخست، یا بهتر است بگویم فاجعهٔ نخست همان تجاوز انگلیس و فاجعهٔ دوم تجاوز اتحاد شوروي سابق است بر سرزمین ما. در این دو رویداد، نخستین وجه اشتراک همگونی هایی است که در میان آن دو چهرهٔ اصلی این دو رویداد وجود دارد. این دو چهره یکی شاه شجاع است و دیگری ببرک کارمل.

در روزگاری که نیم قارهٔ هند زیر سیطرهٔ انگلیس قرار داشت و دولت «تزار» روس رو به سوی سرزمین های آسیای میانه به پیش می آمد، این امر روز تا روز اضطراب و نگرانی انگلیسها را بیشتر می‌ساخت، چنین بود که انگلیسها به این اندیشه شدند تا با یک یورش نظامی به افغانستان، جلو پیش روی تزار به سوی آسیای میانه را سد سازد.

شاه شجاع سالیان درازی بود که در "لودیانه" هند زنده‌گی می کرد. انگلیس ها

بـر زنده گـی او نظـارت داشـتند. بـه زبان دیگـر او دراختیار انگیس ها قرار داشت. انگلیس بـا ایـن اندیشـه که شـاه شـجاع مناسـب ترین کسـی اسـت که مـی شـود در وجـود او یورش نظامـی بـه افغانسـتان را رنـگ و بـوی دیگـری داد، او را وسـیلهٔ تجـاوز خود سـاختند. ظاهراً بـه ایـن بهانـه کـه گویـا او وارث برحـق تـاج و تخت افغانسـتان اسـت و باید به تـاج و تخت برگـردد. در آن زمـان در افغانسـتان نیـز تـا جایـی ذهنیت چنیـن بود که شـاه شـجاع را وارث برحـق تـاج و تخـت مـی دانسـتند، شـاید انگلیس ایـن مسـئاله را درک کـرده بود.

مـاه مـارچ ١٨٣٩ بـود کـه انگلیـس لشـکری آمـاده سـاخت از ٦٠٠٠ سربـاز و نیروهـای کمکـی دیگـر. شـاه شـجاع ظاهـراً با رهـبری این لشـکر از "شـکارپور" به خـط درهٔ "بولان" بـه حرکـت افتـاد، تـا ایـن کـه در ۲۵ اپریل همـان سـال به کندهار رسـید. پـس از این حادثه ۱۴۰ سـال بعـد، شـوروي بنـا بـر آرزوی دیرینـه اش برآن شـد تا بر افغانسـتان یـورش آورد، تا شـاید درگام بعـدی اژدهـای سرخ کمونیـزم خـود را بـه آب هـای گرم برسـاند.

شـوروي ببرک کارمل را در اختیار داشـت. چنان بود که با سـپاه بیشـتر از یک صدهزار جنگنـده و جنـگ افزارهـای پیشرفتـه از آمـو دریـا گذشـت و ظاهـراً بـبرک را بـه تـاج و تخت رساند.

"یوهـان ولفگانـگ فـن گوتـه" شـاعر وفیلسـوف بـزرگ آلمانـی در اثـر بـزرگ خویش "تراژیـدی فاوست"سـخن از مـردی دارد بـه نام "داکتر فاوسـت". این مرد جهت رسـیدن به کامـگاری هـای غریزی و ارضای خواهش های نفسـانی با شـیطان پیمان دوسـتی میبندد. بـه گونـه یـې کـه شـیطان خـود را در اختیـار فاوسـت قرار مـی دهـد و او را به تمام خواهش های غریزی اش میرسـاند. فاوسـت در مقابل باید روح خود را در اختیار شـیطان قرار دهد. یعنـی آنـگاه کـه فاوسـت بـه اوج لـذت غریـزی خود می رسـد، یـا آنگاه کـه تمام عقده های غریـزی او ارضـا میشـود و میمیـرد بایـد روحـش را در اختیـار شـیطان بگذارد تا شـیطان روح او را همیشـه شـکنجه کند. یعنـی فاوسـت برای رسـیدن بـه خواهش های بهیمـی وغریزی خـود، مـی پذیـرد کـه روحش را به شـیطان بدهد تا شـکنجه شـود.

شـاه شـجاع و ببرک کارمل را می توان فاوسـت های تاریخ کشـور خواند، فاوسـت های روزگارمـا. ایـن دوتـن نیز روح خود را به شـیطان و شـیطان سیاسـت هـای روزگار فروختند تا در جهـان غرایـز کام روا باشـند. امـا هردو شـاید هنوز به آن اوج لذت غرایز نرسـیده بودند که

مردند و روح هر دو با نفرت و نفرین همیشه‌گی تاریخ گرفتار آمده و شکنجه می شوند.

مراسم تاج پوشی شاه شجاع که همان حلقه آویزی برده‌گی بود در کندهار صورت گرفت. اما مراسم تاج پوشی کارمل در تاشکند صورت گرفت. برای آن که او بیانهٔ خود را شب ششم جدی ۱۳۵۸ خورشیدی برابر با دسمبر ۱۹۷۹ از رادیو تاشکند خطاب به مردم افغانستان ایراد کرد.

فردای آن شب کابل پایتخت کشور کیج بود، وضعیتی داشت شاید به مانند کندهار در روز تاج پوشی شاه شجاع. امین به دست نیروهای شوروي و به همکاری طرفداران کارمل کشته شده بود و به گفتهٔ شاعر لاشهٔ سنگین او در پرتگاه نفرت و نفرین تاریخ روی زانوان عفریت شب گندیده بود و خون هزار رستم دستان را بر گردن داشت. همان گونه که شهریان کندهار با دیدن سربازان و افسران انگلیس از شاه شجاع استقبالی نکردند، شهریان کابل نیز با شندیدن بیانهٔ کارمل از رادیو تاشکند و دیدن سربازان و افسران روسی در شهر با آن که از دهشت و خون خواره گی های امین به ستوه آمده بودند، از کارمل و همراهان او پذیرایی نکردند. چنانکه شهریان بر دُکان ها و فروشگاه های خویش قفل آویختند و در شهر کابل فروشگاه ها و کارهای بازار تا یک هفته بسته بود. این امر بزرگترین اعتراض مدنی شهریان کابل بود در پیوند به هجوم شوروي بر افغانستان که کارمل را وسیله ساخته بودند.

شش ماه گذشت تا این که سپاهیان انگلیس شاه شجاع را پس از جنگ ها و دشواری های زیاد از کندهار در هفتم اگست ۱۸۳۹ به کابل رساندند. شهریان کابل به استقبال شاه نو بر بام و برزن برآمدند. اما زمانی که شاه را در حلقهٔ سربازان و افسران انگلیس دیدند، هیچ کسی نه دستی به شاه تکان داد و نه سلامی فرستاد. آمده است که زمانی شاه شجاع پس از سی سال در به دری به بالاحصار رسید و آن ساختمان سلطنی را دید به سختی گریست. مگر ورود کارمل به کابل بسیار رازناک بود. او به مانند شاه شجاع از خیابان های شهر نگذشت، کس نمی داند که او هنگام رسیدن به کابل چې هیجانی داشت، زمانی که پس از یک سال و اندی استراحت و انزوا سیاسی در اروپا و مسکو پای بر ارگ شاهی گذاشت که در آن روزگار امین آن را به نام خانهٔ خلق نام گذاشته بود. با این حال مردم شبانه در پردهٔ تلویزوین های شان دیدند که کارمل

سخت هیجانی بود، دهان تا بناگوش باز و دست افشان و پای کوبان گزافه می گوید.

میگویند شاه شجاع در روزهای معینی بنابر رسم دیرینی که در این جامعه وجود داشت، بارعام برپا میکرد. به دادخواهی مردم رسیده گی می کرد. اما با گذشت زمان، انگلیسها او را در موقعیتی قرار دادند که نمی توانست از حرم خود پای به بیرون گذارد. حرم او و دربار او توسط سربازان و افسران انگلیس پهره داری میشد. شاید شاه شجاع در آغاز نمی دانست که چنین دست بسته خود را و سرزمین را به انگلیس تسلیم داده که حتا نمی تواند بدون اجازهٔ آنان پیاله آبی هم را سربکشد. اما کارمل از همان آغاز می دانست که جز مهره‌یی روی تختهٔ شطرنج سیاست شوروي چیزی دیگری نیست. هیچگاه بارعام نداد، حتا کوچکترین فرمان و دستور را بدون حکم مشاور، صادر نمی کرد. ولی با این حال پهره داران روسی پیوسته او را دنبال می کردند تا مبادا پای از گلیم خویش فراتر گذارد.

شاه شجاع ساده لوحانه می پنداشت که انگلیس ها زمانی که او را به حیث وارث حقیقی تاج و تخت به تاج و تخت می رسانند، دیگر بر می گردند. بر بنیاد چنین پنداری بود که روزی به مکناتن گفته بود که دیگر این سرزمین درامن است و من پادشاهم، بناً دیگر نیازی برای بودن سپاهیان انگلیس در افغانستان نیست. مکناتن در پاسخ به او گفته بود: تا خطر امیر دوست محمد خان باقی است موجودیت قشون انگلیس درافغانستان حتمی‌است. اما کارمل با آن که خود ازا هداف شوم شوروي های آگاهی داشت، پیوسته تلاش می کرد که سپاهیان متجاوز شوروي را درافغانستان نگه دارد، چنین بود که هیچ گاهی از شوروي ها نخواست تا افغانستان را ترک کنند. بلکه می هراسید که با رفتن شوروي ها از تاج و تخت فرو خواهد افتاد. چنین بود که پیوسته فریاد می زد: تا آنگاه که خطر مداخلهٔ امپریالیزم جهانی و در راس آن امپریالیزم امریکا، هژمونیزم عظمت طلب چین و ارتجاع منطقه از مرزهای کشور ما رفع نشده است، سربازان انترناسیونالیست شوروي با ما خواهد بود. بعداً گفته های او از این مرز هم گذشت و بانگ بر آورد: سرنوشت ما با سرنوشت اتحاد شوروي برای ابد پیوند خورده است.

آمده است که باری رهبران مردم بر شاه شجاع اعتراض کردند که در روزگار شما هر روز فریب کاری انگلیس به گونه يې پدیدار می‌شود و فزونی می گیرد و این امر سبب

بدنامی و رسوایی شما و مردم کشور می شود. بنأ شما مسئول هستید! گویند شاه با شنیدن چنین سخنانی آهی کشیده و گفته بود: شما از دل من آگاه نیستید. من محکوم پهره داران و پاسبانان انگلیس هستم و چاره یې جز سوختن و ساختن ندارم. افسوس آنچه که بود از دست رفت. مردان کاری خراسان و رجال با غیرت و با همت مردند و رفتند ورنه این شمشیر من شمشیر اسلام است. هر مرد با همتی که باشد بیاید و بر دارد، مصارف چنان غازیان را من آماده خواهم کرد. مردمان برگشتند و این موضوع را با دیگران درمیان گذاشتند. اما نمی توان باور کرد که کارمل یک چنین جمله هایی را هم در تنهایی با خوشتن خویش تکرار کرده باشد. یک جمله پیوسته بر زبان او جاری بود: تشدید مبارزه علیه اشرار!، اما این مردم بودند به خاک و خون کشیده می شدند و هستی آنان بود که خاک و دود می شد!

شاید اضافه از نود درصد فیصله ها و تصامیم پلینوم های حزب دیموکراتیک خلق در زمان کارمل بر چنین شعارهایی استوار بود: بگذار زمین در زیر پای اشرار آتش بگیرد!. تاریخ به خاطر دارد زمانی که بریژنف راهی دوزخ شد، کارمل یک هفته ماتم ملی در کشور اعلام کرد. یک هفته رادیو افغانستان سرود ماتم و نوحه پخش می کرد. کارمل در بیانیهٔ که به مناسبت مرگ بریژنف ایراد کرد، به سختی گریست!

در کتاب "افغانستان در مسیر تاریخ" به نقل از کتاب بانو فلورنتیاسل انگلیسی راجع به شاه شجاع آمده است: در اکتوبر ۱۸۴۱ اعلانات زیادی به دست آمد که به امضای شاه شجاع مردم به قیام و جهاد بر ضد انگلیس دعوت شده بودند... شاه شجاع به مکناتن پیشنهاد کرد که با انقلابیون مصالحه کند و رهبران شان معاف شمرده شوند! انگلیس ها که از قیام مردم مشوش شده بودند، خواستند در بالا حصار پناه ببرند، مگر شاه شجاع نپذیرفت و گفت: که مکناتن را هم در بالا حصار قبول کرده نمیتوانم و تعمیر بزرگی را به نام ترمیم مجدد ویران کرد... در نوامبر شاه پیشنهاد صلح به مجاهدین نمود... بالاخره مکناتن به لارد اکلند نوشت که شاه شجاع به ما خیانت می کند، باید دوست محمد خان به کابل رجعت داده شود... در دسمبر انگلیس ها به شاه شجاع پیغام دادند که از بالا حصار به قشلهٔ نظامی بیاید تا با هم یک جای به جلال آباد روند، اما شاه قبول نکرد... در دسمبر شاه اعلان جهاد ملی را در مقابل انگلیس ها امضا کرد. شاه شجاع نه این که رفتن با انگلیس را نمی خواهد، بلکه طبقات مختلف مردم را بر

ضد انگلیس تحریک می کند ... درمارچ ۱۸۴۲ شاه شجاع امرنامۀ تخلیۀ جلال آباد را
به جنرال سیل فرستاد... این یادداشت های یک خانم انگلیسی است که در جنگ اول
انگلیس - افغان در افغانستان بود و مدتی هم جزاسرا و گروگانان انگلیس تحت نظر
افغان ها به سر برده بود. با درنظر داشت حوادث تاریخی سال های ۱۸۳۹ تا اپریل
۱۸۴۲ که خط حرکت شخصیت شاه شجاع را در نظر می گیریم دیده میشود که او نوع
دل زده گی و بیزاری نسبت به انگلیس ها را از خود نشان می دهد و علاقه دارد تا آن ها
دست از سر او بردارند، به زبان دیگر می خواهد از چنان وضعیتی رهایی یابد و انگلیس
ها افغانستان را ترک کنند. اما انگلیس ها اهداف خود را دارند و برای رسیدن به اهداف
خود او را وسیله ساخته اند تا اهداف شان از نظرمردم پوشیده بماند.

چنین است که سرانجام شاه شجاع تصمیم می گیرد و به انگلیس که او را وسیله
ساخته است، پشت می کند و به مردم می پیوندد. چنان که او چهارم اپریل ۱۸۴۲ از
بالاحصار کابل بیرون میشود و میرود در سیاه سنگ که آن جا با هزاران مرد تفنگدار که
به هدف نابودی سپاهیان انگلیس در جلال آباد گرد آمده بودند، می پیوندد. اما شب
هنگام جهت اجرای پارۀ امور پنهانی به بالا حصار برمی گردد. بامداد وقتی بالا حصار
را ترک میکند و سوار برتخت روان راهی اردوگاه می شود؛ بخت او را یاری نمی کند تا
با پیوستن به اردوگاه و نبرد با سپاهیان انگلیس، بتواند گناهان گذشتۀ خود را در دادگاه
تاریخ جبران کند. در مسیر راه مردی به نام شجاع الدوله به اتفاق شصت تن از یارانش
از کمین گاه بیرون می شوند و برشاه هجوم می آورند و با ضرب شمشیر او را می کشند.
اما ببرک کارمل را که به نام بیمار درمان ناپذیر که بدون تردید عاملش همان ویروس
سرخ سیاست مسکو بود، از اریکه پایین کردند، او تا آن زمان کوچکترین انعطافی از
خود نشان نداده بود. هیچ جمله و هیچ حرکتی از او شنیده و دیده نشده بود که بیان گر
بیزاری او از حضور نیروهای سرخ شوروي در افغانستان باشد. شاید بتوان گفت جایگاه
او در برابر تاریخ چندین و چندین مرتبه حقیرتر، نگینتر و سیاهتر از جایگاه شاه شجاع
است. برای آنکه در اندیشه های جاه طلبانه و وطن فروشانۀ او سرانجام تردیدی پدید
آمد و برای نجات خود تلاش های کرد، هرچند نا فرجام. با این حال تاریخ شاه شجاع
را نخواهد بخشید، برای آن که تاریخ بر بنیاد کارکرد ها داوری می کند نه بر بنیاد اندیشه
ها و پندارها. در مقابل اندیشه های جاه طلبانه و وطن فروشانۀ کارمل چنان استوار و بی

تردید باقی ماند که تا آخرین روزها نتوانست بپذبرد که او شوروي را در اشغال افغانستان یاری رسانده ، وسیلهٔ در دست شوروي بوده تا آن تجاوز راه اندازی شود، همانگونه که شاه شجاع وسیله يې بود در دست انگلیس. می توان گفت در تاریخ معاصر کشور اگر شاه شجاع فاوست نخستین باشد، بدون تردید کارمل دومین فاوست این تاریخ است. اما سرسخت تر از شاه شجاع برای آنکه هیچ گاهی برای رهایی روان فروخته شدهٔ خویش تلاشی نکرد! پس از شاه شجاع و کارمل تاریخ معاصر این کشور با فاست های دیگری نیز رو به رو شده است. گویی همیشه این فاوست اند که در تفاهم با شیطان بر این سرزمین حکومت می کنند!

یاد داشت: اشاره های تاریخی در این نوشته با استفاده از کتاب "افغانستان در مسیر تاریخ" میر غلام محمد غبار آمده است.

## عکس العمل مردم افغانستان در برابر تهاجم شوروي و رهبری جدید

شام شش جدی ۱۳۵۸ مردم افغانستان سقوط رژیم امین را از طریق رادیو می شنوند و روز بعدی شهریان کابل میبینند که همه کوچه ها، سرکها و سایر نقاط کلیدی و ستراتیژیک شهر کابل توسط عساکر شوروي با تانکها و زرهپوشها اشغال گردیده اند و بعداً رهبر جدید از طریق رادیو تلویزون معرفی میگردد...

از سوی دیگر مردم افغانستان بعد از یک خاموشی موقتی، احساس ملی آنها تحریک میگردد و آن اینکه هیچ دلیل و برهان برای حضور نیروهای خارجی را در کشور خود نمیتواند آنها را آرام و قانع سازد. ازین رو عکس العمل های مردم افغانستان در برابر نیروهای شوروي آغاز میگردد که نخستین عکس العمل را میتوان قیام سه حوت ۱۳۵۸ شهریان کابل نام برد.

شام دو حوت مردم شهر کابل بالای بامهای خانه های شان بالا شدند و با شعارهای الله اکبر بر ضد شوروي ها و رهبری جدید (ببرک کارمل) آغاز مینمایند و تا صبح سه حوت ۱۳۵۸ در جاده میوند و سایر نقاط شهر کابل جمع شدند...

هم چنان عکس العمل ها و تحریکات در مکاتب شهر کابل بر ضد شوروي شروع

گردیده و دامنه عکس العمل ها در سایر ولایات کشور چون هرات، قندهار، تخار، پروان، کنرها، پکتیا و غیره نیز ادامه پیدا میکند. از سوی دیگر رهبری جدید، بالای قوای مسلح افغانستان از جمله اردوی ملی اعتماد نکرد و مجبوراً بعوض اردوی ملی، از نیروهای نظامی شوروي برای تامین امنیت در شهر کابل و سایر ولایات دیگر استفاده بعمل آوردند - در نتیجه عساکر شوروي عملاً با مردم افغانستان رو برو شدند.

در عین حال کشورهای خارجی مانند امریکا و کشورهای اسلامی و کشورهای همسایه از مقاومت اپوزسیون افغانستان پشتیبانی مالی و نظامی اعلام کردند.

د هارون کتاب چې "داود خان د کې. جي. بي. په لومه کې" په نوم یاد شوی د مرغومي (٦) تر عنوان لاندی مفصل معلومات وړاندې کړي دي. مثلاً:

د مرغومي شپږمه د افغانستان په تاریخ کې تر ټولو توره ورځ ده. د نړۍ لومړی استعماري ځواک د جنګ د ازمویل شوو جنرالانو په نقشه له خپلو ټولو جنګي وسلو او مدرنو وسایلو سره پر یوه بې دفاع، مظلوم او سوله خوښوونکې هېواد باندې د ټولو بین المللی موازینو او قوانینو په خلاف په ډېرې بې شرمي یرغل وکړ. د دې عملیاتو لارښوونه د کې. جي. بي. په غاړه وه.

د هغه شعر په اقتباس چې د شاه شجاع په باب ویل شوی دی:

سکه زد بر سیم و زر شاه شجاع ارمنی
نور چشم لارد و برنس خاکپای کمپنی

د ببرک کارمل په باره کې ولس داسې زمزمه کوله:

تکیه زد بر تاج و تخت کارمل پرچمی
نور چشم بریژنف خاک پای کې. جي. بي

د نجیب الله نظامي مشاور ستر جنرال محمود گارییف د خپل کتاب په (٢٦) مخ کې اوضاع او احوال داسې بیانوي:

در درون افغانستان وضع بحراني پدید آمده بود. این وضع بویژه با به قدرت رسیدن حفیظ الله امین پیچیده تر شده بود، مگر با آمدن کارمل ازین هم بدتر شده. ضرورت تعویض دولت در افغانستان را که با پافشاری کې. جي. بي. صورت گرفت، سفیر پیشین

شوروي در افغانستان فکرت احمد جانوویچ تابییف که شخص سیاسی خیلی ها پر شور ومجرب بود توضیح میداد. که شاخه بورژوا دیموکراتیک "پرچم" کمتر تندرو و افراطی وبیشتر میانه رو بود میتواند سریعتر مورد اعتماد مردم قرار گیرد. مگر این امیدواری ها تحقق نه پذیرفت. "پرچمی ها" که بیشتر از محافل بورژوازی روشنفکر نمایندگی میکردند، از مردم دور بودند. با آمدن کارمل اوضاع بدتر شد. بقدرت رسیدن پرچمی ها تضادها در حزب، دولت و ارتش با ناپایدار ساختن اوضاع اجتماعی، سیاسی و با پدید آوردن درز های نو در جامعه و ارتش بیشتر پرتنش گردانید و دولت پرچمی فقط زیر فشار مشاوران شوروي تحکیم می یافت... ختم.

د ۱۳۵۷ د ثور اوومه نېټې او د ۱۳۵۸ شپږم د جدي یوه ساده مقایسه:

- د ثور اوومه نېټه که کودتا یا انقلاب و خو افغاني و.

- د جدی شپږمه نېټه بې له شکه د روسانو تجاوز او یوه خونینه کودتا وه.

- که د ثور د اوومې نېټې قیام له یوې ونې سره تشبه کړو، نو د هغې ونې ریښې، تنه، څانګې، پاڼې او اجرایوي مهرې افغانی وې خو دا بـه ومنو چې پاڼو یـې د بېګانه ایدیالوژي رنګ درلود.

- خو د جدي شپږم د ونې، ریښې، تنه، څانګې، پاڼې، د پاڼو رنګ او اجرایوي مهرې ټولې بېګانه وې او په نتیجه کې د ثور انقلاب په بېګانه لاسونو کې ولوېده نو بېله شکه چې ملي مصالحه هم د بېګانګانو په لاس کې ولوېده.

خلقیانو ځکه د دې جریان (٦ جدي) سره سازش وکړ چې له یوې خوا له انجام شوي عمل سره مخامخ شوی و، له بلې خوا یې خپل رهبران له لاسه ورکړي وو او په عین حال کې د خلقیانو ګوند د هېواد یو سر تا سري ګوند و چې باید د مبادا لپاره ساتل شوی وی. نو ځکه خلقیانو د شوروي قوتونو د وتلو په امید شپې او ورځې شمارلې تر څو خپل هېواد خپلواک ووینې. روسانو د نجیب الله په شمولیت زور د هېواد غیر مستقیم اشغال ته دوام ورکاوه.



# پنځم څپرکی

## پرچم ولې له صحنې څخه و ایستل شو؟

د مقدمې په توګه به د غرزي لایق (د لایق صاحب زوی) لیکنه ولولو:

## غرزی لایق - فرزند سلیمان لایق

از پدرم (لایق صاحب) شنیده بودم که: در همین گیر و دارها، شام یکی از روزها نور محمد تر کی پدرم را به محل بود و باش خودش در کوتی باغچه فرا میخواند و ضمن گفتگو به بهانه گلایه به وی (لایق) میگوید... «لایق صاحب! من به ببرک جان در حیرتم، بیرون از حزب دست به ایجاد سازمان مخفی زده است. شما ببینید که به بریالی (برادر کارمل) وظیفه میسپارد تا منظم به دیدار من بیاید و از من تعریف و تمجید کند و مرا رهبر و پیشوا بنامد. به من اطمینان القا کند، ولی نجیب را بر ضد من تحریک کرده و باعث میشود که در دیدارها (جلسات) بر من بتازد و خشم و کینه بر علیه من تبارز دهد و مرا مجبور به اقدام بر ضد وی نماید. نمیدانم که او (کارمل) مصروف چه بازی است؟».

زمان، سرنوشت قیام نظامی ثور ۱۳۵۷ را چنان رقم زد که رهبری پرچمی ها به هر دلیل و برهان و بهانه های: ترس، خیانت، مصلحت... در میدان ازمون نظامی

به نفع امین و خلقی ها با شکست جدی مواجه شدند. رهبری پرچمی ها در یک بازی نابرابر داخل پروسه پر جنجال ایجاد حکومت با خلقی ها گردید، که فقید کارمل و نور احمد نور اسرار می ورزند که نور احمد نور باید وزیر داخله شود.

من (غرزی لایق) در دنباله یاداشت های پدرم پیرامون پافشاری کارمل و نور احمد نور روی مقام وزارت امور داخله به استدلال زیر بر خوردم:

"اولاً، بخاطریکه صلاحیت تحقیق در باره خیبر را قانوناً در اختیار خود بگیرند، چه در غیر آن شاید واقعیت قتل خیبر و عاملین آن افشأ گردند. ثانیاً، بخاطر اینکه فیته های ثبت شده از تمام جلسات و ملاقات های خصوصی رفیق کارمل در منزل دکتورس اناهیتا که توسط شبکه استخباراتی داود خان ثبت شده بود و در آرشیف استخبارات وزارت داخله نگهداری میشد به دست خلقی ها افتاده و افشأ میگردید. ازین رو رفیق کارمل ناگزیر بود امتیاز اکثریت به نور محمد تره کی بدهد و درمقابل آن مقام وزات داخله را بدست آورد".

کارمل فقید پیهم در تلاش بود تا چهره اش زیر بار شکست نظامی در روز قیام ثور صدمه نه بیند و پرچمی ها به بدگمانی نسبت به او نه لغزند. قرار گرفتن در موقعیت ضعیف، وی را بهانه جو و اندک رنج ساخته و روی هر مسئله با تره کی و امین به پرخاش بر میخاست.

محترم پنجشیری در کتاب "ظهور و زوال ح. د. خ. "روشن ساخته که جناح پرچم تشکیلات مخفی خود را هم قبل از وحدت و بعد از انقلاب بصورت مخفی حفظ کرده بود. پنجشیری می افزاید که در سال های بعدی (حاکمیت پرچم) نجم الدین کاویانی در قرار گاه وزارت دفاع در حضور ډگر جنرال عبدالقادر وزیر دفاع و جنرال گل آقا و اینجانب (پنجشیری) اعتراف کرد که؛ تشکیلات سازمان پرچم در ۱۴ جوزا ۱۳۵۷ کاملاً تکمیل و با علایم شفرها و اشارات آن درست یکماه بعد از قیام ثور به صورت مخفی فعالیت می کردند.

- از کتاب "یاداشتهای سیاسی و..." محترم سلطان علی کشتمند:

... گروه سه تنی پرچمی ها در کابل ایجاد شد. این کمیته متشکل بود از:

نجم الدین کاویانی، محمد رفیع و من. پس از زندانی شدن من و رفیع مدت کوتاه کاویانی آنرا رهبری میکرد. بعد از باز داشت کاویانی در تحت رهبری ظهور رزمجو، کمیته مخفی پرچمی ها بوجود آمد.

غرزی لایق ادمه میدهد:

رشته های کار مخفی و سنت مخفی گیری ویژه بخش معلوم الحال جناح پرچم بود که حزب را از روز زایش تا فرسایش آن همراهی کرد و در تحلیل نهایی سبب سقوط جنایت بار حاکمیت کشور و فاجعه های قتل و غارت شهریان کابل شد. گذار به کار مخفی و در فرجام مانور های بچه گانه به هدف اشغال دولت، آن هم پس از شکست های پی در پی در برابر حریف خلقی، به رهبران خلقی و بویژه تره کی بهانه بدست داد تا در آن لحظه های حساس بالای پرچمی ها از راس تا قاعده بدگمان شود و این پیشامد به امین امکان داد تا در حمایت تره کی به تصفیه سراسری پرچمی ها تا مرز کشتار جمعی پیش برود.

از همین جا است که طی تمام دوران پس از ثور ۱۳۵۷ تا روزگار ما گمانی زنی ها، اتهامات و پیشداروی ها به آدرس پیشامد ها و آدم های همان برهه کساد نمی کند و هر حزبی دیروز بنابر وزن خالص مغز خویش، دایره آموزش، سلیقه فردی، گرایشات دیروز فروکسیونی و نیز تمایلات کاملاً قومی، سمتی، زبانی امروزی و بدون در نظر داشتن مدارک و شواهد، راست را نا راست، و ناراست را راست "ثابت" میکند و تا روزگار ما هنوز به چشم حزبی های بی خبر و کمتر با خبر خاک می پا شد...

سیر پیشامد ها پس از قیام ثور چنان شد که در زور آزمایی های بی ضرورت برای کسب قدرت یک بخش رهبران پرچمی مجبور به ترک وطن گردیدند (نجیب الله، بریالی، وکیل) و بخش دیگر رهبران پرچمی، رضا کارانه سر بی درد خود را بیرون کشیدند و توده پرچمی ها را در یک فریب بزرگ در برابر خلقی ها و امین به مصاف نا بخردانه و نا برابر، تحریک، تشویق و به سادگی رها کردند.

محاسبه دقیق صورت گرفته بود:

رفقا بصورت دستجمعی به خارجه میروند، رفتن خویش را تبعید و زورگویی خلقی

ها رنگ می بخشند، موضعگیری بارق شفع و سلیمان لایق در بیروی سیاسی را جفا و تسلیم طلبی و خیانت به مدرسه "پرچمیزم" قلمداد میکنند.

رده های پرچمی را بالای وحدت حزب بی ایمان میسازند. نفرت و کینه آنها را در برابر "تسلیم طلب ها" به اوج میرساند تا در غیاب شان فرکسیون پرچمی را زیر تاثیر رهبری خود قرار داده نتوانند. ساختار های مخفی و کار مخفی را حقانیت می بخشد و رده های پرچمی را برای رسیدن به پیروزی تحریک میکنند و به اینگونه آنها را جوقه - جوقه به کشتارگاهای امین می فرستند.

کسی گفته بود که "بلی، امین میکشت، ولی دست نا مریی، زنده ها را به کشتن پیش می کرد".

طبق محاسبه، امین و خلقی ها نا گزیر نابود میشوند و قهرمانان نو و کبوتران رهایی بخش داخل معرکه میشوند و به این صورت حق به حقدار میرسد و مداخله در آن ظلم!

یگانه چیزیکه درین محاسبه از نظر انداخته شده بود، بهایی بود که برای آن درین بازی غیر اخلاقی باید پرداخته می شد.

- اشیا را باید به نام های خود شان نامید!

رهبر پرچمی ها پس از باختن وزن و نقش خویش در جنگ قدرت، بکار مخفی میان رده هایی پرچمی ها فرمان دادند و ندا بر آوردند که: خلقی ها دولت را اشغال کردند پرچمی ها باید حزب را اشغال کنند.

این بدان معناست که با وجود امضای سند وحدت سال ۱۳۵۶ تا این لحظه (۱۴ جوزا ۱۳۵۶) پرچم بحیث یک فرکسیون مساوی الحقوق" در حزب واحد به حیات خود ادمه می داده است!

برای اجرای این فرمان کار مخفی پرچمی ها (نجیب الله، بریالی و وکیل) در هوتل کابل (بحیث پایگاه) شکل گرفت. همچنان دفتر سازمان جوانان (برهان غیاثی) و دفتر مرکزی سره میاشت (دکتورس اناهیتا) جایگاهای مناسب و بی درد سر برای پرچمی های ناراضی مبدل گردیدند.

طبعاً جنبیدن های ضد وحدت و نمایش هیستریک، بی باوری نسبت به رهبری حزب، حاکمیت و انقلاب و نیز واکنش های جدایی خواهانه از جانب کارمل فقید و حلقه نزدیک به خودش از دید ارگان های خبرچینی و نیز ساختارهای حزبی خلقی ها بدور نمانده و به سرعت زنگ خطر را در گوشهای رهبران حزبی و پیش از همه شاد روان تره کی و حفیظ الله امین به صدا در آوردند.

رهبری حزبی این حرکت را یک عمل ضد وحدت تلقی کرده و آنرا تخطی اشکار از سند وحدت سال ۱۳۵٦ به جلسه بیروی سیاسی پیش کش نمودند.

در فرجام پس از پرخاشهای پیهم میان رهبران پرچمی و خلقی، جلسه ۱۷ جون ۱۹۷۸ نجیب، وکیل و بریالی را بخاطر عدول از توافقات کنفرانس وحدت حزب سال ۱۳۵٦ بحیث سفرا در خارج تصویب می کند.

رفیق نور احمد نور و رفقای همراهش عقیده داشتند که در گارد محافظ داود خان ۳۰ نفر افسر پرچمی داشتند، به کمک این افسران میتوانند رژیم داود خان را سرنگون کرد، ولی میر اکبر خیبر مخالف بود.

غرزی لایق (فرزند سلیمان لایق) ادامه می دهد:

"درود به لینین" د خ. ډ. ګ. د تاریخ یو بل عبرت:

غواړم د پلار د پښتو د ارزښتناکې خزانې یوه بله برخه له لوستونکو سره شریکه کړم.

پلار مې (سلیمان لایق) چې د پرچم جریدې د لومړیو کلونو مسئول مدیر و داسې لیکلي:

سلیمان لایق: د ۱۳٦۹ هـ . ش. کال سیاسي یاداشتونه نولسم جلد ۱۲۸ تر ۱۳٦مخونه. د ۱۳۴۹ کال د ثور په یوولسمه نېټه د پرچم جریده. د شور بازار د حضرتانو په تحریک د ملایانو له لوري تکفیر شوه.

په پرچم کې د لینین په نوم درود ویل شوی و . دغه درود د بارق شفیع په شعر کې داسې راغلی و :

"و ز ما درود باد به آن رهبر كبير بزرگ!"

ما (سليمان لايق) د پرچم د تحرير په هيئت كې د درود د كليمې د نه چاپولو لپاره ډېره مبارزه وكړه خو زه په اقليت كې پاتې شوم او د تحرير هيئت ټولو غړو يعنى كارمل، خيبر، كشتمند، نور احمد نور، دكتورس اناهيتا او بارق شفيعي د درود د خپرولو په طرفدارۍ رايه وركړه. ملګري كارمل له ما څخه په تعجب او بار بار پوښتنه وكړه چې د درود كلمه د لينين په ستاينه كې څه باک لري؟

ما ويل درود ديني ستاينه ده او د اسلام پيغمبر حضرت مصطفى (ص) ته اختصاص شوې ده... او نوره دفاع...

كارمل وويل، تر اوسه پورې خو موږ د لينين كړه وړه، د هغه سياسي او فلسفي عقايد خپاره كړي دي، خو ملايانو موږ ته څه تاوان نه دى را اړولى.

ما وويل هغه به موږ ته څوک را ونه بخښي. موږ خو د همدې مسلمان ولس خدمتګاران يو، نو بيا د هغوى د عقيدې او مقدساتو په ضد اقدام ولي كوو؟... ما فكر كاوه ښايي همدا د درود خپرول به زموږ د ګوند خاتمه مهر كړي.

اخبار چاپ شو او ما كارمل صاحب ته د وروستي ځل لپاره مراجعه وكړه چې اخبار وساتل شي او نه دي يې خپروي. كارمل صاحب وخندل، ما ته يې وويل چې تا خپل عمر په خانقاه او جوماتو كې تېر كړى دى...

د اخبار (پرچم) د خپرېدو په لومړۍ ورځ د ښار د خلكو يوه اووه سوه كسيزه ډله چې زياتره يې د ديني مدرسو طالبان، د جوماتونو ملايان او د شور بازار د حضرتانو مخلصان وو، د صبغت الله مجددي او د هغه پلار مياجان مجددي تر مشرتابه لاندې د كابل د پل باغ عمومي له لوري د اطلاعاتو او كلتور وزارت ته راورسېدل او د پرچم اخبار پر ضد يې احتجاجيه ميتنګ پيل كړ. مظاهره چيانو د پرچم د جريدې د خپروونكو محاكمه غوښته او دولت يې د پرچميانو د ملاتړ په تور محكوماوه.

د دې ورځې په سبا له هراته تر ننګرهاره پورې د ملايانو ډلګي كابل ته را ورسېدل او د پل خشتي په جوماتو كې يې خپل منبر جوړ او پرچم او بارق يې تكفيرول. اخوانيان په دې اور كې ملايانو ته نږدې شول او د هغوى لارښوونه يې

پخپل لاس کې واخیسته. هغوی (اخوانیان) د لومړي ځل لپاره پیاوړي شول او د دین د خدمتګارانو بڼه یې پیدا کړه.

پخوا تر دې به د اخوانیانو د مظاهرې پر وخت یو څو کوچني سپین بیرغونه پورته کړي وو او وریسې به یې اوه یا اته تنه له پوهنتون نه را ایستل. خو اوس د هغوی شمېر زرګونو ته رسېدلی و.

دولت په لومړي سر کې د ملایانو او خصوصاً د پل خشتي له مظاهره کوونکو سره همدردي وښودله. ظاهرشاه، سردار شاه ولي خان او د ده زوی سردار عبدالولي د پادشاه (ظاهر شاه) زوم او نورو دې اور ته لمن وهله. د امریکا او پاکستان جاسوسان لګیا وو، د جومات ملایانو ته یې د افغانیو بنډلونه او پخې ډوډۍ رسولې.

د ورځو په تېرېدو سره، ملایانو د پرچم د تکفیر په اړخ کې دولت او د هغه په سر کې پادشاه هم تکفیر کړل. تر څو دا دولت خلع شي او دولت اتقیاوو، شرعي پیشوایانو او ملایانو ته وسپارل شي...

د "سالار مجاهدین" رساله د صبغت الله مجددي په حواله داسې لیکي:

در اثر انکشفات جدید، جناب حضرت صاحب به معیت جناب پدر خویش و جناب محمد اسماعیل مجددی در قصر صدارت با نور احمد اعتمادی (صدراعظم) ملاقات نمودند. نور احمد اعتمادی قرار تفصیلات جناب حضرت صاحب در مدت چهار ساعت مذاکره و مباحثه به هیچ اصلی از اصول تن ندادند. مضاهره به اعمال قوه منحل ساخته شد. تعدادی علما به سواری لاری های سر کاری به ولایات انتقال داده شدند و جمعی از آنها توقیف گردیدند. ختم.

د پرچم سازمان د ایستلو موضوع دوام لري:

روسانو پراخ پلانونه درلودل خو موږ نه پوهېدو، ځکه موږ په استخباراتي چارو کې لکه ړانده داسې وو. شوروي اتحاد د کارمل ګروپ (پرچم) په رسمیت پېژانده. کارمل د (کې. جي. بي.) سره تنظیم و او په عین حال کې کارمل له داود خان سره هم ارتباطي غړی وو. په بل عبارت د افغاني استخباراتو غړی هم و.

د پورتنیو ټکیو د اثبات لپاره دا لاندې مطالب وړاندې کوم:

د پرچمي رهبرانو د جاسوسی فعالیتونو ته ننه ځیر شئ:

- تاریخپوه محمد حسن کاکړ په خپل کتاب (د سرطان کودتا د افغانستان د اوږدې بې ثباتی پیلامه) کې لیکلي دي چې ببرک کارمل د شاهي نظام د استخباراتو غړی دی:

- متقاعد محمد داود خان، د شاهي وخت د مصئونیت رئیس سردار جنرال رسول جان خپل کور ته غواړي او ورته وایي «مبلغ پنج ملیون افغانی نقد حاضر است به اختیارت میگذارم، توسط آن اشخاص مانند مجید کلکانی، ببرک کارمل، سید ظاهر و بعضی از وکلای چپ گرا را تشویق نمایی که در داخل مملکت و در مجالس ولسی جرگه بی نظمی و هرج مرج را به وجود آورند». رسول جان اضافه کوي چې "پولش را قبول نه کردم اما گفتم این کار را میکنم و به وعده خود وفا کردم. "(ص ۱۵).

- د همدې کتاب په بل ځای کې راغلي سردار محمد داود خان وایي: «من در زمان حکومت شاه محمود خان یک عده جوانان را از قبیل محمد صدیق فرهنگ، عزیز الله واصفی، داکتر محمد رحیم محمودی، ببرک کارمل... در خفا رشد داده حمایت میکردم، بعد از استعفایم از صدارت بعضی از آنها مارا از یاد بردند و برخی "حلقه اجنبی بگوش آویختند و ببرک کارمل نیز از آن جمله است.» (ص ۲٦).

- کارمل د (پرچم گروپ) د شوروي له سفارت سره ټینګ روابط ساتي. د ژورنالست داکتر شاه زمان په کتاب «راز ها افشا میشود» کې په بې طرفه توګه تشریح شوي. شاه زمان د کوم حزب غړی نه دی. دی لیکي «روزی... بروی میز کارم کارت دعوت سفارت شوروي را دیدم. ساعت چهار بجه به سفارت رسیدم. اعضای سفارت و سفیر پوزانوف از مهمانان پذیرایی میکرد. من داخل سالون شدم دیدم که اعضای برجسته پرچم به شمول ببرک کارمل، اناهیتا، بارق شفیعی و غیره که تعداد شان به بیست نفر میرسید مانند اعضایی سفارت از مهمانان پذیرایی میکردند. اما از جناح خلق هیچ کس نبود، جناح خلق را هیچگاه شورویها دعوت نمی کردند. و من هم از مدت ها هیچ یکی از اعضای جناح خلق را در دعوت ها نه دیده بودم و شورویها هم علاقه به جناح خلق نداشتند» (ص ۷ و ۸).

- د ډاکټر شاه زمان له کتاب څخه: «یکی ازاعضای برجسته مصئونیت ملی

به سردار محمد نعیم خان (برادر داود خان) راپور میدهد که در وزارت اطلاعات و کلتور پرچمی ها ریشه دوانده و تمام اسرار را به (کې. جي. بي.) انتقال میدهد. مثلاً بعد از باز گشت رهبر (داود خان) از کشور های عربی مصر، عربستان سعودی و ایران یکی از پرچمی ها بنام محمد رحیم رفعت که با رهبر داود خان به حیث ترجمان هم سفر بود، تمام اسرار را در ۴۵ ورق ترتیب و به اختیار محمود بریالی (برادر کارمل) گذاشته است و محمود بریالی این اسرار سیاسی را به دسترس کې. جي. بي. قرار داده است.» (ص ۴۰).

- بیا هم د ډاکټر شاه زمان له کتاب څخه: «قدیر خان وزیر داخله، میگوید بعضی پرچمی ها بریاست مصئونیت ملی راپور کودتا داده اند. اگر صلاحیت میداشتم همین امروز همه کمونیست ها را گرفتار و از تیغ میکشیدم باز هر چه شده بود می شد.» (ص ۲۹).

- شاه زمان له وزیر داخله سره په خبرو لګیا دی. وزیر داخله قدیر خان وایی :«ما به همکاری پرچمی ها منازل رهبری شان را تثبیت نموده ایم و به دادن قومانده برق آسا همه شان دستگیر میگردد. اما خدا کند که رهبر (داود خان) قانع شود.» (ص ۴۵). په همدې کتاب کې شاه زمان د قدیر خان داخله وزیر خبرې تکراروي وايي: «قدیر وزیر داخله گفت ما پلان دیگری را کشف نموده ایم... کې. جي. بي. در نظر دارد توسط پرچمیها سردار محمد داود خان را ترور نماید. همین اکنون پرچمی ها در سفارت شوروي رفت و آمد دارند ما متوجه هستیم و اسنادی در دست داریم و یکی از اعضای کې. جي. بي. بروی اسناد دست داشته ببرک خاین و دار و دسته اش گرفتار میشوند.» (ص ۴).

- د شوروي کې. جي. بي. دسیسې د معینو اهدافو لپاره په خاص مهارت عملي کیږي. د ثور انقلاب د مسکو له پلان سره موافق نه دی او د قدرت په راس کې د دوی په اصطلاح رادیکال عناصر چې د دوی په عقیده نور محمد تره کی او حفیظ الله امین دواړه ناسیونالست، شووینست او فاشیست دي واقع شول. نو کې. جي. بي. لا د مخه د خلق ګوند په رسمیت نه و پیژندلی. اوس چې هغوی سیاسي قدرت نیولی، په آسانی باید سرکوب شي. د و. پلاستون او و. اندریانوف کتاب چې

«افغانستان در منگنه جيوپوليتيک» نوميړي خپله دسيسه داسې بيانوي: بدون آماده ساختن کادر های جديد، انقلاب ميتوانست به دليل کشاکش های درون گروهی به شکست انقلاب ثور انجامد. اين گونه کسی در رهبری شوروي و در آغاز تصميم به دو پارچه ساختن حزب ديموکراتيک خلق افغانستان گرفت و فيصله نمود پرچمی ها را از حزب حاکم کنار بزند. سپس برای درز های خلق زمينه سازی کرد. آنگاه شاخه هوادار امين را در خلق نابود و همروند به آن نظام تازه پای «پرورش انقلابی توده ها» بر پا شده به کمک مشاوران شوروي در ريخت. چنين بر آمد که در آغاز کسانی را دشمنان انقلاب اعلام کردند که خود انقلاب را به پيروزی رسانيده بودند (هواداران تره کی وکارمل را) سپس کسانی را که آنان را سرنگون کردند (هواداران امين) و سر انجام هواداران کارمل را به تخت نشانيدن. (ص ۲۶).

يعني هر څه چې موږ افغانانو په خپلو سترگو ليدلي دي دا ټول تغيرات د کې. جي. بي. د کثيفو توطيو او دسيسو نتايج دي. مثلاً په لومړي ځل کې يې د جدي شپږم انقلاب د افغاني انقلاب (۷ ثور) جانشين کړ. هغه وخت چې زموږ د وطن ټوله مادي او معنوي هستي يې تباه کړه بيا يې مصالحه ملي ته رجوع وکړه، بلاخره خپله روسي مصالحه يې د افغاني مصالحې جانشين کړه چې په بل بخش کې به مکث ور باندې وشي.

- همدارنگه کې. جي. بي. (مسکو) تقلا درلوده چې افغانستان د شپاړسم جمهوريت په حيث په شوروي کې مدغم کړي.

- بل دا چې د مسکو لپاره تره کي او امين دواړو د افغاني تيتو حثيت درلودل.

## د ببرک کارمل او کې. جي. بي خصوصي روابط

ببرک کارمل د کې. جي. بي. او داود خان تر منځ روابط تأمينوي.

سند شماره...

محرم

- کميته مرکزی حزب کمونيست اتحاد شوروي پيرامون مشوره ها برای حزب

دیموکراتیک خلق افغانستان ببرک کارمل رهبر شاخه پرچم ح. د. خ. ا. از طریق نماینده کمیته امنیت دولتی شوروي و کې. جي. بي. در کابل که با او روابط معتمدانه دارد در پابان ژویه، کمیته حزب کمونیست اتحاد شوروي را مطلع ساخت که محمد داود رئیس دولت و نخست وزیر افغانستان از وی (کارمل) خواهش کرده است. تزهای در زمینه مسئایل سیاست خارجی و داخلی، برای گنجانیدن ممکنه آن در برنامه حکومت جمهوری آماده سازد.

(تلگرام های رمزی از کابل، ویژه، کې. جي. بي.، شماره ۴۳۱ تاریخی ۷. ۱۹۷۳ و شماره ۴۴۴ تاریخی ۳۱. ۷. ۱۹۷۳).

در رابطه با این، ببرک کارمل از کمیته مرکزی حزب کمونیست اتحاد شوروي خواهش نموده که توصیه های را ارایه نماید که برای پیشکش نمودن برای محمد داود سود مند باشد.

- مصوبه کمیته مرکزی حزب کمونیست اتحاد شوروي پیرامون مشوره ها برای ببرک کارمل:

۱. تزهای ارایه شده از سوی رفقا اندروپوف و پانوماریوف "در باره تدبیرهای ممکنه در عرصه سیاست داخلی افغانستان"موافقت گردد و آنها را از مجاری (کې. جي. بي.) به ببرک کارمل رهبر ح. د. خ. ا. به کابل فرستاد. تزها در ضمیمه تقدیم است.

۲. رونوشت (مسوده) این سند به سفیر شوروي در افغانستان سپرده شود.

د کتاب نوم دی (افغانستان در منگنه جیوپولیتیک). (ص ۱۴۷ و ۱۴۸).

مولف کتاب: و. پلاستون او و. اندریانف.

**(از آرشیو کمیته مرکزی حزب کمونیست اتحاد شوروي)**

کمیته مرکزی حزب کمونیست اتحاد شوروي - پیرامون پاسخ به رهبر گروه پرچم حزب دیموکراتیک خلق افغانستان.

ببرک کارمل د کې. جي. بي. لـه لارې د شوروي کمونیست گوند تـه مراجعه کوي چې د پرچم گروپ د کمونیست گوند په توگه په رسمیت وپېژندل شي.

سند شماره...

(محرم)

ببرک کارمل رهبر گروه پرچم ح. د. خ. ا. از کمیته مرکزی حزب کمونیست اتحاد شوروي خواهش نموده است تا "گروه تحت رهبری او در عرصه بین المللی به عنوان حزب کمونیست افغانستان به رسمیت شناخته شود". و همچنان خواستار همکاری در زمینه پخش پیام پرچم عنوانی رهبران اکثریت احزاب کمونیستی و کارگری (جز از حزب کمونیست چین) و پیام ویژهٔ عنوانی کمیته مرکزی احزاب کمونیست هند، عراق، چکوسلواکیه، پولند، و جمهوری دیموکراتیک آلمان (که در ارگانهای مطبوعاتی آنها گونه اینکه مدارکی به چاپ رسیده باشد که به گونه غیر عینی به مسایل جنبش کارگری در افغانستان روشنی انداخته باشد)، گردیده است.

تلگرام رمزی از کابل، ویژه، کې. جي. بي.، شماره ۴۷۶ تاریخی ۱۹.۵. ۱۹۷۶

د کتاب نوم دی (افغانستان در منگنه جیوپولیتیک). (ص ۱۵۵).

د کتاب موالف: و. پلاستون او و. اندریانف.

## د روسي لیکوالانو له کتاب (افغانستان در منگنه جیوپولیتیک) څخه:

پس از ۲۷دسامبر ۱۹۷۹ در کابل حاکمیت شگفتی برانگیز پدید آمد. از یکسو گو اینکه در کورسی های کلیدی، پرچمی های انقلابی از بندرسته گماشته شدند. از سوی دیگر خلقی های رانده شده ازین کرسی ها دست به آرایش (پدافند حلقه یې) زدند.

خلقی ها درست مانند کسانیکه از چهار سو در چنبر محاصره افتاده باشد (ص ۱۵).

د همدې کتاب په (۷۷) مخ کې ذکر شوی دی، که څه هم تکرار دی «پرچمی ها را ما زیر سرپرستی خود پرورانده بودیم»...

هغه څه چې پورته لیکل شوي او یا په نورو مخونو کې را په گوته کوي، چې د پرچم د ایستلو لپاره هم داخلي شرایط برابر و او هم خارجي.

**داخلي فاکتور:**

۱. په داخل کې د پرچم د کودتا خطر چې د نبي عظیمي په کتاب کې صادقانه ترسیم شوی دی: ببرک کارمل، نور محمد تره کي ته ویلي وو: اگر حفیظ الله امین را سلب صلاحیت نکنید، تانک با تانک خواهد جنگید.

خو حفیظ الله امین هم آرام ناست نه و، مسلماً ډېر صلاحیت هم ور سره و.

۲. خارجي فاکتور: د ټولو لوستل شوو موادو څخه معلومیږي چې کې. جی. بی. غوښتل چې پرچم ته نجات ورکړي او وکولای شي د ببرک کارمل باالقوه او باالفعل حریفان له منځه یوسي او کارمل د یکه تاز په توگه قدرت ته ورسوي.

په دې ډول، نور محمد تره کی، حفیظ الله امین، میر اکبر خیبر او خلقیان ټول د ببرک کارمل لپاره قرباني شوي دي او نهایي نتیجه یې د افغان تاریخ ختمول.

د لیا خوفسکي له کتاب څخه:

ببرک کارمل د ۱۹۷۸ ز کال په جون کې په پغمان کې د پرچمیانو کنگره جوړه کړه چې د هغې په ترځ کې د پرچمیانو له خوا د واک د تر لاسه کولو کړنلاره وټاکل شوه. دا خبره بې له شکه د حفیظ الله امین غوږونو ته ورسېده او په دې اړه یې اړونده تدبیرونه ونیول. ببرک کارمل له واک څخه دې ته اړ شو چې په چکوسلواکیا کې د سفیر څوکۍ ومنې. کارمل نوې وظیفې ته تر روانېدو د مخه خپلو ملگرو ته وویل چې هرو مرو بېرته بیا هېواد ته راځي او له سره بیرغ سره یو ځای...

د پرچم د رهبرانو د وحدت ضد او انقلاب ضد موضعگیري په ډېرو دلایلو ثابتیږي، چې تر ټولو مهم یې د پرچمي نامداره رهبرانو لکه میر اکبر خیبر، دستگیر پنجشیري، عبدالقدوس غوربندي، سلیمان لایق له خوا افشا شوي دي. همدارنگه پرچمي با شرفه کادرونه لکه محبوب شاه، سنگر، سرور یورش او داسې نور آگاهانه په اصولي موضع کې ولاړ دي.

د يادونې وړ ده، چې د خلق او پرچم مجدد وحدت د پرچم د صفوفو د پافشارۍ په نتيجه کې حاصل شوی دی، خو متعصب رهبران لکه ببرک کارمل او نور احمد نور هر ډول وحدت ته مصلحتي او موقتي بڼه ورکوي.

د پرچم د رهبرانو کودتا د ثور د انقلاب په ضد د قيام له لومړيو ورځو څخه پلان شوې وه، البته دغه کودتا د روسانو له مشورې پرته نه شوای طرح کېدلای.

ستر جنرال ورينيکوف او جنرال باريس گروموف د ببرک کارمل په باره کې واحد نظر لري:

درباره کارمل چنين ميگويد: "او همواره به پيشنهاد های ما بدقت گوش فرا ميداد و بسياری چيزها را يادداشت ميکرد و اکثراً در پايان گفتگوها ميگفت، شما طوری بمن مينگريد و حتماً فکر ميکنيد که اين کارمل را ببينيد که پی در پی می نويسد ولی باز هم کاری نخواهد کرد..." واقعيت هم همين گونه بود.

کارمل نه مورد اعتماد همکاران خود بود، و نه مورد اعتماد مستشاران ما. او (کارمل) ياوه سرای بی مانند و فراکسيون باز بی همتايی بود که استادانه ميتوانست در لابلای گفتارهای انقلابی پنهان گردد. اين «استعداد» به او کمک ميکرد تا در پيرامون خود هاله يی از يک رهبر بيافرنيد، او عملاً به خاطر مردم مبارزه نميکرد. اين ديگر کاملاً روشن بود. در دستگاهای حزبی و دولتی، نظام ديوان سالاری را ايجاد کرده بود که در پهنای همين نظام بوروکراتيک که بسياری از مصوبه های خوب حزبی و دولتی ناپديد ميگرديدند شور بختانه که بسياری خلاف واقعيت اميدهای خود را به او بسته بودند و به دنبال او ميرفتند.

د (افغانستان در منگنه جيوپوليتيک) په کتاب کې د اشغال د دوران ځينې نيمگړتياوې په گوته شوې، چې ورته څغلنده نظر اچوو:

۱ - دوره اتکا به سرنيزه سپاهيان شوروي بيش از حد به درازا کشيده بود. و اين فريبی و احساس کاذب اعتماد به نفس و اميد به ايستاری در آينده ها راپديد آورد.

۲ - شماری از اعضای حزب کمونيست اتحاد شوروي در بزه کاری، دزدی و رشوه ستانی غرق بودند، حتی قاچاق...

د دې موضوع په ارتباط، هاشم نوري يوه لنډه خاطره لري:

د شوروي سفارت ما ته تحفې رالېږلې مثلاً:



- يو تلويزون.

- د امريکايي قلمونو يو سِټ چې د پارکر په نوم يادېده.

- يو جاپانی ساعت د "سيکو" په نوم.

خو زه نه پوهېدم چې دوی ته څنګه منفي ځواب ورکړم.

البته د هرې تحفې لپاره به يو مناسبت معلوم و ، لکه د تولد نېټه يا د جشن ورځ يا د اختر ورځ.

بناءً پاچا ګل وفادار ته ورغلم چې د منفي ځواب فورمول ځينې زده کړم، ځکه وفادار صاحب ډېر وخت د سفارت په وظيفه کې تېر کړی او له ديپلوماتيکو مناسباتو سره بلد وو. نوموړی ته مې خپل مشکل بيان کړ.

وفادار صاحب مشوره راکړه چې دا پلا که تحفه درته راوړي، په تعقيب يې څو ورځې وروسته ته يو متقابله تحفه وروړه، نوره مسئله پخپله حل کيږي.

ما هم يو قيمتي، ښکلی زنانه بکس په فروشګاه بزرګ افغان کې واخيست او د هغه سړي کور ته مې ورووړ... کيسه

د خدای په فضل سره، نور يې را ته تحفه را نه وړه او دا مشکل حل شو. ختم

د «افغانستان در منګنهٔ جيوپوليتيک» مواد ادامه لري:

۳ - رهبری ح. د. خ. ا. آغاز به فروپاشی و آلودګی لجام ګسيخته نموده و بوروکراسی به اوج خود رسيده بود. سخن رانی های بدقت صيقل داده شده، که در متن آن خاک به چشم پاشيدن جای برجسته داشت به ګونه مثال در بيانه صدراعظم کشتمند، آهنګ رشد درآمد ملی ج. د. ا. از آهنګ رشد در آمد ملی اتحاد شوروي بالا تر بود.

۴ - ګزارشهای ماست مالی شده پيرامون پيروزی ها و کاميابی ها ريشه می

یافت. فرستادن فرزندان شان برای آموزش به شوروي، دروازه های حزب را بروی استفاده جویان کشودند.

۵ - رهبری جدید ح. د. خ. ا. (ببرک کارمل) سرمت از بادهٔ حضور سپاهیان شوروي عملاً در راه بزرگنمای، اتوریته حزب و ابعاد حمایت اجتماعی آن راه پیموده حتی علل شورش در کابل مورخ ۲۱ فبرری ۱۹۸۰ تحلیل و تجزیه نه گردید. (ص ۷۴).

پس از اعلان مشی مصالحه ملی مبارزه فراکسیونی افزایش یافت. پژوهش های مقدماتی نشان میداد که خلقی ها بیشتر سازمان یافته تر بودند و بگونه خستگی ناپذیر در پی آرایش پلاتفورم برای پویایی های آینده، پرچمی ها به گمان اغلب پریشان بودند و خشمگین و در صفوف شان شمار بسیار شوروي ستیز پدیدار گردیدند.

- کارمندان خاد دست های باز داشتند و سر گرم رسیدن به حساب های شخصی خود بودند، بی آنکه دولتی را در نظر داشته باشد، با ضبط جایداد ها و دارایی های مردم... توانگر شده بودند و.

- هنگام انتخابات برای کنفرانس حزبی در سازمان های حزبی ارتش نامزدان نمایندگان پرچمی که توانایی دست یابی به برتری کمی آرا بر نامزدان خلقی را نداشتند، دست به تحریف بِولتنها، دستکاری در نتایج انتخابات، شانتاژ و لجن پراگنی و آبرو ریزی نامزدان زدند.

- هنگام انتخابات در آستان ننگرهار مشاجره لفظی بین خود پرچمی ها رخ داد. سلیمان لایق به دشواری انتخاب شد ولی برهان غیاثی صد در صد رای برد، در باره لایق گفتند که برادرت در دبیر خانه نجیب کار میکند ولی در جواب شان گفت: برادر من در دستگاه نجیب کار میکند اما برادر برهان غیاثی در دفتر حکمتیار در پشاور کار میکند. (ص ۷۲ - ۷۶)

- وابستگان بسیاری از بلند پایگان حزبی پرچم در اردوگاه اپوزیسیون کار میکردند. (ص ۷۷).

- پرچمی ها را ما (روسها) زیر سرپرستی خود پرورانیده بودیم. آن هم نه باروحیه

اصولی لینینی کمونیستی، بلکه با روحیه سازشکاری، تایئد پندارهای رفقای شوروي و فرمان برداری از رهبران خود شان چیزیکه برای جامعه شوروي در آن برهه مختص بود. (ص ۷۷).

- مشاوران نطامی در باره کارمل نظر خوبی نداشتند. آنها کې. جي. بي. را به متهم ساختن به پافشاری بر نامزدی کارمل در آن هنگام که در کریملین به گونه جان فرسا سر خود را حین تعین رهبر آینده افغانستان مستقل به سنگ میزدند، بباد ناسزا میگرفتند. (ص ٦٣).

## دست مسکو

د مسکو د استخبارتو د رئیس لیونید شبارشین اثر دی:

د کتاب نوم: دست مسکو.

د ۱۹۸۲ د فبرري په میاشت کې د (کې. جي. بي) رئیس یوري اندروپوف په محرمانه توګه کابل ته راغی او له ببرک کارمل او نجیب سره یې ملاقاتونه وکړل او ستراتیژیکه وظیفه یې وټاکله چې په روان کال کې باید مخالف باندونه ختم شي. (ص ۹۲)

متاسفانه د شوروي متخصصینو او خپله اندروپوف او سیاسی بیرو نشوای کولای چې د افغانستان اوضاع درسته ارزیابي کړي. (ص ۹۳)

افغانی رهبرانو (کارمل - نجیب) شدیداً د شوروي قواوو زیاتوالی غوښت ځکه هغوی په خپلې اردو تکیه نه کوله. په بل عبارت له خپلې اردو سره بیګانه و.

د ۱۹۸۲ کال په شروع کې د شوروي ځینو شخصیتونو جراآت وکړل. دا حقیقت وایي چې د کابل رهبران (کارمل او نجیب) او شوروي قوتونه د افغان ولس په ضد جنګیږي (ص ۹۳).

په ۱۹۸۸ کال د اګست میاشت کې شوروي قوتونه له جلال آباد څخه ووتل. موږ ګومان کولو چې جلال آباد به په بلافاصله د مجاهدینو په لاس سقوط وکړي.

البته په وسله وال پوځ کې حزبي نا هنجار حالت د مجاهدینو په ګټه و. شوروي نظامیانو ته هدایت شوی و، چې هر هغه جزوتام چې محاربوي قابلیت ولري، روغ پاتي نه شي ځکه خلقیان له پرچمیانو څخه نفرت لري او پرچمي رهبري (نجیب الله) با استعدادو خلقي قوماندانانو ته د ارتقا مجال نه ورکوي. که بې طرفانه او عیني قضاوت وکړو، موږ (کې. جي. بي.) په مستمر ډول د دوی اختلافاتو ته لمن وهله خو شوروي نظامیانو د خلقیانو شکایتونو ته په همدردي سره غوږ نیوه.

موږ (کې. جي. بي.) له افغانانو سره کومک نه کاوه. مشوره مو نه ورکوله، بلکې قومانده مو ورکوله. دوی ته مو د "تو" په کلمه خطاب کاوه او میز مو په سوک ډباوه. په نتیجه کې موږ د یوه غیر قابل اعتماد او فاقد قابلیت جنګي متحد سره سروکار درلود. باید اعتراف وکړو چې موږ سیاسي او نظامي شکست متحمل کړ. په عین حال کې د یادولو وړ ده چې زموږ نظامي شکست د سیاسي شکست معلول دی.

د شوروي سیاسي رهبري دا شجاعت نه درلود چې اعتراف وکړي چې د مخالفو باندونو مقاومت نشته، بلکې په حقیقت کې د کارمل او شوروي قوتونو په مقابل کې د افغان ولس پراخ مقاومت شروع شوی دی (ص ۱۰۴).

د شوروي له مداخلې (تجاوز) سره سم، په اني ډول جنګ مشتعل شو. حتی د مداخلې په لومړۍ ورځ په کابل کې په شوروي قوتونو حملې وشوې او تر ګلوله باران لاندې واقع شول، البته متقابل ځواب ورکړل شو.

د نجیب الله په هکله: نجیب الله با شکوه او پر قدرته ځوان و، د تېز هوش او بدیهه ګویي (حاضر ځوابۍ) خاوند و او دراک او تکړه نطاق و.

د ببرک کارمل په هکله:

ببرک کارمل په وروستیو ۷ کلونو کې دا خبره همېشه تکراروله چې دی کمونیست دی او د شوروي کمونیست ګوند ته ډېر وفادار دی په پای کې د شوروي رهبرانو له کارمل څخه وغوښتل چې داوطلبانه د خپل مقام څخه استعفی وکړي او تقاعد ته ولاړ شي. (ص ۱۰۶).

خو کارمل زبان بازي او افسونګري کوله.

کارمل به داسې ویل: معتقد مسلمان، خدای، پیغمبر او څلورو خلیفه ګانو ته احترام لري، خو زما احساسات د شوروي اتحاد او د هغه رهبرانو ته احترام کول د مسلمان له عقیدی سره شباهت لري.

د کې. جي. بي وروستی رئیس کروچکوف له ببرک کارمل سره نږدې او خوږې اړیکې لرلې. بلاخره کروچکوف کابل ته راغی چې کارمل تقاعد ته تشویق کړي. خو کارمل د پخوا په شان بهانې او جادوګری کولې. کروچکوف ډېر منطقي دلایل ورته وړاندي کول. له ډېرو ملاقاتو وروسته، ببرک کارمل هق هق وژړل او په فریاد سره یې وویل: ما مړ کړئ، ما قرباني کړئ چې زما ولس زما قرباني ومني. زه هر ډول شکنجو، زندان او مرګ ته حاضر یم. (ص ۱۰۸).

جنرال ورینیکوف وایي: ببرک کارمل د خلکو د اعتماد وړ نه دی. د ده همکاران او مشاورین هم په کارمل باور نه کوي ځکه چې ببرک کارمل یو عوام فریب او ماهر فرکسیون باز دی.

خو شیبارشین د ورینیکوف له نظر سره موافق نه دی او داسې وایی: ببرک کارمل یو خوش باوره او با وجدانه شاګرد دی. خو په ده باندې دغه عذاب د مشرانو ورونو یعني د شوروي مشرانو له خوا تحمیل او تپل شوی دی، ځکه د شوروي رهبرانو غوښتل چې کارمل د خپل مذاق سره سم تربیه کړي خو د کارمل استادان بې استعداده، ظالم او سنګدله وو.

## د ببرک کارمل د ایګایئزم ناروغي

د مرحوم عبدالقدوس غوربندي په کتاب کې (نګاهی بتاریخ ح. د. خ. ا.)

عبدالقدوس غوربندي د پرچم د سازمان د رهبری لوړپوړی غړی و. په خپل کتاب کې یې ډېر حقایق روښانه کړي دي او د رهبرانو په هکله یې له هغه وخت او شرایطو سره سم، واقع بینانه ژوندي مثالونه افاده کړي دي. په دې ډول یې د ببرک کارمل اختلافات د نورو رهبرانو سره لکه د غلام محمد غبار او محمودي او بیا د نور محمد تره کي، حفیظ الله امین او میر اکبر خیبر په مقابل کې عادلانه طرح او

روښـن کـړي دي.

د غلام محمد غبار په هکله لیکي:

مرحـوم غـلام محمـد غبـار کـه یـک شـخصیت سـیاسي، محبـوب، برجسته، صاحب اتوریتـه طبعـي و داراي تجـارب گـران قیمـت و مرکـز جاذبـه روشـنفکران بـود از نفوذ این شخصیت بخصـوص ببـرک کارمـل سـخت ناراحـت بـود (ص ۱۱).

مرحـوم غبـار از کمېتـه سرپرسـت خـارج شـد و یـا بهـتر اسـت بگویـم در اثـر تحریکات کارمـل خارج سـاخته شـد (ص ۱۲).

طوریکـه رویـداد حـوادث نشـان میدهـد سـنگ اول در تهـداب جمعیت در اثـر پلانهای حسـاب شـده و خـود خواهانـه کارمـل کـه شـیوه هـای ماهرانـه نفـوذ بـر دیگـران را خـوب میدانسـت کج گذاشـته شـد و سـیر عادی و طبعی شـکل گیری حزب را در محدوده خواست خـود انحـراف داد و در محیـط سیاسـی از همـان آغاز مایـه نفـاق و اصطـکاک گردید.

غوربندی صاحب د محمودي په هکله داسې لیکلي دي:

لازم بـه تذکـر اسـت کـه شـادروان محمـودی شـخصیت پـر آوازه دیموکراسـی اول که در اصـول مرامـی خـود "نظـام شـاهی مشـروطـه دیموکراسـی پارلمانـی، عدالـت اجتماعـی و مبـارزه علیـه فسـاد اداری" شـعار میـداد، نمـی خواسـت بـا محافـل کـه کارمـل در آن نقش داشـت مفاهمـه نمایـد. مرحـوم دکتـور محمـودی، کارمـل را گماشـته دربـار و آفـت جنبش میدانسـت. و هرگـز حـاضر نشـد بـا وی تمـاس و ارتبـاط داشـته باشـد.

غوربندی صاحب د اروانباد میر اکبر خیبر په هکله لیکي:

در پالسـیی نشراتـی جریـده پرچـم بیـن کارمـل و میراکبـر خیـبر اختـلاف بوجـود آمد. میـر اکـبر خیـبر جداً طرفـدار تعقیب یـک خط نشراتـی ملی بـود. هنـگام تجاوز شـوروي به چکوسـلواکیا در سـال ۱۹۶۸ وقتیکـه پرچـم با عجله آنرا بـه عنوان وظیفهٔ انترناسیونالیسـتی و نجـات بخـش تاییـد و تمجیـد کـرد، نگارنده اولین بار شـاهد مخالفت پرخـاش جویانه میر

اکبر خیبر با ببرک کارمل بودم. خیبر با چهره برافروخته به خانه وارد گردید و جریده پرچم راکه در مشت های خود کلوله کرده بود با قهر و غضب روی میزد. در حالیکه از شدت خشم صدایش میلرزید کارمل را مخاطب نموده گفت: کدام هیئت تحریر فیصله نموده که قبل از همه مدیحه سرایی کنیم و به این حرکت مهر تایید بزنیم. حزب ما با نشر این مطلب تیشه به ریشهٔ خود زد و قیمت گزافی که تجرید از مردم و مغشوش شدن ماهیت ملی آنست می پردازد. کارمل با لحن ملایم و شیوه ماهرانه که ناشی از موقع شناسی او بود گفت: ازین لحظات نادر اتفاق می افتد، باید برای تثبیت خود استفاده کنیم. خیبر باز با لحن جدی پاسخ داد که ما باید خود را در قضاوت خلق خود تثبیت کنیم. سرنوشت ما درین جا در افغانستان تثبیت می شود. این دیالوگ تا نیمه های شب بدون نتیجه دوام کرد. ساعات اخیرشب نگارنده و خیبر اتاق را ترک کردیم.

با وجود این برخورد ها نشرات پرچم باز هم در خط وابستگی پیش می رفت. ارزشهای عنعنوی و ایدالهای ملی را کم بها میداد. چنانچه نشر شعر که در آن درود به لینین گفته شده بود، ملا ها را به عکس العمل شدید وا داشت و از تمام ولایات در مسجد پلخشتی جمع شدند و علیه پرچم سخن رانی کردند و تعطیل جریده، محکومیت شاعر و مدیر مسئول جریده را میخواستند. سلیمان لایق با وجودیکه بحیث مسئول جریده، مخالف نشر این شعر بود ولی نظر به پافشاری کارمل نتوانست جلو نشر آنرا که هنگامهٔ بزرگی بوجود اورد، بگیرد (ص ۱۵).

غوربندي صاحب د ببرک کارمل په استعداد اعتراف کوي او لیکي:

باید اعتراف کنم، که در اوایل نگارنده از خصایل و کرکتر کارمل معرفت کامل نداشتم. بیان تند، لهجهٔ گیرا، سرعت انتقال طرح های سیاسی مرغوب وی خوشم می آمد. کارمل در روان شناسی افراد مهارت داشت و در پوشاندن نیات واقعی خود استاد بود. حزبی ها را با ریا کاری، حیله گیری و فریب تسخیر میکرد.

کارمل دوست و دشمن دایمی را نمی شناخت و دایماً اشخاص را بنا بر سطح وفاداری آنها تعویض میکرد و نقش اخلاقیات را در سیاست نا چیز میدانست. در تمجید و تجلیل روسها حتی قبل از هفت ثور از ابراز هیچگونه مبالغه دریغ نمیکرد. کارمل تا زمستان سال ۱۳۴۵ نزد ما قهرمان میدان بود و ما صمیمانه و صادقانه از

وی پشتیبانی می کردیم. در اجری دساتیر وی کوتاهی را گناه میدانستیم. در حوزه ها مخالفت و جنجال روز افزون بود بدگویی و اتهامات به آدرس رهبران شروع شده بود.

در یک جلسه توضحی کارمل صریحاً با لحن توهین آمیز گفت که در نهضت سیاسی عناصر سادهٔ بدوی در اطراف نور محمد تره کی جمع شده و با ضوابط و نورم های قبیلوی میخواهند امور را اداره و حزب را رهبری کند. این حرف ها عکس العمل شدید کادر های اطراف را که عمدتاً طرفدار نور محمد تره کی بودند بر انگیخت. ببرک کارمل قبل از انشعاب اول سه جلسه طرفداران حزبی خود را در زمستان ۱۳۴۵ یک مرتبه در خانه هادی کریم واقع در شهرارا و دو دفعه دیگر در خانه اسلام جان (کلان) در مراد خانی جمع کرد تا مطلب قبلی خود را توضیح دهد. این جلسات معمولاً به اشترک ۱٦ تن از کادر های طرفدار کارمل صورت می پذیرفت (ص ۱۹).

جلساتیکه بنا به دستور و تحت رهبری مستقیم کارمل بدون اگاهی نور محمد تره کی منشی عمومی حزب، بصورت کاملاً مخفی دایر شد، در حقیقت آغاز انشعاب ۱۴ ثور سال ۱۳۴٦ است که در آن به کادرها و فعالین فارمولهای تبلیغاتی و سازمانی بر ضد یک بخش بزرگ حزب داده می شد. لهذا با صراحت میتوان گفت که مسئولیت انعشاب اول و مصایب عظیم ده ساله جدایی و تفرقه در جنبش به دوش ببرک کارمل است.

بعد از انشعاب تمام نیرو و انرژی هر دو طرف بجای اینکه بر ضد بیداد و ظلم منحط سلطنتی سمت داده شود و در جلب و پرورش جوانان علاقمند به مبارزه و سیاست بکار گرفته شود. در جهت تخریب یک دیگر سوق داده شد و فضای جنبش را دود غلیظ پروپاگند های نا روا مسموم ساخت.

## ببرک کارمل خپله پشتون ستيزي پته ساتي

دا مطلب به د محمد صديق روهي صاحب په مضمون کې ولولو.

د استاد روهي د يوې تاريخي کتنې په اړوند

د استاد روهي ياد دې تلپاتې وي!

هغه زموږ د وطن دروازې...

**لنډه کیسه**

نه پوهېدم چې څنګه او د څه په خاطر مې بیايي؟ په پوره درناوي یې له کوره راویستم. کله چې په زینو کې را کښته کېدم، څو څو واري هغه سړي چې پر ما پسي را استول شوی وو، دا خبره تکرار کړه:

ـ صاحبه ډېره ښښنه غواړم. څه وکړو وظیفه ده کنه.

ما یوازې دومره ورته وویل چې:

ـ پوهیږم، پوهیږم.

د کور په دروازه کې، یو ډېر ښکلی موټر تیار ولاړ وو، هغه لوړ منصبدار مې مخې او یو بل چې دروازه یې را ته خلاصه کړه څنګ ته کېناستل.

د ماښام تیاره وه، د آسمايي څوکه د موټر له منځه را ته مخامخ شوه. پر سر یې پیکه سپوږمۍ مخ په ځوږ وه. خو ستورو لا خپله رڼايي درلوده او سترګکونه یې را ته وهل. زه پوهېدم چې چیرې ځم. خو په دې نه پوهېدم چې د څه په خاطر؟ یوازې په دې سوچ کې وم چې یو څه خو باید ورته ووایم. هو، داسې چې یوازې دومره پوه شي چې د ده په شا او خوا کې (ټول ړانده او کاڼه) لکه دی، نه دي.

د دغه فکر لړۍ مې لا پای ته نه وه رسېدلې چې زموږ د موټر مخې ته دوه غبرګ روسان ودریدل. پوه شوم، چې اوس نو د (ارګ) په دروازه کې وو. د څراغونو د رڼايي په اوږدو او لنډو کې یوه آشنا څېره، یو آشنا غږ او بالاخره یو آشنا عسکر، دا یو هم نه ښکارېدل او یوازې زه وم چې اوس د زړه په زور پر دغه دروازه باندې ننوتم. تر سترګو مې توره شپه کېده، که څه هم پر دغه دروازه زه په پخوا وختو کې څو څو ځلې تللی راغلی وم، خو نن ګرد سره بل ډول را ته ښکارېده. د موټر په مخکې ناست منصبدار پیره دار ته په روسي ژبه چې زه نه پرې پوهېدم څه وویل. زما نوم یې واخیست. روخې، یو یې هغې خوا خونې ته ور نږدې شو. یوه جمله یې ورته وویله چې یوازې یوه کلمه یې چې زما د نامه (هـ) یې په (خ) واړوله. زه پوه شوم او هغه مې واورېده. دروازه خلاصه شوه. هو، داسې چې نه یې غنګ و او نه غونګ. په همدغه شېبه کې مې په زړه کې یوه خبره را تېره شوه او د مخې منصبدار ته

مې په خندنی ژبه وويل:

- دروازه خو لکه زمونږ د وطن د دروازو په شان نه ده!

هغه مخ را واړاوه:

- څنګه صاحب؟

- هغه زمونږ د وطن دروازې چې يوه دړه يې خلاصيږي بيا نيم کلی خبروي او چې بله دړه يې خلاصوئ نيم نور...

پښتون منصبدار لکه چې کوم روس ضد خلقی و ، زما په خبره ورسېد، ژر يې زما خبره تر ما هم په يوه جالبه بڼه را غبرګه کړه:

- هو، هغه مې ليدلي. د هغو دروازو ساتونکې پښتانه دي او د دې روسان. هغه او دا خو کله هم يو شان نشي کېداى...

سمې زمونږ خبرې پاى ته ورسېدې چې د موټر دروازې خلاصې شوې. موږ ترې راکښته شوو، همدغه منصبدار مې تر يوه ځايه پورې تر مخ و او زما لارښوونه يې کوله. د يوې ښکلي مانۍ په دروازه چې آسمايي مخامخ ترې ښکارېده لارښوونه کړم. د پراخ دهليز په دغه او هغه سر کې مې بيا سترګې پر غبرګو روسانو ولګېدې، چې د چا خبره په ماشه سپاره ولاړ وو. د هغه ځاى (ارګ) هر څه اوس په دوى پورې اړه درلوده. يوه شېبه هم نه وه تېره چې دربېمه دروازه پرانيستل شوه. هم هغه لوړ منصبدار غوندي يوه بل زه پر مخامخ لوري بدرګه کړم. دا وروستۍ دروازه وه چې زه يې په تور مابښام کې له خپل کوره هلته ورغوښتی وم. ما لا سم ګام د ننه نه و ايښی چې هغه د ځوانۍ د شپو ورځو آشنا (اوسنی واکمن) را د مخه شو او زه يې کلک په خپله غېږه کې ونيولم:

- خوښ يم ، چې له کلونو وروسته دي روغ رمټ وينم.

ما هم په دغه ترخ کې څو تشريفاتي کلمې په مقابل کې وويلې او دواړه د ميلمستون لور ته دوه په دوه ولاړو او هلته کښيناستو. لومړى يې زما خورا عزت وکړ. هرکلى يې را ته ووايه او بيا مخامخ په همدغه تاکلي مېز را ته کېناست او را ته يې وويل:

ـ پرون شپه مې هغه پخوانۍ شپې ورځې، پخوانۍ خاطرې او پخواني دوستان لکه؛ تاسې غونډي فکر ته راغلل. ته را یاد شوې. ستا لویي او پوهه په زړه کې را تېره شوه چې دا ټول یاران ستاسي په ګډون به اوس وایي چې ګوا کې زه اوس...

ریښتیا خبره خو دا وه چې د هغه دا یو عادت ما ته معلوم و. هغه دا چې ده آن په ځوانۍ کې هم د دوستۍ او ملګرۍ پروا نه ساتله، ځکه که دا خبره وای نو دا څو کاله چې پر واکمنۍ وو، ولي یې د تېرو یادونو، زمونږ د ځوانۍ د شپو ورځو او زمونږ د پوهې پوښتنه نه کوله؟ خو زه پوهېدم چې اوس په دنیا کې هر څه د بدلون پر خوا شوي وو او اوس روسان پوه شوي وو چې د ده په شته والي او د ده په ملاتړ کې هره شېبه د بدمرغیو او سختو ماتو زېري اوري. دی هم اوس په دغه ټکي باندې پوه شوی وو او پوهېده چې هغوی به یې په ډېره ناځوانۍ سره له نا چارۍ په یوازې ډګر باندې پرېږدي. خو د چا خبره له دې سره سره هم دی لا هم په خپله کې و.

په هغه شپه ما ډوډۍ هم له ده سره وخوړه. زما او د ده مرکه هم ډېره توده شوه، ما خپله نرمي وساتله، ده هغه ټول څه را ته وویل چې دی ورسره مخامخ و. یو ځل یې د خبرو په منځ کې یوه د زړه خبره هم له خولې را ووتله:

ـ افغانان (پښتانه) نه غواړي چې زه د دې وطن واکمن وم. آخر زه څوک یم. هیله من یم چې په دغه باره کې مرسته را سره وکړې.

دی لا را ته ګډ و، خو ما د ده د خبرو لړۍ په ډېره آرامۍ سره پرې کړه، ورته موسکی شوم او ورته ومې ویل:

ـ... صاحب! زه فکر کوم خبره داسې نه ده چې ګواکې تا افغانان نه غواړي. اوس تر هر څه د مخه د روسانو سوال مطرح دی. او دا هغه سوال دی چې د هغه په وړاندې د (ملت) د غوښتنې او نه غوښتنې خبره طرحه ده.

په ډېره وارخطایۍ سره یې زما خبرې پرې کړې:

ـ نه زما خبره سمه ده. نور ما غواړي، یوازې پښتانه ما نه غواړي.

ما یو ځل بیا خپلې خبرې له یوې بلې زاویې را پیل کړې. په دې منځ کې یو روسی عسکر پرته له اجازې نېغ راننوت او ده ته یې یوه پاڼه په مخ کې کېښوده.

په خندا کې مې ورته وویل:

- که له دغو سرو خدای خلاص کړو نور به هر څه خدای آسانه کړي.

فکر کوم چې زما خبره ښه پرې ونه لګېده، ځکه یې دا ځل (تاسو) کلمه زما پر مخ راویسته:

- تاسې هم د (آزادۍ) او (خپلواکۍ) هم هغه کلاسیکه مانا له یاده نه ده ایستلې. پوهیږې چې آزادۍ اوس خپل پخوانی مفهوم له لاسه ورکړی دی. نه پوهېږم چې دا زموږ پوهان ولي مترقي آثار نه لولي.

یو شمېر لکه تاسو او (اعتمادي) په واقعیتونو هم ښه پوهیږئ خو بیا هم ځانونه ناګاروئ. اعتمادي څه موده مخکې ما ته مخامخ وویل:

- جانه تا باید امین په روسانو نه وای مات کړی.

خو ما د ده خبره ورته راغبرګه کړه:

- فکر کوم چې د آزادۍ کلمه په خپله کلاسیکه کلمه ده او هر وخت په یوه مانا د هر چا له خوا کارول شوې ده. اوس زموږ په عصر کې هم په هم هغه خپله مانا کارول کیږي. همدا وجه ده چې د هر چا خوښیږي او...

خو ده بیا په جدي ژبه خپله خبره وکړه:

- آزادۍ ته اوس کلاسیکه مانا کارول د زمان غوښتنه نه ده.

ما بیا د ده خبره د خپلې خندا ملګرې کړه ورته موسکی شوم:

- له بده مرغه موږ پښتانه له زمان او زمانې څخه خورا وروسته پاتې یو، دا چې زه د آزادۍ اوسنۍ او کلاسیکه مانا نه شم درک کولای یو لامل یې هم کېدای شي همدا وي...

دا ځل ده ته هم خندا ورغله، رښتیا د ده خندا هم عجیبه وه. موږ به د ځوانۍ په شپو ورځو کې تل ده ته ویل چې ډېره هڅه مه کوه، چې د چا په مخ کې وخاندې، ځکه ستا تر خندېدو نه خندېدل ښه دي. د ده په خندا ما ته هم هغه خبره را یاده شوه. ما ته هم خندا راغله او زما خندا یې دا ځل د خپلې خبرې ملګرې کړه.

هغه خبره چې د ده د زړه له هغو يوه وه:

ـ زه نه پوهېږم چې دا تاسې پښتانه پر دې آزادۍ څه کوئ؟

څو شېبې مې خپلې خبرې تر ژبه لاندې ونيوې، ورته موسکی شوم، خو داسې ښکارېده چې دی د خپلې پوښتنې ځواب ته سترګې په لاره دی، ځکه مې د ده د خبرې په ځواب کې يو څه په جدي توګه خپله خبره ورغبرګه کړه:

ـ کوم خوند چې تاسې په غلامۍ کې ليدلی، هغه موږ په آزادۍ کې وينو...

له ښه مرغه که له بده مرغه زما په دغه لنډه جمله يې يو څه رنګ ته وينه ورغله. دومره وينه چې ما په رېښتيا هم په دغه سړه شپه کې د ده له ليدو څخه د پوره تودوالي او سوروالي احساس وکړ. ښی لاس يې د خپل سر پرښې خوا باندې ونيو، په ځير ځير يې را ته وکتل:

ـ ته امريکايانو پېژندلې وې چې په بيروت کې يې ډاکټرۍ ته پرېښودې. آزادي، دربغه چې تاسې تر اوسه هم د زمانې په بدلون کې سمندرونه په خپل پټم ايساروئ. دا آزادي که زما په لاس کې وه او يا ستا، هغه نوره له دغه وطنه تللې در بوله. نور يې په خوبونو کې لاره څارئ...

رښتيا، ما نور ځان ونه خوځاوه. ده يو څو نوي نصحتونه نور هم را ته وکړل. خو زما خوا دومره سړه شوې وه چې هغه مې يو هم وا نهورېد، خو سر مې تر پايه ورته ښوراوه.

شپه تر نيمايي واوښته، يو ځل بيا يې له خپل استاد اعتمادي څخه سرټکونه را ته وکړه چې ګواکې هغه د امين ملا ورته تړلې وه. هغه دا هم ورته ويلي وو:

ـ زه ډېر بدمرغه يم چې زما شاګرد د پرديو پر متو باندې پر افغانانو واکمني کوي او پردي پوځونه يې زموږ پرهېواد باندې د تاريخ په دغه عصر کې را وبلوسول. زه ډېر بدمرغه يم، ډېر...

هغه ما ته د خپل ځان د سپيناوي په اړوند په دغه توره شپه کې نږدې يو کتاب خبرې وکړې، داسې چې ما ته هغه يوه هم رېښتيا نه ښکارېده.

شپه وه، تورتم و ، چې زه يې له درباره راووتم. زه پوهېدم چې هغه زما په ليدلو ډېر خواشيني او آن پښېمانه و. زه پر همغه دروازه لکه چې زموږ د وطن د دروازو په شان نه وه. په هغه تورتم کې راووتم. د څراغ په رڼايي کې هم هغه روسي پوځيان په خپلو ځايونو کې ځوک ناست او ځوک ولاړ ول او زه تري راووتم...

زه په هغه شپه ډېر آرام وم. هغه د ځوانۍ د شپو ورځو آشنا چې د چا خبره اوس د نورو په زور د خلکو په وينا په بله کې و ، بيا تر هغه چې پر واک و ، زما پوښتنه ونه کړه او زه له اعتمادي وروسته دويم ځوک وم چې د ده کړو وړو پوښتنو ته مې سيخ، ريښتياني او روښانه ځوابونه ورکړل. هو، روښانه، ډېر روښانه...

- کوم خوند چې تاسې په غلامۍ کې ليدلی، هغه موږ په آزادۍ کې وينو!

خالق رشيد

نوی ډيلی.

د ۱۳۷۵ کال د غوايي ۳۱ مه

## ببرک کارمل د نور محمد تره کي په بیوگرافی (ژوندلیک) کې جعل کاري کوي

غوربندی صاحب لیکي:

خلاصه اینکه اختلاف و تصادم جناحی که هیچگونه پایه اصولی نداشت نه تنها باعث جدایی ده سال جدال بیهوده گردید؛ بلکه از هر دو جناح قربانی های زیادی گرفت و تا اکنون بر دوش ما سنگینی دارد. بعد ازین انشعاب، جناح پرچم از لحاظ کمی ضعیف گردیده مکاتب رحمان بابا، خوشحال خان ختک، دارالمعلمین و محصلان اطرافی پوهنتون کابل با هیجان بی سابقه و کمیت هنگفت در تظاهرات شرکت نموده مجال سخنرانی و تبارز را به کادر های پرچمی نمیدادند. اگر چه این مسئله چندان مهم نبود ولی کارمل را که شدیداً به نمایش و به اصطلاح خودش (شو) اهمیت میداد نا راحت و عصبانی ساخت و کمیته را تعین نمود تا علیه خلقی ها و بخصوص علیه نور محمد تره کی تحت پوشش بیوگرافی نور محمد تره کی مواد پروپاگندی تهیه کنند. کمیته در خانه محمد حسن بارق شفیعی در تایمنی جلسه نموده، بیوگرافی نورمحمد تره کی را طبق نظر کارمل دست کاری نموده بصورت شبنامه وسیعاً پخش نمود. در شبنامه اورده بودند که نور محمد تره کی چگونه در خدمت عبدالمجید زابلی قرار گرفته بود. شبنامه میگفت که نورمحمد تره کی در یک مکتب امریکایی درس خوانده از طرف یک موسسه امریکایی استخدام شد و به هند رفت بعداً در نهضت ویښ زلمیان اشتراک داشت. اما وقتیکه دیگر اعضای ویښ زلمیان به زندان افتیدند نورمحمد تره کی در سفارت افغانستان مقیم امریکا بحیث آتشه مطبوعاتی مقرر شد. بلاخره زمانیکه سردار محمد داود در زمان صدارت خود با اتحاد شوروي نزدیک گردید او در یک مصاحبه مطبوعاتی علیه او سخن گفت. دوسیه اختلاس دارد.

**در نهایت بعد ازین جعلیات و چرندیات نتیجه گرفته می شد که نورمحمد تره کی عضو سی. آی. ای و جاسوس امریکا است. کارمل عادت داشت مخالفین خود را سی. آی. ای بگوید چنانچه این لطف خود را نثار دیگرها نیز نموده که در جایش به**

آن خواهم پر داخت. طبق دستور کارمل، این بیوگرافی به قسم شبنامه وسیعاً پخش و اعضای حزبی مکلف به تکثیر آن در مرکز و ولایات شدند. تکثیر و پخش بیوگرافی تره کی موج جدید از تبلیغات منفی متقابل در میان پرچمی ها و خلقی ها باعث گردید. محصلان ومتعلمان در پوهنتون ها و مکاتب، مامورین و کارمندان حزبی در ادارات و کارگران حزبی در موسسات دولتی و فابریکات بنام دفاع از رهبران خود علیه یک دیگر تاخت و تاز می نمودند، اتهام وارد میکردند و حتی بعضاً به حملات و زد وخورد های فزیکی می پرداختند، عناصر... با مشاهدهٔ این حالات از حزب استعفا دادند و از مبارزه کنار رفتند... بار سنگین این همه نا هنجاری ها و نا بسامانی ها بدوش صفوف حزب بود... (ص ۹-۲۰-۲۱).

## ترور استاد میر اکبر خیبر

### کې. جي. بي او ببرک کارمل د میر اکبر خیبر د ترور سازماندهي کوي

د خیبر د ترور په هکله مختلف نظریات موجود دي.

- نبی عظیمي د حفیظ الله امین پښه په دې ترور کې ورگډوي.
- دستگیر پنجشیری پاکستان مسئول بولي.
- ځیني کړی د داود خان حاکمیت مسئول بولي.

خو غوربندی صاحب دا ټول نظریات بې بنسټه او له غرضه ډک بولي او هغه څه چې ده پخپله لیدلي او ویلي دي د قوي منطق پر بنا طرح کوي او د ترور اصلي منبع په گوته کوي.

- غرزی لایق د خپل پلار (سلیمان لایق) یاداشتونه، چې په زندان کې یې لیکلي دي، داسې وړاندې کوي:

یک یاد داشت کوتاه در سلسلهٔ کاوش ها پیرامون ترور استاد میر اکبر خیبر

سلیمان لایق:

... غالب اختلافات خیبر با کارمل از موارد آتی ناشی میشود:

- دروغ گفتن در سیاست و جعل اسناد علیه رفقای حزبی به نفع خود!
- تلاش برای تضعیف رهبران و شخصیتهای متبارز حزبی.
- ایجاد فرکسیون ها، حلقه ها و محافل غیر مجاز، ضد اصول حزبی و به نفع خود.
- تعقیب سیاست نادرست در جا به جا کردن کادر های حزبی.
- اصرار در تحمیل ارادهٔ شخصی بر حزب.
- ضعف کرکتر و خبط های اخلاقی که اغلب با رسوایی ها توام بود.

قبل از وحدت ۱۹۷۸ میلادی میان خلقی ها و پرچمی ها، اختلافات رفیق خیبر با رفیق کارمل بعد از طی مشاجرات و مراحل با گذشت و تحمل رفیق خیبر ملایم میشد و اما بعد از وحدت وضع دیگرگون شد. خیبر شیوهٔ گذشت یک جانبه را ترک داد و معتقد شد که گذشت بیشتر در برابر رفیق کارمل پایهٔ اصولی ندارد و به نهضت زیان میرساند. و در اوضاع و احوال کنونی که ترکیب و صلاحیت های مقامات رهبری تغیر کرده است موجب تضعیف وحدت حزبی و قرارگرفتن علیه رفقای خلقی میگردد. موضعگیری های خیبر قاطیعت پیدا کرد با رفیق کارمل به جای علایق رسمی و رفیقانه را جاگزین ساخت. این قاطعیت در اتخاذ روش سالم با ابراز خصومت غیر مجاز از جانب رفیق کارمل مقابله گردید.

رفیق کارمل وقتی احساس کرد که خیبر او را در مبارزه علیه تره کی جانب داری نمیکند، تماس خود را با رهبران فرکسیون خلقی ها ضد تره کی و امین و همچنان با اعضای پرچمی کمیته مرکزی بصورت جداگانه و پنهانی آغاز کرد. او با پرچمی ها صریحاً طرح کرد که نور محمد تره کی کمونیست نه بوده، یک فاشیست ناب است و در گذشته برای شوروي ها و امریکایی ها وظایف استخباراتی دو جانبه اجرا کرده است.

در باره ی رهبران خلقی مخالف تره کی و حفیظ الله امین و صالح محمد زیری میگفت: "آنان سکتاریست هستند و سر انجام به ماویزم خواهند لغزید و ماهیت ضد انقلابی خود را نشان خواهند داد."

رفیق کارمل به صورت پنهانی به رفیقای پرچمی ماموریت میداد تضاد میان دو

بخش خلقی را تشدید کنند و نخست فرکسیون تره کی و امین را که فعال است به کمک سکتاریستان تصفیه نمایند و بعد با سکتاریستان حساب را پاک کنند.

رفیق کارمل با اتخاذ چنین شیوه بنیاد وحدت حزبی را، که هنوز قوام نیافته بود، مورد اصابت قرار داد و نیز همین طرح را با شخص من در منزل دکتورس اناهیتا که محل ملاقات ها و ضیافت های خصوصی رفیق کارمل بود، در میان گذاشت و من با طرح وی مخالفت نشان دادم و فردای آن روز این ملاقات به اطلاع رفیق نور و رفیق بارق اعضای بیروی سیاسی آن وقت رسانیدم و از ایشان خواهش کردم که رفیق کارمل را از تدویر چنین صحبت های گمراه کننده با کادر های حزبی باز دارند.

رفیق نور طرح پیشنهاد رفیق کارمل را درست و اصولی دانست و با من طریق پرخاش و مشاجره را در پیش گرفت و اما بارق شفیعی در آن صحبت سکوت اختیار کرده بود.

کادرهای پرچمی که در صحبت های رفیق کارمل دچار تشویش و تزلزل می شدند غالباً به استاد میر اکبر خیبر مراجعه میکردند و خیبر آن رفقا را از مختل کردن مجدد وحدت حزبی بر حذر می ساخت و با ایشان روحیه عالی رفیقانه میداد.

رفیق کارمل موفق شد در روزهای نزدیک قبل از ترور خیبر به رهبران گروه «سکتاریست خلقی» پنجشیری، میثاق و زیری نزدیک شود و کار تشدید اختلافات میان خلقی ها را عملاً آغاز نماید، خیبر با این فعالیت رفیق کارمل ابراز مخالفت کرد و آن را به زیان حزب و نهضت عمومی ارزیابی نمود. در همین میان رفیق نور از جانب رفیق کارمل توظیف شد تا کار و فعالیت خود را در آشتی دادن و جلب خیبر که در اثر تعقیب سیاست نا درست رفیق کارمل از وی فاصله گرفته بود، دوباره به حمایت او جلب کند. اما خیبر روش انتقادی خود را عوض نه کرد و حاضر نه شد اصول را مورد معامله قرار دهد.

جلد: گزارشات روز مره (از زندان پلچرخی)

صفحه ی ۳۴ تا صفحه ی ...

غوربندی صاحب لیکي:

خیبر گویا طرفدار همکاری با حزب انقلابی (داود خان) است. اگر چنین

است پس خلاف عقل و سیاست است که داود و دستگاه، قربانی خود را در بین رهبران، کسی را انتخاب کند که برعلاوه سابقه و نفوذ فراوان در جامعه و حزب، آماده همکاری (با دولت) نیز باشد هرگاه داود و دستگاه... تصمیم میگرفت شخصی را از بین رهبری ح. د. خ. ا. ترور کند بی گمان مساعدترین شخص را نسبت خود انتخاب نمیکرد. پس واضحاً به این نتیجه میرسیم که دخیل بودن داود خان و دستگاه وی درین ترور منتفی است هر گاه از این گونه اتهامات بی پایه و بی اساس و خلاف عقل و منطق و غرض آلود که بگذریم و صمیمانه در جستجوی حقیقت باشیم و جسارت و شهامت افشا گیری نیز در وجود ما باقی باشد و پای ما در کدام (تلک خرس) بند نباشد دلایل کافی وجود دارد تا با ارامش کامل وجدان حکم نمایم که خیبر توسط کې. جي. بي. طبق معلومات غلط ببرک کارمل که در مورد و نقش وی در جنبش انقلابی داده بود ترور شده است.

تعدادی ازین دلایل معلوم عبارت اند از:

۱ - بارق شفیعی، سلیمان لایق و اینجانب شاهد هستیم که ببرک کارمل برای میراکبر خیبر پیام تهدید آمیز فرستاده بود که بوسیله نور احمد نور به میر اکبرخیبر ابلاغ شده بود.

۲ - نگارنده در خانه خیبر حضور داشتم که خیبر خطاب به نور احمد نور گفت: کارمل مرا به مرگ تهدید کرده برایش بگویید که من از مرگ نمی ترسم و جز در جلسات رسمی در زیر یک سقف همرایش نمی نشینم.

۳ - در شب ترور خیبر، کارمل به نورمحمد تره کی گفته بود "کسیکه دبل بازی میکند جزایش همین است" این سخن را نورمحمد تره کی بعد از پیروزی قیام ثور... ضمن ابراز عدم رضایت نگارنده به کم توجهی در کشف قاتلین خیبر و اینکه محلی یا موسسهٔ را برای جاویدان ساختن خیبر نام گذاری کنیم برایم بطور ضمنی فهماند که ترور خیبر کار کې. جي. بي. به همکاری ببرک کارمل است.

۴ - ببرک کارمل که در مراسم جنازه خیبر... ریا کارانه و محیلانه گلو پاره میکرد... در زمان طولانی قدرت خود حتی یکبار هم از ترور ظالمانه این شخصیت بر

جسته یاد نکرد و سالگره نگرفت و مقبره یا محوط مزارش را نه ساخت و از کار و پیکارش هرگز تجلیل بعمل نیاورد.

۵ - خانوادهٔ خیبر نیز به نحوی دست کارمل و اعوانش را درین ماجرا دخیل میدانست.

٦ - در آخرین لحظات که قبل از ترورش با خیبر در وزیر اکبر خان قدم میزدم و در مورد شیوه های زور گویانه کارمل اخطارها و تهدید هایش صحبت میکردیم گفت: «من نمیدانم کارمل به زور کدام میخ می پرد و به شیوه بسیار نازل و نا متعارف شانتاژ میکند و فکر میکند به این صورت مارا تابع اراده خود سازد.»

۷ - اقای حسن شرق (صدراعظم دوران نجیب الله) نیز، این حقیقت را می پذیرد که کوماندو های کې. جي. بي. موظف درسفارت شوروي در مرگ خیبر دخیل است (ص ٥٦ و ٥٧).

میراکبر خیبر له غوربندي سره په صحبت لګیا دی وايي:

من میگویم تکتیک و ستراتیژی سیاسی حزب ما بر اساس تقدم خواست های ملی و اجتماعی وطن خود ما اتخاذ گردد و کارمل پا فشاری دارد خود را انترناسیونالیست پر شور و مرا ناسیونالیست تنگ نظر معرفی میکند.

نگارنده میخواستم روی تهدید ها و اخطار های کارمل صحبت کنم و آنرا رندی، بازار تیزی و ترساندن سرکوچه خوانده و ناشی از عصبانیت های کارمل تلقی کردم هوا تاریک شده بود و ما در قسمت شمال سرک حلقوی وزیر اکبر خان قرار داشتیم با هم خدا حافظی کردیم. من به خانه رسیدم ولی خیبر هدف تیر جنایت کارانه دشمن نا بکار قرار گرفت و به خانه نرسید از رسیدن من به بخانه ام حدود یک ساعت گذشته بود که دروازه زده شد دخترم که دروازه را باز نموده بود گفت، نور کاکا آمده شما را کار دارد. از آمدن غیر مترقبه نوراحمد نور در آن وقت شب تعجب کرده خود را به دروازه رسانیدم. موصوف شتاب زده و جویده گفت، رفیق خیبر را متاسفانه ترور کردند. سرم چرخید به دیوار تکیه کردم بدون اراده چیغ زدم، خاینها ترورش کردید... خانم و اولاد هایم با شنیدن این خبر تکان دهنده همه در گریان و فغان شدند (ص ٥٩).

اکنون برای حزبی ها و غیر حزبی ها فارغ از حب و بعض این سوال ها مطرح

است که کارمل در شش و نیم سال دوران قدرت خود نام اکبر شهید را حتی یکبار هم یاد نکرد... و سنگ نبشته بر مزارش نصب نکرد؟... شهری، محلی، سرکی، جاده ای... بعنوان تجسم مادی... برایش نام گذاری نکرد و صدها چرا های دیگر که فقط یک جواب دارد و آن اینکه ریا کاری کارمل حد و اندازه نداشت، هم میکشت و هم گریه میکرد و در هر دو فن استاد بود و خیبر هم به هیچ وجه اولین و آخرین قربانی این عوام فریب نبود. حفیظ الله امین و نجیب الله نیز در زمان های دیگر برای به قدرت رسانیدن کارمل و به اشاره وی از سوی مارگیران محیل کې. جي. بي. نابود و اسیر گردیدند وسرو کله خودش از تمام این ماجرا های خونین سالم بدر شد. (ص ٦٢).

## کارمل د پرچم د انحلال دستور ورکوي، خو د پرچم صفوف سخت عکس العمل ښکاره کوي

غوربندی صاحب دوام ورکوي:

گرایش های تسلیم خوا هانه و تمایلات انحلال طلبانه در لا بلایی جناح پرچم ملاحظه میگردید. این تمایل جنبه عملی میگیرد و دستور کارمل بنام فیصله رهبری ابلاغ شد که به عکس العمل شدید مواجه میگردد... تمرد کادرها و کمیته های ولایتی برای کارمل پریشانی و دست پاچگی بوجود آوردند.

د پرچم د انحلال خبره رښتیا وه، اسدالله اشمارین په هغه وخت کې ویل چې پرچم ځان منحل اعلان کړ. د پرچم د انحلال خبر دا اوس هم په مطبوعاتو کې منعکسیږي. مثلاً د مشعل په سایټ کې د محشور په نامه یوه ځوان د پرچم د انحلال په هکله څه لیکنه کړې وه، چې یوه پرچمي کادر د کارمل په دفاع کې سخت غبرگون ښودلی او داسې ځواب یې ورکړی دی:

منحل شدن پرچم: بجواب محشور نگاشته میشود که در ماه قوس ۱۳۵۴ سردار داود به طور واضح... براست لغزید.

پیام سردار داود توسط اکرم عثمان به پرچم مواصلت ورزید که در باره انحلال پرچم چنین دستور داده بود: منتظر انحلال باشید، فقط انحلال ! !

توضیحات: اگر ببرک کارمل حزب را منحل نمی ساخت، این دیگر مخالفت اشکار در برابر سردار دیوانه بود.

## د خلک دیموکراتیک گوند بیا یو کېدل او د ببرک کارمل وحدت شکني

غوربندی صاحب خپلو خبرو ته داسې ادامه ورکوي:

و اما در جناح پرچم، بعد از شوک انحلال طلبی و دفاع فوری آن دو شعار مبرم مطرح گردید:

۱- توسعه کمیته مرکزی پرچم.

۲- وحدت مجدد ح. د. خ. ا.

ازولایات و مرکز روزانه ده ها پیشنهادات دراین زمینه میرسید. هیچ کس توان مخالفت علنی به این دو طرح را نداشت. این پیشنهادات در بیروی سیاسی و کمیته مرکزی پرچم نیز بازتاب جدی داشت. خیبر از هردو پیشنهاد همه جانبه پشتیبانی میکرد اما کارمل نمی خواست توازن موجود در جناح پرچم که به نفع وی بود برهم بخورد و یا با وحدت مجدد ح د. خ. ا. باز هم در ردیف دوم برود. ولی مقاومت کارمل در برابر اراده جمعی بیهوده بود... موصوف (کارمل) زیر اراده جمعی حزب و اخطار حاکی ازاینکه کادرها یکجانبه به وحدت می پیوندند مجبوراً تن به این سیاست داده بود... میر اکبر خیبر به کارمل اخطار داد ! هر گاه در پروسه وحدت کارشکنی کند یک جانبه و بدون قید و شرط وحدت خواهد کرد...

سند وحدت بتاریخ ۱۲ سرطان ۱۳۵۶ بین دو جناح امضا شد (ص ۴۵)

نگارنده و سرور یورش دو نفر اخیر بودیم که سند وحدت را در خانه نور محمد تره کی واقع درکارته چهار امضا کردیم با خوشحالی از آنجا برامدیم وقتی به سرک

عمومی کارته چهار رسیدیم یک تن از فعالین حزبی (پرچم) بما نزدیک شده گفت:

رفقا در جمال مینه درخانه کریم زاده جمع اند بمن دستور داده که شما را به انجا رهنمایی کنم.

وقتی انجا رسیدیم با حیرت ملاحظه کردیم که رهبری پرچمی بازهم حضور دارند بخود لرزیدم... خیبرگفت: همین اکنون اگر نورمحمد تره کی بداند که پیوست با ختم مراسم وحدت، ما پرچمی ها به شکل جناحی جمع شده ایم حق دارد به صداقت ما شک کند... این حقیقت یکبار دیگر نشان داد که وحدت از نظر کارمل و گروپ وی حرکت کاملاً مصلحتی است و کوچکترین اعتباری به آن قایل نیست... (ص ۴٦)

در یکی از روزهای آخر ماه سنبله ۱۳۵٦ سرور یورش بخانه ما آمد و شکایت کنان بمن گفت «با وجودیکه بیش از دو ماه از وحدت حزب میگذرد... مرکز دوم مانند سابق به کار خود ادامه میدهد. در حالیکه طبق فیصله کنفرانس، نور محمد تره کی منشی عمومی است پل سرخ چون مرکز موازی باز است و ببرک کارمل هدایات تفرقه افگانه میدهد»... کارمل ما را مخاطب ساخته گفت: وحدت وقتی حفظ میشود که ما قوی باشیم (پرچم قوی باشد). کارمل در جناح پرچم قبل از وحدت، منشی عمومی تام الاختیار بود. دوست داشت همیشه دستور دهد و بلی بشنود. او میخواست از کمیته مرکزی یک محفل خانوادگی بسازد و خودش پدرسالار باشد و چون دیکتاتوران خود کامه عمل کند، برای او مشکل بود تا در شرایط بعد از وحدت که دیگر منشی عمومی نیست خود را انطباق دهد و تابع انضباط حزبی باشد. ساختمان روحی کارمل طوری بود که بالاتر از خود کسی را قبول نداشت و هرگاه بنابر حالات جبری در مقام دوم قرار میگرفت آنرا شکل مصلحتی و موقتی میدانست.

## ببرک کارمل د کې. جي. بي په غلامۍ افتخار کوي

غوربندی صاحب لیکي:

کارمل منبع و منشا و قدرت حزبی را در خارج از افغانستان جستجو میکرد. باید اعتراف کرد که کارمل در شناخت خصلت واقعی روسها استاد بی بدیل بود. او

میدانست که در آنجا صلاحیت یک خورد ضابط کې. جي. بي بالاتر از مقام عالی سیاسی و اداری است. بنابر همین هوشیاری و زرنگی بود که فخر فروشی میکرد و میگفت که به حلقه اساسی زنجیر قدرت چنگ انداخته و درین میدان کسی حریف او نیست.

کارمل با استفاده از مناسباتهای مختلف به اعضای خاص سفارت شوروي قالین های مور که روی ان به تمثال لینین مزین شده بود ونیز اشیای عتیقه بنام تحفه تقدیم میکرد... او خود را انترناسیونالست و مخالفین درون حزبی خود را ناسیونالست های اصلاح نا پذیر میدانست... در عین حال افراد مربوط به خانواده و عنصر قابل اعتماد خود را در ساحه ملکی و نظامی ظاهراً برای تحصیل و در حقیقت برای اجرای دساتیر خاص به شوروي می فرستاد. اینکه شبکه وسیع را به کار گرفته بود تا ثابت کند که نوکر بهتر از او وجود ندارد... او قدرت ملی را نیز خارج از اراده ملی جستجو می نمود. لهذا تصادفی نیست که شوروي با قبول یک افتضاح بزرگ بین المللی قشون سرخ را به حرکت در آورد و خلاف کلیه نورمهای جامعه بشری دست به یک تجاوز خشن و عریان زد... و گماشته حلقه بگوش خود را بر اریکه قدرت تکیه داد. (ص ۵۰)

د غوربندي صاحب په کتاب کې په سلګونو مثالونه موجود دي چې د ببرک کارمل مداري توب ثابتوي او د پرچم د رهبرانو نا پاک او ضد ملي فعالیتونه ښیي او همدارنګه روښانه کوي کېچې نوراحمد نور او نجیب الله کارمل ته ډېر وفادار او د هغه د موقف او موضعګیری له پاره ستر کارونه سرته رسوي. غوربندی صاحب د نجیب الله په واسطه د کارمل ملاقات ته ورځي او وایي: کارمل با لبخند گفت، عجب گپهای راجع به تو میشنوم، میگویند بعد از وحدت خلقی شده ای، گفتم خلقی های خوب همه پرچمی شده اند... کارمل: حاضر جوابی شما خوشم آمد اما تشویش من فقط این است که میترسم یک عمر روابط عاطفی ما که محصول سیاست و معاشرت مشترک سالهای جوانی ما است از دست نرود (ص ۵۱).

بیا نوراحمد نور تلاش کوي چې د کارمل او خیبر تر منځ منځګړیتوب وکړي؛ خو خیبر نوراحمد نور ته وایي: کارمل شما مرا به مرگ تهدید کرد ! نوراحمد نور بیا

هم د کارمل په ګټه دلایل وایي... چې ګویا غلط فهمي شوې ده، مګر خیبر ورته وایي: کارمل مرا مستقیماً و صراحتاً بوسیله کسی دیگری هشدار داده و تهدید بمرگ کرده است... کارمل علاقه دارد در نقش رئیس یک باند درجه سه مافیا، خود را امتحان کند... مشاجره... (ص ۵۴)

بیا هم غوربندی صاحب لیکي: اشخاصیکه هیچ گونه سابقه حزبی و معلومات سیاسی نداشتند حتی نسبت به اهداف حزب کاملاً بیگانه بودند در سطح اعضای اصلی حزب معرفی میکردند و آب به اصطلاح از سر چشمه گل آلود بود. نوراحمد نور که ازطرف جناح پرچم مسول تشکیلات در پرسه وحدت بود بصورت تعصب آمیز هدایات یک جانبه و غرض آلود میداد و تقلب میکرد.

## کارمل له پرچم څخه فامیلي محفل جوړوي

لکه څنګه چې د پرچم رهبري په فامیلي روابطو کې د حزب نقش لوباوه یا په بل عبارت حزبي تمثیل به یې کاوه، دا دی د محبوب شاه سنګر د خبرو متن به ولولو:

روزی محبوب شاه سنگر که یک کارگر حرفوی، شاعر جوان و مرد کار و در عین حال مسئول سازمان حزبی ننگرهار بود نزدم آمد و شکایت کنان گفت: خلقی ها نسبت به پرچمی ها بیشتر بودند، در تشکیلات ما نمیتوانیم سهم مساوی بگیریم، از کابل هدایت داده میشود تا بکوشیم کمبود را حتی از اعضای خانواده و اقارب غیر حزبی خود پوره نمایم و در حالت تساوی قرار گیریم. من آمدم تا رفیق نور را از نزدیک ببینیم و بگویم که این کار خلاف، از دست من پوره نیست و امکان هم ندارد که ما فرد بی سواد را در حوزه پهلوی یک حزبی فعال و با سابقه قرار دهیم. گذشته از آن شهر جلال آباد یک شهر کوچک است، روشنفکران و متعلمین یکدیگر را میشناسند. این یک تقلب و ریا کاری افتضاح آور است. بی اعتمادی بار می آورد، وحدت را صدمه میزند و فضای روابط متقابل را مسموم میکند.

اما رفیق نور را نتوانستم قناعت دهم، او امر کرد فوراً به جلال آباد باز گردم، گفتم چند کتاب از استاد خیبر گرفته بودم فردا کتاب ها را به استاد

خیبر مسترد نموده و کتاب تازه بگیریم، رفیق نور احمد نور با عصبانیت عجیب که برای من بی سابقه بود گفت: استاد خیبر کتاب خانه ندارد، کتابها را اینجا بگذار مسترد میشود.... سخن های سنگر ادامه دارد: اگر پالسیی تشکیلاتی در همه ولایات بدین منوال باشد آینده را تاریک می بینیم. میخواستم منشی عمومی حزب رفیق تره کی را ملاقات کنم و از وضع شکایت نموده توجه شان را در زمینه مبذول بدارد.

اما وقتیکه عکس العمل رفیق نور را دیدم که نمیخواهد حتی استاد خیبر را ببینم بخاطر جلوگیری از هر گونه سوی تفاهم، از آن صرف نظر کردم و تصمیم گرفتم بدیدن شما بیایم (ص ۵۴ و ۵۵).

د غوربندی صاحب لیکنې په واقعیت ولاړې دي او له محتوا څخه یې یوه مشخصه نتیجه په لاس راځي هغه دا چې د گوند په داخل کې د ټولو بدبختیو، تعصبونو، نفاق او شقاق، جنگونو او تبلیغاتو په راس کې محترم ببرک کارمل ولاړ دی او څو تنه کادرونه لکه (نوراحمد نور، نجیب الله، مجید سربلند او نور) یې هم د خپل تعصب په حلقه کې تربیه کړي دي او هر څوک چې د دې کوچني گروپ د منطق سره سازش نه کوي هغوی ته د ترور تر سطحې پورې توطیې جوړوي.

د پرچم صفوف اصولاً موضعگیري لري او د اړخونو وحدت غواړي، خو کارمل معامله غواړي. کارمل وحدت ته تن نه ورکوي، خو د پرچم صفوف بې له کارمله هم وحدت غواړي. کارمل د فامیلونو په واسطه په گوند کې کمبودات پوره کوي، خو صفوف یې دې ته تقلب، ریاکاري او افتضاح وایي.

دا خبره هم د یادولو وړ ده چې روسانو د نجیب په وخت کې کابل کې په ۴۲ حزبي سازمانونوکي پټ انتخابات وکړل څکه چې خلقي لوري انتخابات غوښتل. خو کله چې روسانو ولیدل چې په ۴۲ سازمانونو کې ټول خلقیان انتخاب شوي دي او پرچمیان څوک نه دي انتخاب شوي؛ نو بیا یې انتخابات منع کړل. بیا به مرحوم نجیب الله ویل: که کنگره دایره شي خو د تېرو رهبرانو په باره کې هم رښتیا ویل کیږي، څوک چې د انتقاد اورېدلو زغم لري. مرحوم

نجیب الله لـه کارمـل څخـه ډېـر شـیان زده کـړي وو، یـو ځـل یـې لـوی شـمیر ګونډي، نظامـي ملګـري غونډې تـه را غوښـتي وو او د سـالون پـه کونجونـو کـې یـې د خپـل خـاد ځـو ځـو کسـان ځـای پـر ځـای کـړي وو او مرحـوم نجیـب د کنګـرې د نـه دایره ولـو لپـاره دلایـل او تبلیغـات شروع کـړل. کلـه بـه چـې ملګـري نجیـب اللـه اعلان وکـړ چـې پـه کنګـره کـې د تېـرو رهبرانـو پـه بـاب څـوک انتقـاد زغملـی شـئ؟ د سالون لـه کنجونـو څخـه بـه د خـاد کسـان پورتـه شـول او پـه ډېـر لـوړ آواز بـه یـې چغـې وهلـې... "تحمـل کـرده نمیتوانیـم، تحمـل کـرده نمـی توانیـم»... مرحـوم دکتـور نجیـب اللـه بـه بیـا لاس یـوي خـوا تـه وغځـاوه، مسـکی بـه شـو او بیـا بـه یـې وویـل: دغـه ده هیڅـوک کنګـره نـه غـواړي. مرحـوم نجیـب اللـه پـدې ډول خپـل مسئولیت رفـع کاوه، تـر څـو سـلطنت یـې پایـدار پاتـې شي.

د پرچم د رهبرانو لوبې، دروغ، جعل، تزویر او... د شکست پایلې دي.

## د ستر جنرال الکساندر مایوروف دندې او په کابل کې د ده ارزونې

۱- د دویمې نړیوالې جګړې ګډون کوونکی اوفاتح.

۲- د شوروي اتحاد د د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې غړی.

۳- په پولنډ کې د (وارسا) د تړون نظامي رهبر (قوماندان).

۴- د ۱۳۵۸ هـ. ش کال د جـدي میاشـتې نـه وروسـته د افغانسـتان د مـلي دفـاع د وزیـر لـوی مشـاور.

د سـتر جـنرال الکسـاندر مایـوروف کتـاب چـې عزیـز آریانفـر یـې ترجمـه کړیـده (در پشت پـرده هـای جنـګ افغانسـتان) نومیـړي ځینـې یاداشـتونه یـې د یادولـو وړدي.

مایـوروف د شـوروي د اسـتخباراتو رئیـس (اندروپـوف) سره خـبرې کـوي او وایـي... اندروپـوف ګفـت "میدانـم کارمـل آدم الـوده یـې اسـت مګـر حـرف شـنو اسـت. از او حمایـت کنیـد" (ص ۷).

کلـه چـې مایـوروف د شـوروي سـفیر، مارشـال سـوکاوف او مارشـال اخرمییـف سره یـو ځـای د ببرک کارمـل ملاقـات تـه ورځـي او خـبرې کـوي؛ ګـوري چـې د خـبرو

د میز پـه اخـر کـې یـو بـل ځـوک هـم شـته. مایـوروف د اخرمییـف ځخـه پوښتنه کـوي:

س: این دیگر کیست؟

ج: رفیـق - سرهنـگ اوسـادچی مامـور کـې. جـي. بي. او پیوسـته بـا ببرک است. بـا او محتـاط باشـید !! (ص ١٨).

مایـوروف وایـي: شـمار گروهـای مجاهدیـن در اوایل حاکمیت کارمـل بگونه پراگنده در همـه اسـتانها درتکاپو بودند.

شـمار هـر گـروه از١٠٠ تـا ٢٠٠ تـن یـا در برخـی ولایـات از ٥٠٠ تا ٦٠٠ تن در نوسان بود (ص٢٣).

- در نشسـت دفتر سیاسـی در باره گسـیل نیرو های نظامی به افغانسـتان، لوی درستیز اگارکـوف سر سـختانه مخالفـت کـرده بـود بـه ایـن تفصیـل: «مـا همـه خـاور مسلمان را مخالـف خـود خواهیـم سـاخت و در سراسر جهـان خواهیـم باخـت» (ص ٢٧).

د کتاب له پوره مطالعې ځخه را معلومیږي چې د شـوروي وسـله والو پوځونو په استولو کې نظرونه پـه لاندې ډول وو:

- سیاسي بیرو شکمنه وه.

- ټول نظامیان مخالف وو. یوازې دفاع وزیر د اندروپوف سړی و.

- د کې. جي. بي د رئیس (اندروپوف) نقش ټاکونکی و.

مایوروف وایي:

راسـتش، سـوکلوف و اخرمییف را در آغاز کارزار افغانسـتان روی این سـنجش به کابل فرسـتاده بودنـد کـه همـه چیـز طـی چنـد هفتـه و یـا چنـد ماه بـه پایـان خواهـد رسـید. رژیم هـوا دار شـوروی تحکیـم خواهـد کردیـد و اوضـاع در افغانسـتان بـا ثبات خواهـد شـد. مگر واقعیـات نشـان داد کـه افغـان هـا (کسـانیکه مـا آنهـا را شورشـی مـی خواندیم) رفتـه، رفته آغـاز بـه سـازماندهی نیروهـای خـود برای مقاومـت در برابـر رژیم ببـرک کارمل، کردنـد. نبرد

ماها ادامه یافت شمار پادگان های ما رو به افزایش گذاشت. مگر از پیروزی چشمگیر ما خبری نبود (ص ۱۱ و ۱۲).

آه که اندروپوف چه بیهوده به دست پروردگان خود در خارج باور داشت. من بارها به این نکته متقاعد گردیدم - هم در مصر، هم درچکوسلواکیا و نیز اینجا در افغانستان.

مایوروف د لوی درستیز سره یو ځای د شوروي د دفاع وزیر دفتر ته ورځي او هلته نور جنرالان هم ورسره یو ځای کیږي. مایوروف وایي :

- اوستینوف (وزیر دفاع شوروي) با خوشرویی ما را پذیرفت و پرسید: "آیا افغانستان بزودی به جمهوری شانزدهم ما مبدل خواهد گردید یا نه؟ (ص ۴۲).

- **پایله:**

۱- د کې. جي. بي په فکر د خلقیانو لویه گناه دا وه چې د شپاړسم جمهوریت سره سخت، حساس او مخالف وو.

۲- هغه وخت چې شورویانو د افغانستان د تجزیې سوال مطرح کړ، خلقیان مخالف وو.

۳- هغه وخت چې د اردو انحلال خبره را پورته شوه، خلقیان مخالف وو.

په داسې حال کې چې دا پورته مخالفتونه کې. جي. بي. ته د زغملونه و، نو له دې کبله یې د ۱۳۶۸ کال د حوت د شپاړسم تاریخ نظامي تصادم ته زمینه برابره کړه.

اندروپوف (رئیس استخبارات) د مایوروف نه پوښتنې کوي او مایوروف جوابونه ورکوي:

- سوال: خوب، نظر شما در باره جناح ها چه است؟

- جواب: پرچم اکنون نزدیک به ۱۵۰۰ عضو دارد، روی همرفته سران دولت نخبه گان اند و بیشتر در کابل متمرکز اند، در وزارت ها، در کمیته مرکزی و ولایات - در شهرهای بزرگ.

مگر خلق که ۱۳۵۰۰ نیرو دارد شیرازه ارتش را می سازد و ما باید این را در نظر

بگیریم و در محاسبه رعایت کنیم.

اندروپوف : مگر بایست به رشد پرچم مساعدت کنیم.

مایورف : خلق در یگان های ارتش چیرگی عام و تام دارد.

بله پوښتنه.

- سوال: تاثیر شما به رفیق کارمل چگونه است؟

- جواب: دشوار است بتوانم به این پرسش پاسخ دهم...

بله پوښتنه.

- سوال: بانو اناهیتا چه حال دارد؟

- جواب: کمی دست و پاچه شدم... که سخن بر سر چه کسی است.

اندروپوف گفت (با تبسم):

در رگهای این زن خون شاهانه جاری است به او توجه بیشتری داشته باشید... (ص ۴۴ و ۴۵). ختم.

مایوروف د کارمل په باب وایي:

.... ببرک کارمل با بلند کردن دست ها... به سرعت سویم نزدیک شد و به گونه غیر منتظره مرا در آغوش گرفت و گریه سر داد...

- رفیق شوروي... رفیق شوروي...

... و به گریه ادامه داد.

رئیس دولت به نالش ادامه میداد...

"شوروي... شوروي... تواریش...

رفیق ( ) (یعنی نماینده اندروپوف) رو بمن گفت:

او به سوگ تراژیدی در مزارشریف و قندهار نشسته و خیلی اندوه گین است. ببرک کارمل روی خود را دور داد و به سرعت از روی میز شیشه وُدکا (سمیرنوفسکی) را گرفت و

با شتاب آنرا در سه جام بلورین ریخت و با چشمان اشکبار رو به من گفت:

- شوروي... تواریش... و جام را بسوی من پیش کرد.

- بفرمایید... بفرمایید !

حتی به فکرم هم خطور نمیکرد که روزی شاهد چنین صحنه شرم آوری باشم.

... با آنکه میدانستم دست به چه ریسکی میزنم، با صدای رسا رو به رفیق (اوسادچی ) گفتم:

- بدقت هر کلمه مرا ترجمه کن... من تمام مسئولیت را به گردن میگیرم: من ستر جنرال... مایوروف، شما ببرک کارمل را از نوشیدن وُدکا منع میکنم و برین اصرار دارم که شما... از همین کار دست بردارید.

رفیق (اوسادچی) هنوز هم خاموشمانده بود، گواینکه زبانش بسته شده بود. آنگا به آواز بلند تر تکرار کردم:

ترجمه کن ! ور نه همین حالا همه چیز را به رفیق اندروپوف گزارش میدهم.

رفیق (اوسادچی) آغاز به زیر لب گفتن کرد...

... ببرک با دیده های پوزشخواه به چشمانم نگاه کرد و با صدای لرزان گفت:

سپاسیبا... پوژالیستا... سپاسیبا...

و بار دیگر... جام وُدکا را بدست گرفت.

با صدای بلند فریاد زدم: نه !

- بلی... بلی... تشکر...

رفیق (اوسادچی) چای سبز آورد...

به رفیق ( ) دستور دادم... گفته های مرا به دقت ترجمه نماید...

رفیق ببرک کارمل دبیر کل کمیته مرکزی ح. د. خ. ا.، رئیس شورای انقلابی،... شما میدانید که در همه استانها جنگ روان است. کشور در آتش

جنگ می سوزد. هزاران سرباز افغان و شوروی کشته میشوند...

رفیق (اوسادچی) ترجمه میکرد و کارمل سرش را بالا و پایین می آورد... باز هم به شیون ادامه میداد:

شوروی - شوروی،،، - تشکر... - تشکر...

دا ډول صحنه دوام پیدا کوي او ترجمه کیږي او د مسکو د رهبري نومونه اخیستل کیږي، څو څو واره ترجمه کیږي...

- ببرک سرا پا گوش بود و خاموش... در حالیکه به دشواری از صندلی بلند میشد بمن نزدیک شد. در چشمانش اشک گره خورده بود...

- شوروی... شوروی... سپاس گزارم، ممنونم...

و بار دیگر مرا در آغوش گرفت و اندکی آرام شد. ترجمه:

و (کارمل) میگوید «هر آنچه را رفیق بریژنیف، رفیق اندروپوف، رفیق اوستینوف و رفیق گرومیکوف به او توصیه میکنند انجام میدهد».

مایوروف څو واره ببرک کارمل ته ورغلی او هر ځل یې کارمل غیر نورمال لیدلی دی؛ نو ځکه د مایوروف حوصله خلاصیږي... او وایي:

- مگر ببرک به یاوه سرایی ادامه میداد: سپاسگزارم... سپاسگزارم...

- من در زندگی از آدم های ابله، هرزه و "دریا نوش» بدم می آید، دراینجا همه این خصایل در یک آدم جمع شده بود و این آدم پیشوای حزب و رئیس دولت بود. از کاخ با وضع جانکاهی بر آمدم. چه صحنه نا گواری !

مگر چه میتوانستم بکنم (ص ۸۰ تا ۸۴).

بیاهم مایوروف:

- مگر با آمدن سپاهیان شوروی نزدیک به (۶۰۰ ) پزشک کشور را ترک گفتند (ص ۹۵).

- سر نوشت سپاهیان ما و جنگ در افغانستان نه در کابل، نه سفیر، نه

مستشار ارشد نظامی و نـه نمایندگان دیگـر مـا تعین مـی نمودنـد. بـل در گام نخست در مسکو در دفـتر سیاسـی... رقـم زده میشـد (ص ۹٦).

- ببرک کارمـل در گـردون (آسـمان) سیاسـی در اثـر بازیهـای تصادفـی پدیـد نیامـده بـود.

او (کارمـل) دسـت پـروردهٔ یـوری اندروپـوف (رئیـس کـې. جـي. بي) بـود. تصادفی نبود کـه اندروپـوف مصرانـه بـه مـن توصیـه میکـرد کـه مـن از رفیـق کارمـل حمایـت کنـم... (ص ۱۰۵)

- پس از اندکی درنگ گو اینکه متوجه خطای خود شده بود افزود:

کارمل: ما لینینیست هستیم !... و تقریباً با لحن شیا دانه ادامه داد:

- رفیـق بریژنیـف، رفیـق اندروپـوف، رفیـق اوسـتینف و رفیـق گرومیکـوف بـه مـا خواهنـد آموخـت... (ص ۱۱۷).

- آری ! هرچـه کـه اوضـاع بدتـر میشـد، بـرای کارمـل بهتر بود. در کشـور وضـع بحرانی پدید آمـد و بهانـه برای خواسـتن نیروهای بیشـتر شـوروی بدسـت مـی آمـد (ص ۱۲۰).

د شـوروي سـفیر د جنرالانـو سره بحـث کـوي او ټینـګار کـوي چـې افغـاني اردو منحـل شي:

سفیر: این ارتش را باید منحل کرد.

جنرال سامولینکو: چگونه میتوان ارتش افغانستان را منحل کرد؟

سفیر: بسیار ساده. این ارتش خلقی است. در آن ۱۳۵۰۰ افسر خلقی خدمت میکند. سامولینکو گفت:

خوب... شـمار پرچمـی هـا در کشـور ۱۳۰۰ - ۱۵۰۰ بیش نیسـت، بـا ایـن هـم شـما میکوشـید پرچـم را برهمـه چیـز چیـره سـازید...

- بحث سفیر و جنرالان در همین سمت و سو ادامه دارد...

- سفیر با پیروی از دساتیر بالا... مشـی خشـن پرچمی سـازی افغانستان را در پیش

گرفته بود... (ص ١٣٦).

- سفیر بارها میگفت: این ارتش را باید منحل کرد و به جای آن ارتش نوین ساخت. چنانچه در ۱۹۱۷ در روسیه ارتش تزاری را منحل کردیم. من این خطر را درک کردم که پیکار آشتی ناپذیریکه میان سوکولوف، اخرامییف و سفیر شوروی روان بود، بر سر همین موضوع بود و من اندیشه های سوکولوف و اخرمییف را... فانوس راه ساختم و نصب العین خود قرار دادم.

- سفیر شوروی بعوض وزیر خارجه شوروی، دستور های اندروپوف را انجام میداد
- اندروپوف که پرچمی ها را به قدرت رسانیده بود، خواهان پرچمی سازی ارتش بود.

آفریده گار را سپاسگزارم که این بار وزیر دفاع شوروی در نتیجه فشار سوکولوف و اخرمییف، زیر تاثیر اندروپوف نرفت (ص ١٣٦ - ١٣٧).

جنرال مایوروف او جنرال چیریمنیخ د سفیر ملاقات او خبرو ته ورځي چې درې مقامه نور هم (دخارجه وزارت، د کې. جي. بي. او د ح. ک. نماینده گان د سفیر سره یو ځای ناست دي - مایوروف لیکي:

ما نمیتوانستیم این وضع را در سنجش نگریم.

خو د خبرو په ترڅ کې غالمغال جوړېږي او سفیر دوی ټول د ډوډۍ میز ته دعوتوي او وایي: من و آقای مایوروف... در کنگره ٢٦ حزب کمونیست اتحاد شوروی اشتراک خواهیم کرد، ازین رو باید قاطعانه عمل کنیم...

- افغانستان باید به جمهوریت شانزدهم شوروی مبدل شود و همه چیز در این راه پیش میرود.

جنرال چیریمنیخ گفت: فکرت احمد جانوویچ، با شما موافق نیستم.

- سفیر با پا فشاری گفت: در هر صورت ما پیروز می شویم !... و باز هم در باره... در باره رفیق بریژنف...

- ... آخر اکنون اشکارا دیده میشود که:

تراژیدی افغانستان یک تراژیدی بی پایان است - با متن بد، پرسوناژ بد و بازیگران

بد. و من (مایوروف) در این تراژیدی - یکی از پر کارترین و شاید یکی از نامناسب ترین بازیگران... (ص ۱۵۱).

- مایوروف د هرات جګړه خطرناکه او په تفصیل سره بیان کړېده او داسې تمثیل یې کړی دی چې ګویا دغه جنګ استعماري جنګ نه دی ځکه په استعماري جنګ کې نظامیان په آزادو لاسونو عمل کوي. د نوموړی عقیدې او شخصیت ته احترام! زموږ له اردو سره یې په رښتیا ډېر کومکونه کړي دي. خو دغه جنګ چې د شوروی کې. جي. بي له خوا پر موږ تپل شوی و یقیناً یو استعماري جنګ و چې خپله جنرال مایوروف دغه تراژیدي بی پایانه بللې ده.

د پورتنیو لیکنو په اړوند محمد هاشم نوري له خپلو ډېرو بدو خاطرو څخه ما (لیکوال) ته داسې بیانوي:

د ۱۳۵۸ د جدي له شپږم نه وروسته د ۱۳۵۹ کال په پسرلي کې دشوروي سفیر د ملاقات لپاره وغوښتم...

زه په دې دعوت پوه نه شوم؛ خو ملاقات وشو، سفیر سوالونه طرح کړل:

سفیر: ته ولې ببرک کارمل ته نه ورځې؟

نوري: زه ډېر کوچنی سړی یم، خو کارمل د هېواد رهبردی...

سفیر: نه خیر ! ته یو حزبي فیګور یې...




نوري: آیا ضرورده چې زه د کارمل طلایي وخت ضایع کړم؟

سفیر: بلې... ضرور ده...

ما ډېرې بهانې وکړې چې:

نوري : زه کارمل نشم پیدا کولی...

سفیر پر میز ایښې د تلیفون ګوشی واخیستله چې تمثیل یې راته وکړ، چې کارمل ته دا ډول تلیفون وکړه، د نوموړي دروازې همیشه ستا پر مخ خلاصې دي. پوه شوم چې سفیر خورا جدي دی...

بیا سفیر د خلق او پرچم په خبرو شروع وکړه:

- پرچمیان کمونیستان دی (کم و تم).

- تره کی، امین، خلقیان نشنالستان، شووینستان او فاشیستان دي. ما لاس پورته کړ د خبرو اجازه مې وغوښته، خو سفیر په قاطعیت را ته وویل: - نن ستا د خبرو وخت نه دی، ته باید له کارمل سره وګورې، یوه هفته وروسته بیا دلته زه اوته ملاقات لرو بیا به ستا د خبرو وار وي...

زه (نوري) خاموش وم او د شوروي د میګ ۲۱ ډوله الوتکو پروازونه چې د جدي په شپږم تاریخ یې د کابل د پاسه کړي وو د خیال په پرده کې سترګو ته راتلل - په خپلو پنځو حواسو مې اشغال احساساوه.

... مګر په وروسته کې مو مناسبات دومره خراب شول، چې زما مشاور یې سفارت ته غوښتی و او صریحاً یې ورته ویلي وو چې موږ (روسان) دغه څارنوال وژنو ! او معاون یې باید څارنوال شي هغه کلان دی (اشرافی) کلان!

## د مشاور قصه اوږده ده

هاشم نوري زیاتوي:

زه (نوري) په چهارصد بستر روغتون کې بستر وم. یوه ورځ د سیاسي ریاست ترجمان، چې ایګر نومېده، پوښتنې ته راغی. تقریباً یو ساعت را سره کښېناست. کله چې ټول ملګري له اتاق څخه ووتل، ترجمان ایګر د اتاق په منځ کې ودرېده او په کابل کې د شوروي نظامي قرارګاه له خوا یې اخطار را ته اعلان کړ. په ما یې ډېر بد تاثیر وکړ... ترجمان وویل: ممکن پدې کوټه کې یې څه شی نصب کړی وی. زه نا آرام وم د ریاست سیاسي مشاور جنرال کلتاشوف ته مې زنګ وواهه، نوموړی ماخستن ناوخته روغتون ته راغی... ما ورته وویل افغانستان مستقل هېواد دی که نه؟ جنرال مسکی شو... بلی هو... ما وویل: نو ولې اخطار را کول کیږي. دا خوزموږ د خپلواکۍ زاوال ښیي...

ده (جنرال) د سبا لپاره د مارشال سوکولوف ملاقات راته واخیست... کله چې چهل ستون ته ورغلم لومړی مارشال اخرمییف ور وغوښتم د یوه کوچني مېز په دوه طرفه سره

کېناستو. ما ورته ووېل افغانستان مستقل هېواد دی که نه؟

خبرې مو ډېرې سره گرمې شوې، دی له موضوع څخه خبر و، بیا مې تکرار د افغانستان د استقلال خبره په لوړ آواز ورته وکړه او مېز مې په شدت سره په سوک وواهه د مېز له وهلو سره سم جنرال فوراً پاڅېده او د دروازې په خوا روان شو. د چهل ستون د ماڼۍ اتاقونه لوړ او ډېر اوږده دي. جنرال لا دروازې ته نه و رسېدلی زه په هوش راغلم؛ ځکه اخرامییف دومره کوچنی سړی نه و چې زه د ده په مخ کې په قهر سره مېز ووهم.

او بل دا چې دی کاملاً د اردو د انحلال مخالف و.

نو ما ورپسې غږ وکړ: لکه چې خفه مې کړې؟ ده بیرته مخ راواړاوه ویې ویل: زه مارشال ته خبر ورکوم چې ملگری... راغلی دی.

تقریباً لس دقیقې وروسته اخرامییف بیرته راغی او راته وی ویل: راځه چې سوکولوف منتظر دی.

کله چې له دواړو سره مخامخ شوم بیا مې ورته ووېل:

زه عقیده لرم چې تاسو د انترناسیولیستي وظیفې لپاره افغانستان ته راغلي یاست، کله چې دا وظیفه خلاصه شي بیرته به خپل وطن ته ولاړ شئ...

دوی دواړو هوکړه وکړه، خو اخرمییف ووېل چې ستا په وجود کې فراکسیون شکل نیسي.

ما (هـ. نوري) ورته ووېل: څه شی چې ما په روغتون کې ویلي دي ټول د دغه مېز په مخ درته وایم.

اخرمییف: بلې، خو علني فراکسیون دی، پټ نه دی.

ما ووېل: ولې رفیع او گل آقا (رئیس سیاسي) ته اخطار نه ورکوئ؟

مارشال سوکولوف خپل ځان کینې خواته کوږ کړ او له جیب څخه یې دستمال را وویست په عین حال کې یې راته ووېل:

ملگریه: موږ رفیع او گل آقا دواړه راغوښتي وو او دلته مو توره او سپینه ور سره کوله. خو رفیع دا ډول دستمال را وویست او خپلې خولې یې پاکولې.

ملګریه: باور وکړه چې موږ له پرچمیانو سره بل ډول غبرګون لرو - داسې نه لکه له تا سره.

جنرال مایوروف د هرات جګړه د ټولو جزیاتو سره په خپل کتاب کې (په افغانستان کې رښتیا څه تېرېدل؟) کې تشریح کړې ده. زه به یوه ډېره لنډه تبصره پرې وکړم چې اوږده نشي.

هرات ګویا د مجاهدینو په لاس کې و او جنرالان ټول میتودونه په کار اچوي چې هرات په لږو تلفاتو بیرته آزاد کړي.

جنرال مایوروف داسې لیکلي:

جنرال پتروخالکو مې ولیده. هغه ډېر احساساتي برېښېده.

-پتروخالکو: وبښئ... خورا مهمه خبره ده.

-مایوروف: ووایاست.

-پتروخالکو: نجیب او خاد په هرات کې لیونتوب پیل کړی دی اعدام روان دی.

-مایوروف: اسیران؟

-پتروخالکو: هو صاحب، بې پوښتنې او بې محاکمې.

زه خبروم چې د طب ډاکټر نجیب الله ډېر سخت زړی سړی دی، خو له دې سره سره مې تصور هم نشوای کولی چې زموږ د تبلیغاتي پاڼو له خپرېدو وروسته چې په کې ویل شوي وو که غلیم تسلیم شي ښښل کیږي، بیا هم د هغوی د اعدام امر وشي دا نو سوچه ځناورتوب و.

- ما (مایوروف) غوښتل چې د اعدامونو مخه ونیسم، خو نجیب راته وویل چې دا په خپله د ببرک کارمل کار دی.

ستر جنرال صاحب! هلته بوږنوونکی حالت دی...

پتروخالکو پر څوکۍ ورکوږ شو په داسې حال کې چې ژبه یې بندیده ویې ویل:

- او په جوماتونو کې ملایانو الله ته د رحم لپاره لاسونه په دُعا هسک کړي دي.

دا یې وویل او بیا یې مخ په دواړو لاسونو ونغښت او یوه لنډه کې، نیولې کړیکه

یې له خولې ووته...

-مایوروف: جنراله! چوپ شه، حوصله دې پر ځای کړه. هله چیریومنیخ را خبر کړه او بیا مې د تلیفون غوږی په لاس کې ورکړه:

-مایوروف: ژرشه خبروه یې !

-مایوروف: ای ببرکه، ببرکه ! اوس څرګنده شوه چې ته رذیل هم یې او ټګ هم. موږ خو ژمنه کړې وه چې تسلیم شویو اسیرانو ته به څه نه وایو. ښه یې ویلي چې کمزوری سړی هم بې رحمه وي او هم چلباز.

جنرال چیریمنیخ، - او پیتروخالکو د تلفون غوږی ماته راکړه.

-مایوروف: جنرال صاحب چیریمنیخ له سلامه وروسته کلام دا دی چې غوږ راته ښه ټینګ ونیسه... نجیب د کارمل په لار ښونه په هرات کې یو مخیز عام وژنه پیل کړې ده.

-چیریمنیخ: پوه شوم...

-مایوروف: همدا اوس باید ته، ساموییلینکه او ګل آقا له ژباړونکې پرته ځانونه ارګ ته ورسوئ او د اولتیماتوم په ژبه وغواړئ چې تر... او ما چې ساعت ته وکتل نو پنځلس کمې پنځه بجې وې... تر اتو بجو په هر ډول چې کیږي باید د دغې بې قانونۍ مخه ونیول شي.

-چیریمنیخ: پوه شوم.

-مایوروف: تا او ویکتور (ساموییلینکه) ته د هر ډول څرګندونو امکان شته؛ خو یوه خبره، چې باید په پام کې یې ونیسئ، دا ده چې له دغه رذیل... سره له فزیکې ټکر نه ځان وساتئ.

چیریمنیخ ځواب راکړ: صاحب، هر څه به اجراشي.

-مایوروف: د سهار له اوو - اتو بجو نه مخکې باید ما ته بیرته معلومات راکړئ.

-چیریمنیخ: صاحب همداسې به وکړم.

او پیتروخالکو ته مې امر ورکړ:

-مايوروف: هرات ته ځان ورسوئ او د نجيب مخه ونيسی. له هغه سره ډېر سخت چلند وکړئ او (د لاربښونو د سرته رسولو) غوښتنه ترې وکړئ.

- زما له خولې نه بی اختياره را ووتل:

مايوروف: دا ټول چې د سپي زامن دي، په تېره بيا دا... نجيب !

پيتروخالکوف ولاړ.

ما (مايوروف) خپله خپل ځان ته ويل: ستر جنراله آرام شه، آرام شه تا خو ډېر رذيلان او له زړونو تش وګړي ليدلي دي خو داسې!...

ژر به رڼا شي، کندهارته الوتنه په مخکې ده.

سهار ايلمار برونينيکس خبر راکړ چې نجيب لا تر اوسه په جوماتونو کې د پټوشويو مجاهدينو په اړه د جماتونو له ملا امامانو سره کومې موافقې ته نه دی رسيدلی، خود برونينيکس په وينا وژنه لا تر اوسهدوام لري.

ما له ځانه سره فکر وکړ: مانا دا چې چيريمنيخ ارګ ته په ورتګ بريالی شوی نه دی. او ايلمار خبره اوږده کړه:

-ايلمار: په ښارکې اداره بيا ټينګه شوې: ګزمې روانې دي، والي آرام دی او سربلند او جنرال بابينسکې په اداري زون کې خپل - ځايونه نيولي دي.

کندهار د الوتکې د ورتګ خبره ومنله.

برونينيکس د تليفون غوږی پورته کړه، په غوږ پورې يې ونښلوله او ماته يې وويل:

- چيريومنيخ دی.

- ستر جنرال صاحب بی پردې (له شفره پرته) غږيږم. که اورې مې اطمينان. د چيريومنيخ غږ له ورايه راته، جوت و:

- مايوروف: پوه شوم.

-چيريومنيخ : زه، ملګری (اوسادچې) او چيچکې هغه ته ورغلو. اطمينان.

-مايوروف: هغه يوازې و؟ اطمينان.

.چیریومنیخ: له هغه سره هغه ښځه وه خو (اوسادچې) نه وو. اطمینان.

.مایوروف: غبرگون (عکس العمل) یې څه و.اطمینان

.چیریومنیخ: په پیل کې یوه هنگامه وه، خو وروسته دواړو ځانونه را کابوکړل هغه آن لا ځان زړور - زړورکاوه.

.چیریومنیخ: ما له کارمل څخه وپوښتل، ډاکټر نجیب ته تاسې ویلي چې عملیات تر سره کړي؟ هغه ځواب راکړ «هو، د کور ټولې سپړې باید ووژل شي» - او بیا یې په سوک مېز ته گوزار ورکړ. ما ترې وپوښتل: (خو هغه ژمنه چې ټانکیست، ډاکټر او فیلسوف ورکړې وه؟ له هغې نه خو سر وغړول شو). د هغه ځواب دا دی: «ما هغوی ته دا اجازه نه وه ورکړې. دا د لېونیو کور دی !» دی په خونه کې یوې او بلې خواته ځي او هغه (اناهیتا د. ج) چوپه ده، چیچکې (گل آقا. د ج) ژباړه کوي.

- دلته نو ملگري (له چیریمنیخ سره ورغلي بل روس جنرال - د. ج) خبره واخیسته.

- "د ژمنې ملاتړ خو غبرگونو ورونو (نور او زیری د. ج) هم کړی و.

- کارمل ځواب راکړ:" د دی هر څه پړه یوازې پر ما او ډاکټر (نجیب د. ج) ده.

- مایوروف: «الله څه شو، قرآن څه شو او شریعت؟».

- کارمل: «زه اته یست (لا مذهبه) یم او ډاکټر به هرو مرو دغه عملیات بشپړوي "

- ملگری: لعلونه (روسان) به په دې خبر شي او بیا به د شپږویشتمې (۲٦) کنگرې د گډون ټکټ در نه کړي عملیات ودروئ.

- او بیا کارمل اناهیتا ته وکتل او ویې ویل "زه به فکر وکړم» او بیا همدغه «لا مذهبه" خدای ته زارۍ کولې».

- ما او ملگري دواړو پرې زور اچاوه چې«خبره غوڅه کړئ که نو همدا اوس لعلونو (د شوروي رهبرۍ) ته خبر ورکوو».

- کارمل یو ځلې بیا اناهیتا ته وکتل. هغې سپین پوړنی اوچت کړ او نری غوندې یې وخاندل. موږ پوه شو چې خبره غوڅه ده. (ص ۲۷۲ - ص ۲٦۲).

ستر جنرال الکسندر مایوروف په خپل کتاب کې (په افغانستان کې رښتیا څه تېرېدل؟)

د جلال آباد د غم لړلې پېښې په اړوند داسې لیکي:

د فبرورۍ د څوارلسمې ورځې ۱۹۸۱ ز کال په دویمه نیمايي کې د فرقې د کشف کنډک یوولس کسیزه ډله د لومړي بریدمن "ک" تر قوماندې لاندې جلاآباد ته څېرمه په گزمه بوخته و. د ډلې قوماندان پتېیلې وه چې خپل کنډک ته د کبابونو لپاره د پسونو ډالۍ له ځانه سره یوسي. کله چې "ک" او د هغه ډله د یوه ختین کور له دیوال نه د پسونو په لټه ور واوښتل، هلته یې درې ځوانې ښځې، دوه سپین ږیرې سړي او له شپږو تر لسو کلو شپږ یا اووه کوچنیان په نظر ورغلل. یوه واړه ضابط، چې خپل شهرت یې پټولی نه شو، یادونه کړې وه چې پیغلوټې بدې نه دي د واړه ضابط خبرې لکه سپرغۍ په نورو کې هم اور بل کړ، دلته نو واړه ضابط خپل عسکري بالاپوش غورځولی او دیوې ښځې د نیولو په نیت خوځیدلی و.

-واړه ضابط: هلکه مانو وهئ، مانو وهئ (یانی ژر کوئ پیلوی یې)

زموږ انترناسیونالستانو د سپین ږیرو او ماشومانو په وړاندې تر پایه د ښځو پر عزت تېری کړی و دا تیری دوه ساعته روان و. ماشومانو، چې یوه گوټ ته خلاص شوي وو، په ژړا او نارو له میندو سره د مرستې هڅې کولې. سپین ږیرې چې لړزېدل خدای ته زارۍ پیل کړې ویل چې رحم پرې وکړي او ویې ژغوري.

وروسته واړه ضابط امر کړی و: "فَیر" لومړی یې هغه ښخه وویشته چې همدا لږه شیبه وړاندې یې پر عزت تیری شوی و. وروسته یې نور ټول هم وویشتل. وروسته یې د زغره وال گاډي د تیلو له ټانکۍ نه تیل را اخستي په مړو یې شیندلي، د پاسه یې پرې کالي، زړې لتپاو د کلیوال بېوزلي کور کټونه، لمڅي او پوزي غورځولي او اور یې ور اچولی دی. د ختین کور غولی سرو لمبو را نغښتی و.

"ک" او ډلې یې بیا هم څو پسونه خپل کنډک ته ور سره بیولي وو چې گواکې کلیوالو د شوروي د ورځې ډالۍ ور استولې ده. یوولس واړه څاروي یې د جگړه ییز گاډي مخ ته له ځانه سره په مخه کړي وو.

سمویلینکه زموږ پام بلې خبرې ته را واړاوه:

-سمویلینکه : څه کرغېړنه شمېره ده: یوولس وژل شوي، یوولس تیري کونکې او یوولس پسونه...

مایوروف: وړاندې څه پېښ شوي وو؟

د یوې وژل شوې ښځې یو دوولس کلن ماشوم ورور چې په یوه گوټ کې پټ و او دا هر څه یې په خپلو سترگو لیدلي وو، ژوندی پاتې شو. همده هغه برید گر پېژندلي وو.

موږ د څه مودې لپاره چوپ پاتې شوو او د نکل له اورېدو وروسته مو خپله ساه جوړه کړه. پر سر مې تیارو فکرونو زور راوړ، د بېگناه وژل شویو فکرونه، زموږ پر مرستو د باور وژلو فکرونه (که څه هم خدای پوهېږي چې دا باور څومره غښتلی و) او په ناولتوب کې زموږ د پوځي حیثیت د ډوبولو فکرونه. هو څرگنده ده چې له دې خبرو وروسته د سپین ږیري جنرال په سر کې نور څه فکرونه را ټوکېدلی شي.

سامویلینکه خبره پسې اوږده کړه:

- "ک" او واړه ضابط په هر څه اعتراف وکړ ټوله ډله نیول شوې او پلټنې ترې روانې دي.

- یانې دا چې ببرک مسکو ته له الوتلو مخکې له دې هر څه خبر شوی و .

برونینیکس په ټینگار سره وویل:

- او تابییف هم. ملگري "اوسادچی" زما تر مخه هغه ته خبر ورکړ.

ما په قهرجن لوړ غږ وویل:

- او پر هوایي ډگر یې ځان غلی ونیوه.

سامویلینکه په غړومبا وویل:

ټول له موږ نه دا خبره پټوي.

پنځه کمې نهه بجې له ډگروال کارپوف سره یو ځای چې دواړو د کتني پر رسمیت دلا زور اچولو لپاره پوځي کالي (یونیفورم) اغوستي و د حکومت د مشر د سکرتر دفتر ته ننوتو. دلته ناڅاپه له سپولنیکوف او نجیب سره مخامخ شو چې د کشتمند له دفتره را

ووتـل. یـو بـل تـه مـو سـره غونډې سـترګي مشي وويلـه. يعني بې له دې چې یو ټکی وواییو هسې لاسونه مـو سره ورکـړل. د نجیب پـه غونـډه مونډه څیـره کـې د هیڅ ډول احساساتو نښـه نه وه، خو د سـپولنیکوف پر څېرې د مکر سـپکونکې موسـکا (نیشـخند) سر ګردانه وه. دواړه د حکومـت د رئیـس د سـکرتر لـه خونـې پـه دومـره بيـړه ووتل چې کارپوف تر شا ورغبړ کـړ "کرغبړنو".

د دې لپـاره چـې د حالاتـو د ارزونـې لپـاره څـو ثانيـې وخـت پـه لاس را غلـی وي، له کشـتمند نـه مـې هیلـه وکـړه هغـه څه چـې ورته (له مـوږ مخکې) ویل شـوي بیا تکـرار کړي. ګـورم چـې هغـه زمـا لومه وپېژندلـه، پر پراخ تندي یې تیاره خپره شـوه او د تورو سـترګو پر چار پېریـې د ګنځـو جـال وغوړېـد. هغه پـر ځان کنـترول بیامونده او ځکـه یې په خورا دقت، بې بیـړې، پـه داسـې حـال کې چې ټکـی - ټکی یـې جـلا کاوه وویل:

- د خـاد رئیـس نجیـب او جنـرال سـپولنیکوف همـدا لږ شـېبه وړانـدې خبر راکړ چې: دا جنایـت پـه بدلـو جامـو کې غلیم پـه خپله کـړی دی.

ما ته د سپولنیکوف د سپکاوي موسکا را یاده شوه.

دا هیڅ امـکان نـه لـري، - کشـتمند دا وویـل او بیا یې زما خواته د مکر له کتنې وروسته د هـر څـه د بیا پلټنې اړتیا تـه ګوته ونیوله.

-مایـوروف: نـن بـه همـدا کار وکـړو. هیله کوم چې خپل یو مرسـتیال هم د کمیسیون د غـړي په توګـه و ګمارئ.

له دې وروسـته مې اوږده شـېبه د شـوې پېښـې له امله نا مفهومه ښه ښښنه وغوښتله، ګواکـې دا چـې جګـړه ده او جګـړه خپلـه غم لړلې بیه لـري خو دا ټولې خـبرې قانع کونکې نه برېښـېدې... کشـتمند پـه چوپـه خوله هر څـه اورېـدل. هغه زما پـر حالت پوهېـده. خو هیڅ مرسـته یـې نـه شـوای کولی. زمـا په ویې پانګـه کې د تحقیروونکې ښښـنې غوښـتنې د اړوندو ټکـو زیرمـه پـای تـه ورسـېده. احسـاس یـې کاوه چې پـر تندي او شـا مې خولې بهېږي؛ خو هغـه آرام دی. څـوک پوهېږي ښـایې لـه دې نـه یې چې ما په دغسـې یوه حالـت کې وینې، خوند اخیسته.

مـا احسـاس کـړه چـې د شرم پیالـه مـې تـر پایه څښـلې او ځکه مې نـو پـه آرام او ډاډه زړه د هغـو دفاعـې اقداماتو ماهیت کشـتمند تـه په ډاګه کړ چې د الوګولـو د مخنیوې لپاره په

هېواد کې پلې کېدونکې دي.

د حکومت رئیس سلطان علی کشتمند موافقه وکړه:

- ښه ده.

ښتانه له شریعت پرته د "پښتونوالي" یو دود هم لري، له هغه نه د سر غړونې سزا مرگ دی. نجیبه ته خو پښتون یې تا څنگه پښتونولي پرېښوده؟ او ماکسیموف؟...

هر څه روان دي، هر شی بدلیږي... او بدلیږي خلک...

- واړه ضابط او لومړي بریدمن "ک" پر خپلو جنایتونو اعتراف کړی دی، پاتې کسانو هم اعتراف کړی دی. ساموېلینکه خپلې خبرې په دې جمله پای ته ورسولې.

کشتمند غلی دی. تکاچ په لوړ غږ پیاله په نعلبکی وهي. چیریمنیخ ترینگلی دی. بابا جان او گل آقا شونډې چیچې، وکیل په ډار او زارۍ کشتمند ته گوري.

وروسته ساموېلینکه د شوې پیښې له امله زموږ له خوا خواشینې وړاندې کړه او بښنه یې وغوښته.

کشتمند چې تر دغې شیبې چوپ ناست و، شونډې یې پرانستې او د هغه خبرې زموږ ټولو له انتظاره لرې وې. د حکومت رئیس د دې پر ځای چې زموږ بښنه ومني، سره له دې چې ملکي وگړو ته زموږ له خوا شوي سپکاوي ته یې بد وویل، د پړې ډېره برخه یې پخپله پر افغانانو واچوله گواکې دا چې افغانانو پخپله لکه ځناور بې نظمه دي او له همدې امله یې دې ته لاره هواره کړې چې دغسې چلند ور سره وشي. اوس هغه له دې امله له موږ نه بښنه غواړي.

ښایي کشتمند خپلې خبرې له وړاندې نه وې سنجولې - د هغه څرگندونو هم موږ د شرم په ډنډ کې غوپه کړو. موږ ځانونه ځپل شوي بلل او له شرمه تک سره شوي وو. موږ د ختیځ اخلاقي درس واورېده.

... د جنایت کونکو غدۍ محاکمه شوه ځینو ته یې د مرگ سزا واورول شوه یو شمېر نور یې پر اوږده زندان محکوم شول.

(ص ۳۳۴، ۳۳۵ ۳۳٦، ۳۴۷، ۳۵۴)

# شپږم څپرکی

## د افغانستان خونړۍ تراژيدي د روسي تجاوز محصول دی

د دې لپاره چې يو څه دغه عنوان ته ورننږدې شو، لازمه ده چې د جيوپوليتيک د مفهموم سره(که سرسري هم وي) اشنايي پيدا کړو.

- جيوپوليتيک څه شی دی؟

- او ولې بايد جيوپوليتيک وپيژنو؟

له بهرنۍ سرچينې څخه:

سياست لـه پخوا زمانـو څخـه را پـدې خـوا باالمثل هدفونـه تعقيبـوي، نـوې پيړۍ د دولتـي فعالينـو نومونـه عـوض کـوي او پـه عيـن حـال کـې د هېوادونـو سرحـدات او امپراتـورۍ تغيـر مومـي، پـه ټولنيزنظـام کـې تغيـرات راځـي، نـوي قهرمانـان، ولسـونه د نويـو حوادثـو او اجرأتـو پـه لـوري سـوقوي، خانـداني حاکميتونـه پـه نـورو حاکميتونـو بدليږي، ځينـې ښـارونه لـه منځـه ځـي او نـوي ښـارونه منځ تـه راځـي، دولتـي نښـانونه، بيرغونـه، يونيفورمونـه، او سـمبولونه تغير کـوي، نـوي اسـعار چاپيـږي، قـوي اقتصادونـه ويرانيـږي، نظامـي مناقشـات او تحـرکات سر را پورتـه کـوي.

ټول دغـه حـوادث او تغيـرات تدريجـاً پـه تيـرو زمانو پـورې اړه لريـاو د راتلونکو سـختو جنگونو لپاره د تمسک (دليـل) پـه توگـه بحثونو تـه وړانـدې کيږي.

اما د دې ټولو تغيراتو سره د هر دولتي شخصيت، هر هېواد، هرې لويې وچې هدفونه په هر وخت کې نه بدلېدونکې پاتې کيږي.

په دغو هدفونو پوهېدل او ورته لاس رسی پيدا کول هغه حياتي مسئله د چې سياست مداران بايد د نوي نسل زړونه او عقلونه تسخير کړي.

د پورتنيو دلايلو پر بنا بايد تاريخ مطالعه شي، ځکه د پنځه سوه کلونو پدې خوا د پورتنيو هدفونو لپاره، مبارزې نه تنها توقف نه دی کړی، بلکې لا نو يې هم شدت پيدا کړی دی.

د نړيوال سياست انکار نه منونکی حقيقت دا دی چې د منابعو لاس ته راوړل او د هغو د کنترول لپاره جنګونه دوام پيدا کوي. هغه څه چې دموکراسي يا بشري حقوق يا متقابله همکاري يا مصالحه نوميږي، د سولې او اوربند نه منونکو او پرلپسې جګړو پرته بل څه نه دي، يوازې شکلونه، شيوه او ميتودونه فرق کوي.

زموږ په خاورينه کره (ځمکه) کې ځينې ګروپونه د شطرنج په دې لوبه کې داسې سر ګرم دي چې د حملې او عقب نشيني په زرهاوو مرحلې يې تېرې کړي او بيا هم په تازه مانورو لاس پورې کوي.

د ناپليون بناپارت په دوران کې شپږ نړيوالقدرتونه لکه: روسيه، انګلستان، فرانسه، اطريش، هنګري او ترکيه د دې شطرنج په لوبه کې مصروف وو.

د هټلر له سرکوب څخه وروسته يوازې دوه نړيوال قدرتونه - اتحاد شوروي او (امريکا - انګليس) يو د بل په مقابل کې واقع شول.

څو لسيزې وروسته چين هم د مستقلو بازيګرانو په رديف کې شامل شو.

په اوسني عصر کې دا لاندې هېوادونه د شطرنج پدې لوبه کې شامل دي:

د امريکا متحده ايالات – انګليس – يوروپ (آلمان او فرانسه په راس کې) – روسيه او چين.

د شطرنج د تختې لوبه موږ ته امکان راکوي چې د سیاست ماهیت په ښه توګه درک او تشخیص کړو. د شطرنج کلاسیکه تخته په خپل تصور کې ترسیم کړئ چې سپینې او تورې دانې لرې، آیا ممکنه ده چې تورې او سپینې دانې سره سوله وکړي او د شطرنج له تختې څخه مشترکاً او مساوي ګټه واخلي؟ نه خیر دا به ممکن کار نه وي، ځکه د سپینو او تورو دانو سوله بیزحضور د شطرنج پر تخته باندې د لوبې له اصولو سره په ټکر کې ده، که څلور یا پنځه رنګونه (قدرتونه) نور هم زیات شي آیا ممکنه ده چې دا دشطرنج تخته په سوله ییز ډول پخپل منځ کې د نفوذ د سکتورونو په توګه تقسیم کړي؟

نه ! د سلګونو کلونو تجربو ثابته کړې ده چې دا مختلف قدرتونه به یو د بل سره ایتلاف کوي، بیا به نور تحریکات او مناقشات جوړوي، وروسته به نزاع او جنګونه سره کوي بیا به د اوضاع او احوال سره سم د سولې تړونونه بې له اجرایي ضمانت څخه سره امضا کوي. دا ډول اجراات به د بشر په ژوند کې سلګونه کاله دوام ولري بیا به د نورو نوبتي جنګونو لپاره بهانې لټوي...

په هر حال د سپینو او تورو دانو تر منځ د سولې الترناتیف شته او هغه عبارت دی له:

له ښکېلو اړخونو څخه د یوه لوري له قید او شرط څخه تسلمېدل دي؛ لکه د جینوا توافقات چې محترم ډاکتر نجیب الله د ګرباچوف په دکتې له تاشکند څخه خپل خارجه وزیر (وکیل) ته داسې هدایت ورکوي:

دکتور نجیب الله: رفیق وکیل ! سند دیورند را امضا کن ! !

دغه مطلب له (از برګهٔ فسبوک آقای آریانفر) اخیستل شوی چې د ډاکتر نجیب الله په خندني عکس هم ښکلی کړای شوی، چې وروسته به وربانديې خبرې وکړو.

اوس بېرته د شطرنج د تختې لوبې ته را ګرځو: جیوپولیتیک دوه مفهومه احتوا کوي: سیاست او جغرافیه.

پدې اخرو کې د تاریخ مفهوم هم ور اضافه شوی دی، پدې ترتیب سره:

جیوپولیتیک مساوي دی په سیاست - تاریخ - جغرافیه.

د دې مسئلې اهمیت دا دی چې - کـه موږ د نړیـوال سیاست اصـول او د همدې برخې تاریخ څخـه بـې خبره اوسـو نـو اصـلاً بریاممکنـه نـه ده او نـه بـه وي. مثلاً کـه سکېټ (د یخ ځانګړې لوبـه) مـو زده نـه وی نـو د یخ پـه مخ د هاکي پـه بازۍ (سپورټ) کـې شرکت بـې مفهومـه دی. د جیوپولیتیـک او تاریـخ پوهـه هغـه تاریکـې زاویـې چې د اهـل سیاسـت لپـاره لازمـې دي، روښـانه کـوي. هغـه سیاسـتوال چـې د مختلفـو عواملو لـه کبلـه دغـه وظیفـه نـشي اجـرا کولـی او د توهـم او تخیـل پـه حلقـه کـې اسیر وي د جیوپولیتیـک پوهـې تـه ډېـر ضرورت لـري. د نـړۍ تاریـخ مـوږ تـه دا لانـدې مطالب را زده کـوي:

۱- د هـر هېـواد سیاسـت د خپلـو ګټـو لپـاره د اجـرا وړ دی نـه د پردیـو د ګټـو لـه پـاره.

۲- نظامـي ضعـف او نـا تـواني هیڅکلـه د امنیـت او سـولې ضامـن او وثیقـه نـه و، نـه دی او نـه بـه وي، بلکـې برعکـس د باالقـوه تجاوزګرانـو لپـاره پـه زړه پورې وسـیله او فاکتـور و، دی او وی بـه.

۳- که غواړو چې استقلال، سوله او امنیت ولرو باید قوي او نیرومند واوسو.

د سلګونو کلونو په جریان کې سیاستوالو دا لاندې مفاهیم لمس کړې دي:

۱ – علی القاعده منابع محدود دي.

۲ – کـه موجـودې منابـع، سـپین بازیګـران (دانـې) کنـترول نـه کـړي نـو دا منابـع د تـورو بازیګرانـو پـه لاس کـې لویـږي.

۳ – د هـر بازیګـر وظیفـه ده چـې خپلـې منابـع تـر خپـل کنـترول لانـدې وسـاتي، پـه عیـن حـال کـې بایـد تـلاش وکـړې چـې د نـورو (بـل چـا) منابـع تـر کنـترول لانـدی راولي.

۴ – داسـې جغرافیایـې منطقـي موجـودې دي چـې د پورتنیـو اهدافـو لپـاره کلیـدي اهمیـت لـري. د جیوپولیتیـک د علـم جزیـات زده کـول چـې د فاکولتـې پـه پروګـرام کـې شـامل وي، لازم نـه ګڼـل کیـږي...

بیا هم جیوپولیتیک ټولو سیاسي مسایلو او دولتي پراکتیک ته ځواب نه وایي، خو ممکنه ده چې د دې علم په واسطه د بازي قواعد زده شي.

## د جیوپولیتیک رقابتي عواقبو ته یو ځغلنده نظر

۱- افغانستان د جیوپولیتیک رقابتونو قرباني دی.

۲- د جیوپولیتیک رقابتونو په نتیجه کې نوي هېوادونه لکه پاکستان او اسرائیل... منځته راغلي دي او بیا هر یو د سیمې په ژاندارم بدل شوي دي.

۳- د جیوپولوتیک رقابتونو په نتیجه کې د نړۍ لومړۍ جګړه منځته راغله.

۴- د جیوپولوتیک رقابتونو په نتیجه کې د نړۍ دویمه جګړه منځته راغله او داسې نور...

جیوپولیتیک بحث ځکه د مقدمې په توګه ذکر شو چې وروسته راتلونکي بحثونه ورسره تړاو لري..

دا لاندې مفاهیم د جیوپولیتیک بحث سره نه شلېدونکې اړیکې لري:

خپلواکي، ملي حاکمیت، ارضي تمامیت(ځمکنۍ بشپړتیا) او نظامي اشغال هغه مفاهیم دي چې حقوقي او تاریخي ارزښت لري، دا چې وایي "د بشریت تاریخ، د جګړو تاریخ دی" د پورتنیو مفاهیمو څخه سرچینه اخلي.

د ۱۳۵۸ کال له مرغومي نه وروسته، د نظام تر سقوط پورې، موږ استقلال، ملی حاکمیت او ځمکنۍ بشپړتیا له لاسه ورکړي وه چې اوس هم د بل چا په څېره کې دوام لري.

مسلماً زموږ ګوند او وسله وال پوځ غوښتل چې نوموړي ارزښتونه بیرته لاسته راوړي، موږ په خپل سر ټاسري ګوند او وسله وال پوځ حساب کاوه؛ خو د روسانو او شخصاً د نجیب الله له غیر قانوني مقاومت سره مخامخ شو. د دې لپاره چې د موضوع له ابعادو سره آشنایي پیدا کړو، د محمد هاشم نوري د ملاقات جریان ته به یو نظر واچوو.

هاشم نوري وايي: د ۱۳٦٦ کال د سنبلې په لومړۍ هفته کې مې د ستر جنرال ورينيکوف سره، چې د جمهور رئيس مشاور و، ملاقات درلود. دې ملاقات نږدې درې ساعته دوام وکړ. بحث ډېر اوږد و خو دلته به يې مختصر ټکي را واخلم.

ما (نوري) خپل سوال داسې مطرح کړ:

د شوروي اتحاد نظامي قوتونه له افغانستان څخه وځي، تاسو، موږ اپوزيسيون ته لاس تړلې تسليموئ؟ او که لاس او پښې مو راته ازاد پرېږدئ؟

ورينيکوف په جدي لهجه راته وويل:

ته ولې داسې فکر کوې؟ د ده د جدي لهجې په نظر کې نيولو سره مې دا سوال ټوکه وبلله! په داسې حال کې چې چاى، شودې او بسکيټ مو خوړل، بحث دوام درلود.

ما (نوري) وويل: موږ د مستقلې دفاع لپاره تياري نيسو؛ خو هيله لرو چې تاسو موږ ته دوه شرطه مهيا کړئ:

۱ - انتخابات کول.

۲ - ټول رزمي قوتونه (د څارندوى، خاد، گارد، قومي قطعات) په دفاع وزارت کې مدغم کړئ.

د ورينيکوف عکس العمل مې چې وليد نو دريم سوال مې ونه کړ ځکه، ما ورته وويل چې موږ د مستقلې دفاع له پاره تياري نيسو خو محترم ډاکټر صاحب تاسو ته گزارشونه درکوي چې خلقيان کودتا کوي.

وورينيکوف وويل: ما د نجيب سره په دې باره کې خبرې وکړې؛ خو نجيب وايي دا به تُهمت وي.

مختصراً د دريم سوال په باره کې: زموږ ملگرو د يوې غير مرئي جبهې د اساسگزارې تصميم درلود چې يو تعداد گوندي ملگري حاضر و ترخو ملي جامې واغوندي او د اپوزيسيون په خبر په ولاياتو او کليو کې ژوند وکړي - څرنگه چې نور کوچي په چهار آسياب کې ژوند کاوه لومړۍ ډلې ته د ځاى او امن شرايطو تعهد کړى و او دې لړۍ ته مو دوام ورکاوه خو گوندياتو تضمين غوښت چې له شا څخه

د خاد له خوا ضربه ونه خوري!

که رښتیا ووایم له ورینیکوف څخه خفه را ووتلم ځکه هغه دیپلوماسي را سره وکړه.

دوه ورځې وروسته د شوروي له سفارت څخه راته تیلیفون وشو او د ملاقات غوښتنه یې وکړه، دا ملاقات په دربیم مکرویان کې دده په کور کې جوړ شو. هلته هم خوراکي مواد تیار وو. د هغه سړي د نوم سره بلد نه وم... نوموړي یوازې له مانه پوښتني کولې او ځوابونه یې اورېدل. د پوښتنو له محتوا څخه پوهېدم چې ستر جنرال ورینیکوف، سفارت ته خپل گزارش ورکړی دی، د سفارت د استازي غبرگون هم شدید الحن و، ده وپوښتل: تاسې څنگه خپلواکه دفاع کولای شئ؟

ستاسو امکانات کوم دي؟

ما ځواب ور کړ: چې موږ د هېواد سر تا سري پیاوړی او مجرب گوند لرو او بله دا چې موږ پیاوړي او مجرب وسله وال پوځونه لرو...

او بر سیره پر دې ښه تخنیک او لازم تجهزات لرو. خو تاسو موږ ته دوه امکانه راکړئ

۱ - انتخابات غواړو.

۲ - د ټولو رزمي گروپونو په وزارت دفاع کې ادغام غواړو.

د سفارت نماینده خپل ښی لاس موټی کړ، په داسې حال کې چې غټه (بټه) گوته یې پورته نیولې وه په هوا کې یې یو منحني خط رسم کړ او د منحني خط د رسمولو سره یې یو ځای شپیلاق واهه او د خط په سر کې یې د نجیب الله نوم یاداوه د شپیلاق... معنا یې دا چې د دواړو پیشنهادونو په صورت کې ملگری نجیب الله سرنگون کیږي.

ما ورته وویل: ته کولی شې ماته رښتیا ووایې؟

ده راته وویل:

هو، هر څوک چې د نجیب الله په مخالفت کې سر را پورته کړي، که کابل د وینو په ډنډ هم بدل شي موږ به یې سرکوب کړو... ما ورته وویل چې که زما په خبرو باور نلرې؛ نو نجیب الله ته دوه تختې کاغذ ورکړئ، په یوه تخته کې دې د هغو کسانو

نومونـه ولیکـئ چـې دغه کسان دي په سـفارت خانـو کې د مامورینـو په توګه خارج ته ولاړ شي او پـه بلـه تختـه کـې دي ولیکـي چـې دا کسـان دي پـه کورونـو کـې کښـېني خو هغه چاتـه، چـې پـه کـور کېني،یـو څـه معـاش را کړي څکه چـې ډوډۍ نلـرو ! !

بـا لاخـره مـې ورتـه وویـل: زه د شـپې نـوم نلـرم، مـا خپـل کـور تـه ورسـوه ! بیا یې پـه تـوره ټنـډه کـور تـه را ورسـولم.!

د مثلث بې عیب په ۱۹۸ ص کې د کارمل صاحب برداشت رښتیا دی:

بـاری سـلطان علـی کشـتمند صدراعظـم بـه کارمـل گفتـه بـود کـه چرا با یک حرکت قاطـع، دشـمنان اصلـی خـود یعنـی خلقـی هـا را از سر راه خـود بـر نمیداریـم؟ من بـه این بـاورم کـه تـا یـک خلقـی زنـده است جـای مـا بـاز زنـدان خواهـد بـود.

کارمـل، کشـتمند را بـه صبـر و شـکیبایی دعـوت میکنـد و برایـش میگویـد: خلقی ها ریشـه در آب دارنـد، مردمـان اغلـب روسـتایی و دارای پیوندهـای مسـتحکم قومی اند، نـه سـی هـزار و نـه چهـل هـزار انـد بلکـه هـر کـدام خانـواده و قبیلـه و قومـی بـه دنبال دارنـد، ناگهـان بـا همـه روبـرو شـدن بـه نفـع مـا نیسـت، آنهـا (خلقـی هـا) را باید تدریجی بـه مـواد سـوخت جنـگ و حـوادث مبـدل کـرد. کارمـل بـا تخمیـن خـود گفتـه بود که دسـت کـم یـک جنـگ ۲۵ سـاله در کار اسـت تـا دشـمنان مـا نابـود و خلقـی هـا به تحلیل رونـد...

هـو! د کارمـل برداشـت کامـلاً درسـت دی، خلقیانـو پـه ځانګـړې توګـه د شـوروي قوتونـو لـه وتلـو وروسـته پـه همـدې فکتـور حسـاب او تکیـه کولـه؛ نـو څکـه خلقي وزیران مرحـوم نظـر محمـد خـان او سـید محمـد ګلاب زوی د کارمـل پـه خـلاف، ګرباچوف ته پـه اطمینـان وایـي چـې مـوږ د خپـل وطـن مسـتقلانه دفـاع کـولای شـو، او بیا پـه ۱۳۶۶ کال د سـنبلې پـه لومـړۍ اونـۍ کـې هــ. نـوري د نجیب الله نظامـي مشـاور ورینیکوف ته وای چـې (مـوږ (خلقیـان) د وطـن د مسـتقلې دفـاع لـه پـاره تیـاری نیسـو).

خـو دا خبـره د شـوروي لـوري او پـه ځانګـړي ډول د کـې. جـي. بي منفي عکس العمـل را پـاروي چـې ګویـا خلقیـان ولـې لا ژونـدي دي؟

د ډاکټـر صاحـب نجیـب پـه حاکمیـت کـې وضعیـت ډېـر تغیـر وکـړ.کـې. له هغې

جملې ځخه یو عمده تغیر ملي مصالحه وه چې پنځه کاله یې په دغه شعار سره خپل ولس، گوند، وسله وال پوځ ته بازي ور کوله.

نجیب الله چې د کې. جي. بي په زور د افغانستان رهبر مقرر شو، یو قد رسا، څهار شانه زلمی وو. د ډېرې انرژۍ لرونکی و، د کافي معلوماتو خاوند او چیره دسته نطاق او سازمانده و، زرنگ، نیرنگباز او حاضر جواب سړی و. که د نجیب الله ماغزه د شوروي د کې. جي. بي. په واسطه مینځل شوي نه وی، نوموړی به د افغانستان ډېر مدبر رهبر وی. متأسفانه دغه لیکنې او نورې لیکنې وایي چې د نجیب الله ټول استعداد د کې. جي. بي. په خدمت کې و او شوروي ته ډېر وفادار و؛ خو افغانستان یې له مغزو وتلی و.

داسې فکر ونه شي چې گویا دغو رهبرانو ته دوسیه جوړه او محکوم شي. نورمحمد تره کی، حفیظ الله امین، ببرک کارمل، دکتور نجیب الله دا ټول هر یو د افغانستان رهبران او زموږ حزبي رهبران وو. دوی په تاریخ کې ځای لري، اوس دلته د دوی ځای خالي دی او د ابدیت دنیا ته تللي دي. دوی ته د زړه له کومې د لوی پروردگار ځخه د جنت فردوس هیله کوم؛ خو دوی هم لکه بل هر انسان، مثبت او منفي اړخونه درلودل. دوی هر یوه خپل ژوند سیاسي مبارزې ته وقف کړی و او هر یو په ناوړه شرایطو کې د هېواد د رهبري مقام ته ورسېدل. بیا هم په هر یوه باندې داخلي او خارجي شرایطو اغېز درلود .

خو هغه څه چې موږ لیدلي، اوریدلي او یا مو په کتابو او سایټونو کې لوستي او د بې طرفه، بې غرضه لیکوالانو له خوا بیان شوي دي، د هغه وخت انکار نه منونکي اسناد دي.

هـ . نوري د پرچم د سازمان په هکله داسې وایي:

- د پرچم د سازمان مبارزې تر ډېره حده نمایشي بڼه در لوده، په داسې حال کې چې پرچم ښه امکانات لرل او یقیناً له خارج نه هم ورسره موثره، هر اړخیزه مرسته کېدله، دوی ونشوای کولای چې یو سر تاسري، وطني گوند جوړ کړي.

دی وایي:

موږ په خپله ساحه کې يو ملګرى موظف کړ چې د پرچم غړى شي، دا نظريه په عمل کې پياده شوه چې وروسته، موظف شخص داسې اطلاعات را کول:

- پرچميان عضويت نه راټولوي.

- د پرچم اوليه سازمانونه مياشتنۍ غونډې نلري.

- د پرچميانو حزبي روابط د ميلمستياوو په شکل تر سره کيږي چې پدې ميلمستياوو کې نجونې او هلکان په يو کور کې را ټوليږي. ډوډۍ ، مشروبات او کباب سره نوش جان کړي، خو په حزبي مسئايلو ، خبرې او بحث نه کيږي.

- د پرچم رهبرانو هيڅکله مالي محروميت نه و ګاللى، شايد همدغه به يو له دلايلو څخه وي چې د دوى مبارزې شکلي يا نمايشي بڼه لرله او خلقيانو ته يې د بدو انسانانو خطاب کاوه . . .

- د پرچم رهبري غړو د افغاني فرهنګ خيال نه دى ساتلى، خصوصاً په فاميلي مسئلو کې يې د خارجي فرهنګ کاپي کړې وه - په دې هکله ډېر ژوندي مثالونه شته؛ خو د قلم عفت اجازه نه راکوي. د فرهنګي بيګانګۍ يوه بيلګه د پرچم په اخبار کې د لينين په نوم باندې د درود ويل نشر شوي وو، چې له هغه څخه لويه هنګامه جوړه شوه په اوسنيو نشراتو (کتابونو) کې په دې مسئله ګڼې ليکنې شوې دي.

که څه همد پرچم ځينو رهبري غړو لکه ميراکبر خيبر او سليمان (لايق) له دغې نشريې سره کلک مخالفت ښودلى و، خو د ببرک کارمل په فشار او ټينګار هغه شعر نشر شو.

- د پرچم رهبري غړو د مبارزې له شروع څخه بيا تر پايه په خارجي فکتور تکيه کوله او د خارجي فکتور نقش يې ټاکونکى باله چې کارمل او نجيب الله د حاکميت په دوران کې رښتيا هم خارجي فکتور ټاکونکى رول ولوباوه . . .

- اکثره پرچمي رهبران له خارجي استخباراتو سره تړلي وو. په دې اوسنۍ ليکنه کې دومره اسناد ځاى شوي دي چې ببرک کارمل د مسکو د کې. جي . بي په واسطه د شوروي د کمونيست ګوند له مرکزي کميټې سره مستقيماً تماس لري او

سردار محمد داود خان د ببرک کارمل له دې تماسونو څخه د ځان په ګټه استفاده کوي (افغانستان درمنګنه جیو پو لیتیک ۱۴۷ - ۱۴۸ مخ).

ه . نوري خپله یوه کوچنۍ خاطره داسې بیانوي:

ببرک کارمل د غزني د فرقې د نوي قوماندان فرمان ور کوي

تر دې دمه هلته په فرقه (غزني) کې جعفر سرتېر قوماندان و. ټوله فرقه د کارمل د فرمان په مقابل کې د جنګ ډګر ته راوتلې وه. د د فاع وزارت لوی مشاور (محمیدوف = موګمیدوف) او لوی درستیز صاحب تورن جنرال بابه جان خان دواړه د غزني فرقې ته لیږل شوي وو، تر څو دغه معضله حل کړي. فرقه ډګر ته راوتلې او د دغو جنرالانو سره پنځه ورځې هیڅوک خبرې نه کوي ...

د څوارلسمې فرقې د بغاوت په باره کې د غزني د ولایت والي (سید محمد جوالي صاحب) خپل مشاور ته ویلي وو چې د دې معملې د حل له پاره دې د مسلحو قواوو څارنوال راوغواړي؛ نو د والي مشاور خپلې نظامي قرارګاه ته خبر ورکړی و چې د وسله وال پوځ څارنوال دې غزني ته د دې معضلې د حل له پاره راولیږي.

نظامي قرارګاه یو لیست راولیږه چې د یوولسو کسانو نومونه پکې وو چې ګویا دغو یوولسو تنو خلقیانو د کارمل د فرمان پر ضد، فرقه تحریک کړېده او اوس د مسکو له خوا تصمیم نیول کیږي چې فرقه له ځمکې او له هوا څخه بمبارد شي. په یوولسو کسانو کې د فرقې د سیاسي شعبې مبلِغ لومړی بریدمن داود شاه شامل و چې فامیل یې د مجاهدینو په وسیله تلف شوی و، او کوچنی ورور یې ژوندی پاتې و - نو خپل ورور یې هم له ځان سره راوستلی و او له داود شاه سره یو ځای اوسېده. (نوموړي د کرزي او غني په حاکمیت کې په غزني کې د لوا قوماندان شو، وروسته یې د قندهار د قول اردو قوماندان په توګه وظیفه اجرا کړه، اوسنی رتبه یې تورن جنرالي ده او اوس تقاعد شوی دی.)

نظامي قرارګاه را ته وویل - دغه ستا خلقیان دي !! ...

کله چې د نظامي قرارګاه له مشر سره غزني ته لاړو، د فرقې قرارګاه کاملاً خالي وه. د ټولو مربوطه قطعاتو قوماندانان مو راوغوښتل ...

تولـه ورځ مو جلسه وکړه؛ خو نتيجه صفر او موږ ناکام کابل ته راغلو.

بيـا مـې د دوی مشر تـه وويـل چـې دا د يـوې ورځـې کار نـه دی، کـه ستاسو موافقه وي زه بـه تنهـا لاړ شـم ...

پـه هـر حـال شرايـط سـخت او تريـنگلي وو، زه بيـا غـزني تـه ولاړم. لـه دې نه مخکې د دوی مـشر راتـه وويـل : جعفـر سرتېـر د قومانـدان پـه صفـت نشي پاتې کيدای ...

ما (نوري) ورته وويل زه شرايط لرم :

۱- په فرقه کې به زه د خلقي له موضع خبرې کوم ...

۲- قوماندان خلقي غواړم ...

۳- تر يو کال پورې له فرقې نه څوک بايد د جزا په نامه تبديل نه شي ...

۴- د جعفـر سرتيـر د سرنوشـت پـه بـاب مـې پوښـتنه ځيـنې وکـړه. هغـه راتـه وويـل: هغـه بـه د تحصيـل لپـاره شـوروي تـه وليـږم ...

قيصه ډېره اوږده ده ...

زه غزني ته ولاړم ...

خــو پــه ځلورمــه ورځ مــې لــه کابلــه يــو پنجشـيری خلقــي، چــې وکيـل نومېده، راوغښـت. يـوه رتبـه مـې (جگتـورن) ورتـه ورکـړه او د قومانـدان پـه صفـت مـې اعلان کـړ - پـه دې توگـه دا معضلـه ختمـه شـوه.

لـه هغـه وروسـته کابـل تـه راغلـم، پـه بلـه ورځ ملگـري کارمـل تـه ورغلـم او گـزارش مـې ورکـړ. ملگـري کارمـل داسـې راتـه وويـل:

«در مسـئلۀ فرقـۀ چهـاردۀ غزنـی خـودت خيانـت کـردی ! و رفقـای شـوروي از خـود ضَعـف نشـان دادنـد».

دا چې ما ته يې د خائين خطاب وکړ، ما ته عادي خبره معلومه شوه.

بيا يې اضافه کړه :

"من اردوی سرخ را آورده ام، هر کس که سر بالا کند سرکوبش ميکنم."

دغې وروستۍ خبرې یې زما روح داسې زخمي کړی دی چې تر اوسه لا درد کوي او دا زخم به جوړ هم نشي.

د استاد تاریخ پوه ډاکټر محمد حسن کاکړ پخپل کتاب "د سرطان کودتا د افغانستان د اوږدې بې ثباتۍ پیلامه" کې مستند دلایل ویل شوي دي (ص ۷۰) چې ځینې پرچمي کادرونو د کې. جي. بي. سره مستعار نومونه درلودل.

- له بلې خوا د شوروي (کې. جي. بي.) پښتون ستیزه سیاست د ټولو نورو چالشونو په راس کې واقع و چې د جینوسایډ شیوه یې امریکایانو ته هم په میراث پاتې ده.

شاید زما قلم او لیکنه د باور وړ نه وي، نو راځئ د اتل ځواکمن لیکنه وګورو او ولولو:

## ډاکټر نجیب الله د انصاف په تله کې

## (د افغانستان د نظام په پاشلو کې د ډاکټر نجیب الله رول)

د اتل ځواکمن لیکنه

خپرندوی: ۳۹ بینوا - اداره

### ۱ - د سر خبرې

افغانان اتل پروره هم دي او مظلوم پروره هم. له هغې ورځې چې ډاکټر نجیب الله د طالبانو له خوا بې محاکمې اعدام شو د خلکو همدردي ورسره پیدا شوه، له بلې خوا هغه به تل ویل چې که دی نه وي، نو کور په کور او کوځه په کوځه به جګړه ونښلي ! او د وینو ویالې به روانې شي. دا خبرې اوس مظلومو او بې وزلو خلکوته د دې مانا ورکوي چې دی ګوندې ډېر رسا او پېشبین شخص و، او په هرڅه پوهېده، خو چا موقع ورنکړه. همدا راز بهرنۍ شبکې هم داسې کارونه هڅوي چې له حقایقو پرې د ولس ذهن بلې خواته مشغول کړي. ډېره د حیرانتیا خبره ده چې خلک لا هم د خپل قاتل تصویرونه ځړوي. خو دا مظلومان لا خبر نه دي چې د دغه کور په کور او کوځه په کوځه جنګ اصلي جوړونکی همدغه ډاکټر صاحب دی.

## ۲ - د خاد د دستگاه مشر

ډاکتـر نجیـب الله د خـاد د دسـتگاه مـشر و چـې ۸۵۰۰۰ ځوانـان يـې پخپل امـر وژلي دي. دی پخپلـه غلطـه کمونيسـتي لاره ډېـر ټينـگ و او ډېـر داسـې کسان چـې کمترين جـرم يـې هـم نـه درلـود، خـو يـوازې پـه دې گناه، چـې لمونځ کوي، او يا دمجاهدينـو جعلي کارت ور سره نيـول شـوی دی، لـه اعـدام نـه يـې نـه دي معاف کړي. زه يـو داسـې ځـوک پيژنـم چـې يـوازې يـو زوی يـې درلـود، چـې يـو خاديسـت ورتـه د مجاهدينـو جعلي کارت جـوړ کـړی و، ډاکتـر صاحـب اعـدام کـړ. د دې ځوان پلار چې يـو پانگـوال و، نجيـب تـه يـوه واسـطه پيـدا کـړه، ورغـی او ورتـه يـې ويـل چـې حاضر دی خپـل ټـول جايـداد او پانگـه دولـت تـه وبښـي او د تـل لپـاره لـه گـران هېـواد نـه ووځي، خـو چـې زوی يـې لـه اعدامـه بچ شي، ځکـه همـدا يـو زوی لـري بـل اولاد نـه لـري، له بلـې خـوا زوی يـې تـر اتلسـو کلونـو کـم دی او تـر ټولـو مهمـه دا ده چـې بې گناه دی. خو د نجيـب ځـواب دا و: کلـه چـې زمـا ملگـري مـا تـه د يـو چـا معلومـات راکـړي، چـې هغه اشرار دی، نـو زه بيـا پـه هغـه نـه رحـم کـوم او نـه يـې پـه مجـازات کـې کـوم کمـی راوړم، دوه کالـه وروسـته بـه اتلـس کلـن شي او بيـا بـه يـې اعدام کـړم. ده همدغـه کار وکـړ، دغه شـان ځوانـان يـې پـه زرگونـو اعـدام کـړي دي.

## ۳ - په هرات کې د خلکو ړانده قتلونه.

پـه افغانسـتان کـې د روسي پوځونـو مـشر سـتر جنـرال مايـوروف ډېـر څـه ليکلي دي چـې لنډيـز يـې دا دی: (کلـه چـې مـو پـه هـرات کـې عمليـات کـول، نـو اعلاميـې مو نشر کـړې؛ چـې کـه ځـوک تسـليم شي او يـا ونيـول شي، نـه بـه وژل کيـږي. ډېـر ژر د خپلو کسـانو لـه خـوا خـبر شـوم چـې ډاکتـر نجيـب لگيـا دی، اسـيران وژني. زه پـه منډه ورغلم او دی مـې لـه دې کاره منـع کـړ، خـو ده راتـه وويـل چـې کارمـل ورتـه امـر کـړی دی او هغـه يـې بايـد منـع کـړي. مـا کارمـل تـه تيليفـون وکـړ چـې نجيـب تـه دغسـې امـر ورکړي. هغـه هـم لومـړی وويـل چـې پريـږده چـې مـړه يـې کـړي، خـو چـې مـا پـرې غوسـه وکړه او ورتـه ومـې ويـل چـې زه د يـو ابـر قـدرت د پوځونـو مـشر يـم او د خپـل هېـواد د حيثيت د سـاتلو پـه خاطـر بـه پـه هغـه څـه عمـل وکـړم چـې پـه اعلاميـه کـې مـې ويـلي دي، نو ايلـه کارمـل نجيـب تـه وويـل: بـس شـان اسـت، گـپ رفيـق روسـی را قبـول کـو.

روسي به ویل چې مه یې وژنه خو ډاکټر صاحب پرې رحم نه کاوه.

**۴ - په جلال آباد کې د روسانو جنایت او د ډاکټر صاحب غبرګون.**

همدغه جنرال پخپل کتاب کې بل ځای لیکي: (په جلال آباد کې روسي عسکرو د نشې په حال کې په یو کور تیری کړی وو. په کور کې نر او ښځو ورسره مقاومت کړی وو، خو هغوی بې وسلې وو. عسکرو په پیغلو نجونو تیری کړی و. زه پوهېدم چې دا افغانانو ته تر ټولو ستر ارزښت لري او که زه خپلو عسکرو ته جزا ورنکړم، ممکن د لویو قیامونو سبب شي. ما له کشتمند نه وغوښتل چې خپل یو مرستیال زما له کسانو سره مل کړي، چې د دې ناوړه پیښې څېړنه وکړي. ده هیڅ علاقه ونه ښوده. ما هئیت ولیږه او ثابته شوه چې عسکرو دغه جنایت په رښتیا کړی و. زه بیا کارمل، کشتمند او نجیب ته ورغلم او ورته ومې ویل چې زه خپلو عسکرو ته سخته جزا ورکوم. د دوی پخوانی ځواب دا و چې دا د روسي ملګرو پر ضد د اشرارو توطیه ده، خو دا ځل د کشتمند ځواب دا و: (پروا نداره، همه اش اشرار اس... او د نجیب ځواب بې تفاوتي وه). د یرغلګر پوځ مشر په دې پوهیږي چې افغانانو ته تر ناموس هیڅ شی هم ډېر مهم نه دی، خو ډاکټر صاحب د کشتمند او کارمل په شان و...

**۵ - د ګورباچوف انتخاب.**

د نجیب پیروان دا وایي چې ډاکټر د سولې او روغې - جوړې پلوی و او دغه نوښت یې کړی و. دا پخپله ډاکټر صاحب ډېره ښه تشریح کوله: (کله چې ملګري، ګورباچوف د نوي طرز تفکر پالیسي شروع کړه، نو زه پوه شوم چې دوی نور زموږ سره خپله پالیسي بدلوي او خپل پوځونه له افغانستانه باسي. زر یو هئیت شوروي اتحاد ته ولاړو، ګورباچوف ټولو ته وویل: خپل غم مو وکړئ، زه نور د خپل هېواد زامن ستاسو په هېواد کې نه شم وژلی. کارمل چې تور و، نور هم تور شو او ویې ویل چې که شوروي دوستان خپلې قواوې له افغانستانه وباسي بیا به لس چنده ته اړتیا شي. ګورباچوف ورته وویل: ښه، دا تاسې چې کوم انقلاب عنوانوئ، چې د ولسونو انقلاب دی؟ له دې سره ولسونه نه دي ملګري، په دې وخت کې زه (نجیب) ورمخې ته شوم او ورته ومې ویل: سمه ده تاسو موږ سره خپلو مرستو ته

دوام ورکړئ، زه حاضر يم چې... او هماغه و چې گورباچوف دی انتخاب کړ. داد موضوع ظاهري بڼه ده. تر دې ژوره داده چې روسانو غوښتل له خپلې تيښتې وروسته نظام له داخله وپاشي او عملي روغې - جوړې ته لار آواره نه شي، دا کار د کارمل په وجود کې نه شواى کيداى چې اردو، چې اکثريت يې پښتانه و، منحل کړي؛ نود دې لپاره دا د کې. جي. بي. ستراتيژيکه نقشه وه، چې د ډاکټر صاحب په وجود کې ځان د افغانانو له انتقام نه د تل لپاره بېغمه کړي.

## ۶ - د مليشو جوړول او پياوړي کول.

ډاکټر صاحب چې واک ته ورسېد، له لومړۍ ورځې يې د گلم جمع مليشو پياوړي کولو ته متې راونغښتې او د هېواد درانه او با عزته قومونه يې پرې بې عزته کړل. ده ورځ په ورځ د اقليتونو مليشې پياوړې کولې او منظمې او روزل شوې اردو ته به يې دسيسې جوړولې (که څه هم اردو د خلکو څخه کومه ساتنه نه وه کړې، د دې تمه تر ې کېده چې آخر به د يوه ملي - اسلامي دولت په ولکه کې خپلې اصلي کرښې ته ورسيخه شي). بلاخره يې خبره دې ځاى ته ورسوله چې افغانستان يې د دوستم او نورو پهلوانانو بې سر و پايه مليشو په يو مرکز بدل کړ.

۷ - د تنې او د خپل گوند نورو ملگرو وړانديز ته منفي ځواب او پرې کودتا پلانول.

د دفاع وزير شهنواز تنى، چې نجيب يې په لومړي سر کې د کارمل د مظاهره چيانو پر وړاندې له بې آبي ساتلى و او د ډاکټر صاحب د يو سمت او ولايت سړى و، پرې ځورېده. تنې ډاکټر صاحب ته ښه وړانديز کړى و: (موږ رهبر نه لرو او ته لښکر نه لرې. له بلې خوا روسانو د هېواد سياست قومي کړى او پرچميان تا ته نه وفاداريږي، راځه کلک قول به سره وکړو او يو په بل به باور وکړو. ستا د مصالحې سياست په دغو خاديستي اپراتيفي تکتيکونو نه بريالى کيږي څه موده به کلک مقاومت وکړو او بيا به د مجاهدينو سره په داسې حال صادقانه سوله وکړو چې دوى ته به موږ کمزوري نه ښکارو). خو نجيب د خاد روزل شوى و او په خپل ورورېې هم باور نه کاوه. ده په هغه چا باور کاوه چې روس به ورته ښوده. د دې په بدل کې ډاکټر صاحب ځينې کسان په پيسو او ځينې په ساده گۍ د تنې پر ضد کړل او بيا

یې پرې اقلیت ملیشې ورمارش کړې او اعلان یې وکړ چې تنې کودتا کوله، خو ناکامه مې کړه. روسان نور هم خپل هدف ته نږدې شول، له اردو یې ټول پښتانه واېستل. جمعه اڅک او ځینی نور قوماندانان یې هم چې خپل پرچمیان یې وو، د دوستم د بی سیاله شمالي قوت د جوړولو په خاطر له شماله را واېستل.

## ۸- د اقلیتونو په منځ کې ګیر پښتون

ډاکټر صاحب یو ځانګړی ګارد جوړ کړ، چې د اقلیت قومونو عقده یې افسران او عسکران چې زیاتره بی مسلکه و، راټول کړل. د ګارد د کارکونکو معاشونه یې د نورو امنیتي قواوو دوه چنده کړل او لړې ځایونو او جګړو ته یې هم نه لیږل، یوازې له ځانه یې ظاهراً د خپلې ساتنې؛ خو په حقیقت کې د خپلې تړنې په خاطر ساتلي وو. د ډاکټر صاحب په وخت کې لاندې (وطنپال؟) کسان د دفاعي ځواکونو په اصلي محور کې و :

- د ګارنیزون قوماندان نبي عظیمي – تاجک
- لوی درستیز آصف دلاور – تاجک
- د هوایي قواوو قوماندان فتاح – تاجک
- د خاد ضربتي قواو قوماندان بابه جان – تاجک
- د پیاوړو ملیشو قوماندان دوستم – ازبک
- د خاص ګارد قوماندان سید اعظم سعید – ازبک
- د اوراګان قوماندان رووف بیګی- ازبک

ده یو څو خلع سلاح او په اروایي ډول مات شوي کسان د وزیرانو په پوستونو کې نیولي وو، هغوی د اداري مامورینو څخه زیات څه نه وو. کله چې به ورته چا وویل چې ډاکټر صاحب، متاسفانه روسانو د افغانستان سیاست د ۱۳۶۰ کال را هیسې قومي کړی دی، ته څنګه په دې دومره ډېرو ستمي فکره افسرانو باور کوې؟ د ډاکټر صاحب ځواب دا و: دا زما پرچمي ملګري دي. پښتانه یا اشرار دي اویا خلقیان. تنی را نه ولاړ، ګلبدین را سره جنګیږي، حقاني ته خو مې ډېر وویل چې

تسليم شي چې له دوستم سره توازن برابر کړي، خو چې نه راځي بلا ورپسې اقليتونو ته به يې ويل: مه از شماستم، مه در اندراب تولد شده ام...

### ۹ - بې لښکرو رهبر.

ډاکټر صاحب نه عسکر لرل او نه يې لښکر. ده په هغو عُقده يي ستمي کسانو تکيه کړې وه، چې د کارمل په مدرسه کې يې د وطنپلورنې او ټګۍ درس ويلی و او له هرڅه سره جوړېدل خو د افغان او افغانستان له نوم سره نه!... دی په خپله هم پوهېده چې نه خلقيان د ده دي او نه پرچميان. خلقيان د تره کي او امين وفاداران وو او پرچميان د کارمل، خو ده ماشومانه لوبې کولې او داسې يې ښودله چې په خاديستي - اُپراتيفي چلونو په ټولو حکومت کوي.

### ۱۰ - د شمال د توطيې بريالی کوونکی.

ده په مشهور خاين او مورزادي کودتاچي نبي عظيمي باور کاوه، او کله چې دوستم د بغاوت کار پيل کړ، ډاکټر صاحب به ښاغلی! ملګری عظيمي ور پسې جرګه ليږه چې دوستم بيرته پخلا کړي. ده له تنې سره د مناسباتو د عادي کولو لپاره هم مشهور ستمی عبدالحميد محتاط دغسې جرګې کړې وې، چې هغه بيا دواړه سره غوښه او چاړه کړل.

### ۱۱ - در آخير احمق شده بود...

رفيق ! نبي عظيمي په خپل کتاب (اردو و سياست) کې پخپله ليکي، چې ډاکټر نجيب در آخير احمق شده بود... دی وايي چې زه به يې ليږلم چې دوستم او مومن راضي کړم، خو ما به هلته د ټولو جهادي او غير جهادي اقليت نظامي قوتونو تر منځ اړيکې او نظم برابروه او چې کله مو کابل ونيوه، نو ده ته معلومه شوه چې موږ څوک يو او دی څوک دی

### ۱۲ - دا يو رانه، نه شي راتلای

يو تن چې د وطن ګوند غړی دی، کيسه کوي چې نجيب د مشورې له پاره له نورو سره يوځای غوښتی و. نجيب په خپلو نطاقانه خبرو ورته تشريح کړې وه، چې له شماله به مسعود، له غربه به هزارګان، له جنوبه به حقاني او سياف او له ختيځه

به عبدالحق په کابل راشي او په خپلو کې به داسې وجنګیږي چې د کابل په کوڅه کوڅه کې به وینې توی شي، مجاهدین به بدنام او دوی (د نجیب ملګري) به نیک نام شي. وایي چې د غونډې په منځ کې ترې وپوښتل شول، (چې داسې ده نو موږ باید د وطن د لوړو ګټو په خاطر یوه قرباني ورکړو او حکومت د مجاهدینو په منځ کې داسې چاته وسپارو چې ثبات ټینګ کړای شي، خیر دی زموږ یو څو ملګري دې پکې قربان شي، خو چې نظام بیخي ونه پاشل شي). د ډاکټر نجیب ځواب دا و: د مجاهدینو په منځ کې حکمتیار دغه قوت لري، خو هغه رانه، نه شي راتلای، زه غواړم هغه بیرون پاتې شي. کله چې ورته وویل شول، چې آیا موږ پخپله د نظام پاشلوته زمینه جوړوو؟ د نجیب ځواب دا و: (همګی را میمانیم، خو حکمتیار از پیشم آمده نمی تواند، وی بیرون و دیګران را داخل میکنیم، باز، دیګران از دست ازو حکومت کده نمیتانه...) له دې ښکاره معلومیږي، چې دا د روس هغه نقشه وه چې نظام باید روغ پاتې نه شي، بلکې داسې باید وپاشل شي چې روسی وسله د یو افغان له خوا د بل پر ضد وکارول شي او روس ترې بېغمه پاتې شي.

**۱۳ - بیا به پنځوس کاله ارمان کوئ.**

همدې ته ورته خبره د حزب اسلامي یوه تن هم کوله، چې ډاکټر نجیب حکمتیار ته لیک لیږلی و او د ایتلافي حکومت غوښتنه یې ترې کړې وه، خو حکمتیار ورته ویلي و، چې ستاسو ایدیالوژي اوس ماته خوړلې، او که درسره ایتلاف هم وکړم، سوله نه راځي او نور مجاهدین درسره جنګیږي. د کلکې سولې په خاطر ښه داده چې تاسې ټول قدرت مجاهدینو ته وسپارئ مجاهدین به مسلکي خلک له ځان سره وساتي او نورو ته به عفوه وکړي، خو نجیب ورته بیرته لیک لیږلی و او ویلي یې وچې (ته چې له ماسره نه یو کیږې، نو زه به حکومت مسعود ته وسپارم چې نه یوازې ته، بلکې ټول پښتانه به تر پنځوس کالو پورې ارمان کوئ)...

**۱۴ - الفاظ او نطاقي.**

که څه هم نجیب په ظاهره د سولې او روغې جوړې چیغې وهلې او په ښه نطاقی او لفاظی به یې ښودله چې غواړي د افغانستان ستونزه د سولې له لارې حل شي، خو په عمل کې یې خادیستي چلونو ته دوام ورکاوه. ده به خپلو ملګرو ته ویل

(يو ځل چې دا نور زه له حکمتياره رابيل کړم، بيا ټول په يو شئون اسلامي وزارت راضي کوم. قدرت به تل له وطن گوند سره وي.

**۱۵ - مزار يې ملېشو ته پرېښود.**

ټولو ورته وويل چې که مزار دې دوستم ته پرېښود، نو له قدرته لاس ومينځه، خو ده پخپله خوښه ورو ورو ټول شمالي ولايتونه دوستم ته وسپارل او د نبي عظيمي په مشوره يې د شمال ايتلاف ورو ورو کابل ته را روان کړ.

**۱۶ - د جبل السراج تر نيولو وروسته.**

کله چې د شمال ستمي ټلواله جبل السراج ته را ورسېده، ده په پوځ کې نيم ژوانده پښتنو افسرانو ته وويل چې مسعود ته مه تسليمېږئ، په دې توگه يې کورنۍ جگړې ته زمينه جوړه کړه. ده غوښتل چې نه مسعود، نه حکمتيار او نه هم کوم بل جهادي گروپ، په کابل پوره ولکه ټينگه کړي، چې کورنۍ جگړې ته زمينه جوړه او د ده وړاندوينې رښتيا شي.

**۱۷ - د ملگرو ملتونو په دفتر کې.**

کله چې پوه شو چې نبي جان د ده نه، بلکې د کارمل او مسعود سړی دی، نو د تېښتې د کوښښ تر ناکامۍ وروسته يې د ملگرو ملتونو دفتر کی پناه واخيسته. هلته پسې نبي جان عظيمي ورغی، نجيب پرې ناز وکړ او ورته ويې ويل: رفيق عظيمی، ما از تو توقع ازی ره نداشتم که بالايم کودتا کنی، هغه ورته وويل: بی غيرته! چا کودتا کوله؟ ما که تا؟ تا غوښتل چې پخپله وتښتې او گوند او دولت بې سرنوشته پرېږدې؟ ته يو ذليل او ډارن انسان يې...

**۱۸ - له هغه څه چې وېرېده.**

ډاکټر صاحب دا دومره چل او فريب د دې لپاره کاوه چې له خپلو تېرو اعمالو او هغو بې شمېره قتلونو د حساب نه وېرېده او له دې وېرې يې دوه لارې لرلې: يا بايد تل د وطن گوند په قدرت کې وي، او يا بايد افغانستان وران شي، چې دومره څوک پکې نه وي، چې له دوی سره حساب وکړي. دی له حساب کتاب، محاکمې او اعدام نه ډېر وېرېده، او غرور يې دا اجازه نه ورکوله چې د هغو زرگونو مظلومانو په

شان چې په سترګو کې به یې د عذر، مرستې او رحم غوښتنې ځلاوې وپړکېدې، خو ده به هیڅ اعتنا ورته نه کوله. په دې لایتناهي کایناتو کې د خدای یوه دوامداره محاکمه روانه ده او یو وخت راغی، چې طالبان کابل ته ننوتل. دی هم په هماغه شان حالت کې پریوت چې سترګو یې د رحم غوښتنه وکړه، په ژبه یې طالبانو ته د (پښتنو ورونو ښه راغلاست) چیغه وکړه، خو هغو ورته وویل چې نه پښتانه دي او نه فارسیوانان، بلکې هغه مسلمانان دي، چې د ده په مرګ پسې راغلي دي. څو شیبې وروسته هغه ډاکټر صاحب چې څوارلس کاله د ټولو جنایتونو د لومړۍ درجې عاملینو څخه و، اعدام شوی او متاسفانه په وحشیانه شکل په چوک کې ځوړند شوی وو. تر هغه څه ورسره ډېر بد شوي وو، چې ده به کول، ده به خلک پټ وژل او پټ به یې ښخول، خو دی په عمومي چوک کې ځوړند شو. بله د خفګان خبره داوه چې کارمل چې تر ډاکټر صاحب او نورو ټولو هم ډېر ظالم و او د ټول تاریخ مکار او رذیل شخصیت و، لا ژوندی او بې جزا ګرځېده، خو ډاکټر صاحب نجیب الله ته بې محاکمې جزا ورکړل شوې وه. پکار خو دا وه چې په یوه عادلانه محکمه کې محاکمه شوی وی.

**۱۹ - د طالبانو له خوا یې اعدام د خلکو د همدردۍ انګېزه شوه.**

افغانان انتقام جویه دي، خو داسې نه دي، چې یو څوک دې دومره مظلومانه اعدام شي. همدې وحشیانه کار ډاکټر نجیب ته د خلکو په زړونو کې د کینې او انتقام جویۍ پر ځای عفوه او مینه پیدا کړه. له بلې خوا تر ده وروسته داخلي جګړو خلک دومره ځورولي وو، چې د ډاکټر د پلان له مخې سمې وړاندوینېورته داسې ښکارېدې، چې ګویا نجیب غوښتل د دغو پېښو مخه ونیسي.

**۲۰ - زموږ لپاره پکې درس او زده کړه.**

موږ ته د ډاکټر نجیب الله ښه یا بد ویل اوس کومه فایده نلري. خو باید له تېرو تاریخي پېښو نه درسونه واخلو. په آخرت کې خدای (ج) د نیتونو په اساس اجر ورکوي. داسې ښکاري چې ډاکټر نجیب د دې ملت او هېواد سره هیڅ ښه نیت نه دی کړی، خو که کړی یې هم وي، اجر یې پر الله دی.

هغه څه چې موږ بايد ترې درس واخلو، دا دي:

- هيڅ افغان ته په کارنه ده چې د بهرنيو جاسوسو شبکو په وعدو تېروځي، بايد پخپلو موجودو امکاناتو بسنه وکړي او که نه وي پخپل کور کيني.

- تر اوسه هم لا په ملکونو کې اقليتونه د يو هېواد ملي گټو ته پوره وفاداري نلري او بايد باور پرې ونه شي.

- نطاقي او لفاظي د مشرۍ لپاره کافي نه دي، پوهه، تدبير، صداقت او پلان تر هر څه ضرور دي.

- ضد او کينه کله کله د يو ملت سرنوشت له دومره سترو ستونزو سره مخامخوي.

- په افغانستان کې قومي سياست گټور نه دی او هيڅکله بايد له ملي - اسلامي ليکې ونه گرځو.

- اوس ښاغلی کرزی هم په عين ډول د ډاکټر نجيب په لار روان دی، د جنايتکارانو او غلو حکومت ته دروغجن قانونيت ورکوي، هماغه شان د سولې دروغجنې چيغې وهي او په عمل کې يې خپلو ورونو او ايتلافيونو ته د بېرحمه غلاوو زمينه جوړه کړې ده. ولس يې شپه او ورځ د بهرنيانو له خوا وژل کيږي، خو دی صرف په يو څو درواغجنو اوښکو لا هم خپل ولس تېر باسي. خدای پوهيږي چې د ده سرنوشت به څرنگه وي.

ناپاليون باناپارت گفته بود: "هيچ کس بدون خودم مسئول سقوطم نيست" اما ډاکټر نجيب الله دا جرأت نه درلود چې داسې صادقانه اعتراف وکړي، خو د سقوط مسئوليت د نورو په اوږه اچوي.

مخکې له دې چې د مصالحې په اړه څه وليکم د ځينو رهبري کادرونو نظريات، چې نجيب الله ته معتقد دي، د لوستونکو توجه را اړوم چې نجيب الله خپل نږدې او صادق دوستان په ريا کارۍ سره څنگه غولوي.

سياسي توطئه گر د ملي هويت قاتل

# د ډاکټر صاحب ریا کاري

د محترم آریانفر په باره کې او د ده د تمایلاتو په باب هیڅ معلومات په لاس کی نشته خو ښه لیکوال او ربښتنی شنونکی دی.

همدارنګه نوموړی په خارجي ژبو مسلط رامعلومیږي. خو هغه څه چې آریانفر صاحب د خپل فیسبوک په پاڼه لیکلي دي (چگونه رژیم داکتر نجیب مرز بین المللي میان افغانستان و پاکستان «خط دیورند» را به رسمیت شناخت؟) زه به یو کوچنی اصلاح په دې عنوان کې په حق وبولم او هغه دا ده چې د «رژیم» کلیمه باید له عنوان څخه حذف شي ځکه :

- د دیورند مسٔله په سیاسي بیرو کې، چې د هېواد رهبري ارگان وو، طرح شوې نه ده، دا حقیقت د کاروال په کتاب کې تشریح شوی دی.

- بله دا چې د نیاز محمد مومند څخه چې نوموړی هم د سیاسي بیرو غړی و پوښتنه وشوه، نوموړي وویل - دا سوال په سیاسي بېرو کې نه دی طرح شوی (نه دی تصویب شوی). په سیاسي بیرو کې د کاروال له کتاب نه معلومیږي چې نجیب خپلې سیاسي بیرو ته ښکرور دروغ وایي چې گویا د دیورند خط په باب د جینوا په توافقاتو کې څه شی نشته.

- له بلې خوا نجیب الله، خپل خارجه وزیر ته هم دروغ وایي چې- گویا د دیورند په باب د سیاسي بیرو فیصله موجوده ده، په داسې حال کې چې هیڅ فیصله یا تصویب نه و موجود.

- له بلې خوا د افغانستان پارلمان هم لکه سیاسي بیرو له دې موضوع څخه بې خبر ساتل شوی و.

- د کاروال صاحب کتاب کې دومره روښانه ده چې د سیاسي بیرو غړی له نجیب الله څخه د دیورند خط په باب ځینې پوښتنې کوي، په کُل کې نجیب الله منکر دی چې گویا دا سوال د جینوا په توافقاتو کې نه دی طرح شوی! په عین حال کې د ماکیاول په شان - سیاسي بیرو ته نجیب الله وایي چې "اگر حاکمیت ما نباشد، دیگر خط دیورند چه اهمیت دارد !!»

راشئ د ډاکټر صاحب نجیب الله په دې خبره فکر وکړو، آخر دا جمهور رئیس دی او د حزب وطن رهبر دی. خط دیورند د نورم او پرنسیپ په لحاظ اهمیت لري. هغه ما او ستا حق نه دی ! هغه زما د پلار حق نه دی ! هغه د نجیب الله حق نه دی ! هغه د اختر محمد حق هم نه دی ! بلکې د ولس حق دی !

ډاکټر صاحب نجیب الله د دیورنډ خط اهمیت یا نه درکولی یا غواړي سیاسي بیرو په غلطه لاره بوځي..



- په مزار کې موازي حکومت جوړول
- د ډیورنډ په خط پټه معامله کول
- د افغانستان د تجزیې سوال طرح کول

د کنګرې غوښتل... او نورو مشابه مسئلو باندې د نجیب الله او روسانو سره بحثونو ورځ په ورځ سوځوونکې (داغ) بڼه اختیاروله څکه نجیب الله او روسانو دروغ ویل او په خپلو خادیستي چلونو یې تکیه کوله - بالاخره د حوت د ۱۶مې تصادم ته یې زمینه برابروله...

د ډیورنډ خط د اهمیت لپاره جیوپولیتیک پوهې ته اړتیاچې باید درک شي او د جیوپولیتیک اهدافو لپاره کلیدي اهمیت لري؛ خو هغه څه چې نجیب الله وایي د لومپنیزم بحث رایادوي.

- په عین حال کې د شوروي د خارجه چارو وزارت مُعین یولی ورنځوف هم ښکروردروغ وایي چې ګویا د جینوا د توافقاتو په باره کې د سیاسي بیرو فیصله ده، په داسې حال کې چې داسې فیصله نشته.

- د دې لپاره چې بحث نور اوږد نه شي اصلي مطلب ته به راوګرځو، چې سیاسي توطئه ګر د ملي هویت قاتل نومیږی (د استقلال سایت څخه) :

انسان هغه څه نه دی چې څه ډول فکر کوي، بلکې هغه څه دی چې له نورو څخه یو څه پټوي. (اندرې ملروکس).

په دې بحث کې د جاسوس او سیاسي توطئه ګر لوی تفاوت (خطر) را

لوځیږي.

د بې ثباته هېوادونو سیاسي چاپیریال د سیاسي توطئه ګرۍ، جنګسالارۍ، او سازمان موندلو جنایتونو د راټوکېدو، ودې او ځواکمن کېدو لپاره ښه امکانات برابروي.

دغه درې واړه پدیدې که څه هم یو د بل سره تفاوت لري، خو یو د بل داړمن مرستندویان او بشپړونکي دي.

سیاسي توطئه کوونکي معمولاً ځانونه د یوه ځانګړي مذهبي یا سیاسي مکتب پلویان ګڼي او هڅه کوي، چې د هغې مذهبي یا سیاسي ډلې په توګه وپېژندل شي، خو د دې پر ځای چې د خپل هېواد یا د خلکو په منځ کې په یوه ځواک د بدلېدو له پاره یو څه وکړي، تل د بهرنیو ملاتړ کوونکو په لټه کې وي-(لکه د پرچم رهبران)

- سیاسي توطئه ګر د داخلي امکاناتو په پرتله، خارجي حمایتګرانو ته لومړیتوب ورکوي -"لکه د پرچم رهبري کادرونه".

- دا هم روښانه ده چې د سیاسي او مذهبي ډلو لپاره د خارجي مرستو رسولو ځایونه یوازې او یوازې څارګرې شبکې دي.

هغه چا ته چې څارګره اداره باید یو څه ورکړي، نوموړی باید په دغه اداره کې ثبت وي.

- د بشري تاریخ په اوږدو کې له قبیلوي ټولنې څخه بیا تر نن پورې، تل جاسوسان موجود وو.

- په هر هېواد کې داسې کسان پیدا کېدای شي چې په جاسوسي شبکو کې ځان تنظیم کړي او پوهیږي چې دا شبکې داسې امکانات لري، چې رښتنی رهبر په بدنامۍ ورټېي او د عادي شخص نه لوی شخصیت جوړ کړي (لکه نجیب الله). کوم کسان چې تر دې کچې رالویږي، تاریخ ورته ملي خیانت ویلی دی.

- هر کله چې په یوه شخص کې د وطن پالنې احساس وچ شي، حرص او ځان غوښتنې یې نه مړیږي، نو دا ډول انسان په خیانت لاس پورې کوي او

ماغـزه يـې يـو ډول اوښـتي وي - لاره بدلـوي (لکـه نجيـب اللـه).

- کـه څـه هـم جاسـوس او سـياسي توطئـه گـر يـو شـان دنـدې سرتـه رسـوي، خـو سـياسي توطئـه گـر د جاسـوس پـه پرتلـه د ټولنـې لپـاره ډېـر خطرنـاک دی، ځکـه جاسـوس يـو تـن دی او پـه يـوازې توگـه فعاليـت کـوي.

خـو سـياسي توطئـه گـر د يـوې سـياسي يـا مذهبـي ټولنـې غـړی دی او ډېـر نـور خلـک اغـوا کـولای شي (لکـه نجيـب اللـه چـې د پرچـم د سـازمان غـړی او د استخباراتو وزيـر و، پـه کلونـو - کلونـو د کـې. جـي. بي. تـر مستقيمې قومانـدې لانـدې افغـان ولـس د مـلي مصالحـې پـه نامـه اغـوا کـول او حتـی بـا شرف او وطـن دوست وزيـران او جـنرالان يـې اغـوا کـړای شـوای او پـه دې ډول يـې د افغانسـتان غنامنـد تاريـخ تـه خاتمـه ورکـړه او مـلي هويـت يـې لـه ځـان سره يـو ځـای اعـدام کـړ).

اوس بـه د محـترم آريانفـر صاحـب ترجمـه لهـروسي مـتن سره يـو ځـای گرانـو لوسـتونکو تـه وړانـدې کـړم :





## ډاکتر نجیب الله: رفیق وکیل، سند دیورند را امضاء کن !

از برگهٔ فسبوکی آقای آریانفر

چه گونه رژیم داکتر نجیب مرز بین المللی میان افغانستان و پاکستان «خط دیورند» را به رسمیت شناخت؟

برگرفته از سایت (افغانستان رو).

با توجه به این که در سایت "افغانستان رو" تفاوت هایی میان متن روسی و متن دری دیده می شود، ناگزیر با در نظر داشت اهمیت تاریخی موضوع آن را سر از نو ترجمه و به دسترس هم میهنان گرامی می گذاریم.

الکساندر موروزف می نویسد: "در ژنو بسته یې که در برگیرنده چهار سند (همه در باره حل و فصل مسئله افغانستان) بود، به امضاء رسید. زیر این اسناد چهار نفر امضاء کردند: وکیل - وزیر خارجهء افغانستان، نوراني - وزیر خارجهٔ پاکستان، شواردنادزه - از سوی ما و وزیر خارجه امریکا - جورج شولتس.

افغان ها تا واپسین دم باور داشتند که ما اسناد را امضاء نخواهیم کرد و امیدوار

بودند کـه در آخریـن لحظـات منـصرف خواهیـم شـد و سـپاهیان مـا [در افغانستان] خواهند مانـد. وکیـل تاکتیـک زرنگانـه یـی را بـه کار بست [و از امضـای اسناد خودداری ورزیـد] . در سند در بـاره عـدم مداخلـه میـان پاکسـتان و افغانسـتان سـطری بود کـه در آن نوشـته «مرزهای شـناخته شـده بیـن المللـی میـان دو کشـور» آمده بـود.

مـرز نامنهـاد دیورنـد در سـده نزدهـم از سـوی انگلیسـی هـا هنگامـی کـه پاکستان (هندوسـتان) هنـوز مسـتعمره انگلیـس بـود، تعییـن گردیـده بـود. افغـان هـا تـا همیـن اکنـون هـم بـا ایـن خـط موافـق نیسـتند. چـون قبایـل پشـتون را بـه دو بخـش تقسیم می کنـد - بخشـی در افغانسـتان و بخـش دیگـر در پاکسـتان.

وکیـل اعـلام داشـت که «نـه، مـن امضـای خـود را زیـر چنیـن سـندی نمی گذارم» . ایـن در حالـی بـود کـه بـه امضـای اسـناد یـک یـا دو روز نمانـده بـود. در ایـن هنـگام، در تاشـکند، گورباچف، شـواردنادزه و نجیـب الله در آسـتانه امضـای توافقات ژنو بـه رایزنـی نشسـته بودنـد. از ژنـو مـا بـا نجیـب تمـاس گرفتیـم. او بـه وکیـل زنـگ زد و گفـت :"رفیـق وکیـل، جلسـۀ بیـرو سیاسـی برگـزار گردیـده و فیصلـه صـورت گرفته است. بـا ایـن مـتن توافـق نماییـد.» امـا وکیلبـه هیـچ رو حـاضر نمـی شـد.

ایـن بـود که یـولي ورونتسـوف - معـاون اول وزارت خارجـه، بـی درنـگ از مسـکو بـه ژنـو پـرواز کـرد. بـرای حفـظ ماتقـدم، در صـورت خـودداری وکیـل از امضـای اسـناد، در نظـر گرفتـه شـده بـود تـا بـه جـای او کشـتنمد - صـدر اعظـم تـازه نجیـب توافقنامـه هـا را امضـاء نمایـد. ورونتسـوف هفـت تـا هشـت سـاعت بـا وکیـل خلـوت کـرد و کوشـید تـا او را متقاعـد سـازد. مگـر سرانجام بـا نـا امیـدی بـیرون شـد و اعـلام کـرد : "خـلاص! فـردا کشـتمند را مـی آورم و وکیـل را بـه مسـکو مـی بریـم."

شـب هنـگام، ورونتسـوف بـار دیگـر بـا وکیـل دیـدار کـرد. ایـن بـار وکیـل بـا رنگ پریـده بیـرون آمـد.

توافقنامه ها روشن است امضاء گردیده بود.

**متن روسی**

В Женеве был подписан пакет из четырех документов — все

об афганском урегулировании .Под ним поставили подписи четыре человека :министр иностранных дел Афганистана Вакиль,министр иностранных дел Пакистана Нурани,с нашей стороны – Шеварднадзе ,и со стороны США – госсекретарь Шульц.

Афганцы до конца не верили ,что мы пойдем на это .Они надеялись ,что в последний момент мы отыграем назад ,что войска останутся.

И Вакиль ,с которого я начал эти воспоминания ,избрал хитрую тактику .В документе о невмешательстве между Пакистаном и Афганистаном была строка ,где записаны «международно признанные границы между двумя странами» .А граница ,так называемая линия Дюранды ,была установлена в XIX веке англичанами ,когда Пакистан еще был английской колонией.

Афганцы до сих пор с этой линией не согласны ,поскольку она делит пуштунские племена надвое – одна часть в Афганистане ,другая в Пакистане.

Вакиль заявил :«Нет ,под таким документом я своей подписи не поставлю» .Притом что оставалось один или два дня до подписания .В это время в Ташкенте Горбачев, Шеварднадзе и Наджибулла совещались в преддверии заключения женевских соглашений .Из Женевы мы связались с Наджибуллой .Тот позвонил Вакилю и сказал :«Товарищ Вакиль ,было совещание Политбюро ,принято решение – согласиться с этой формулировкой».

Но Вакиль – ни в какую.

Тогда из Москвы срочно прилетел первый замминистра иностранных дел Юлий Воронцов . Кстати сказать ,блестящий и перспективный дипломат ,который мог бы быть прекрасным министром иностранных дел .К сожалению ,этому воспрепятствовали ,«сослав» на ۸ месяцев послом в Кабул. Между тем на всякий случай Вакилю подобрали замену – если он будет артачиться ,вместо него соглашения подпишет новый премьер-министр правительства Наджибуллы Кештманд.

Воронцов уединился с Вакилем и говорил с ним7 или۸ часов .Наконец отчаялся и говорит :«Все ,завтра привожу Кештманда ,а Вакиля забираем в Москву».

Ночью Воронцов опять встретился с Вакилем .Вакиль ушел со встречи бледный как бумага.

Соглашения ,разумеется ,были подписаны.

يادداشت: روزی با دوست عزیزم آقای شایان درباره توافقات ژنو صحبت می کردیم. گفت که در آغاز نجیب با فرمول بندی "مرزهای شناخته شده بین المللی میان دو کشور" مخالف بود و به وکیل هدایت داده بود تا هر طور که شده این جمله را از متن توافقات بکشد. صرف در آن صورت می تواند اسناد توافقات را امضاء کند. وکیل هم بنا به هدایت نجیب در ژنو بر حذف آن از متن توافقات پافشاری داشت. همین بود که موضوع به درازا کشید. اما چون روس ها با امریکایی ها در زمینه به توافق رسیده بودند، مسئله از پیش حل شده بود. روس ها نیک می دانستند که تا افغانستان از ادعای ارضی بر پاکستان دست نکشد، محال است پاکستان دست از سر افغانستان بردارد، از این رو، نمی خواستند بهانه یې برای پاکستانی ها بگذارند. این بود که در زمینه گذاشتن مهر صحه بر "مرزهای بین المللی دو کشور" از سوی افغانستان تاکید داشتند.

سر انجام، شخص گرباچف در آستانه امضای اسناد ژنو، نجیب را به تاشکند فرا خواند و همزمان فشار بر وکیل را در ژنو افزایش دادند. این بود که نجیب ناگزیر گردید تیلفونی به وکیل هدایت بدهد تا وی متن توافقات را همان گونه که در پیش نویس تدوین یافته بود و نهایی شده بود، امضاء نماید.

روشن است وارنتسف در ژنو به وکیل روشن ساخته بود که سرپیچی از فیصله های دفتر سیاسی پیامدهای ناگواری برای وی خواهد داشت که کمترین آن کنار گذاشتن از کرسی وزارت خارجه و اخراج از حزب خواهد بود.

روشن بود نجیب هم نمی توانست از گفته های گرباچف سرپیچی نماید چون در صورت قطع کمک های شوروي کارش تمام بود.

به هر رو، رژیم داکتر نجیب ناگزیر این گونه بر مرزهای بین المللی با پاکستان در یک سند بین المللی صحه گذاشت.

**غوربندی صاحب، د لایق صاحب د کودتا په باره کې**

نگارنده (غوربندی) روزی با سلیمان لایق در دفتر کارش... خواستم درد دل کنم. سلیمان لایق در زندگی سیاسی خود به استثنای چند ماه اخیر آنهم بخاطر نجات جانش از بگیرو بدار سربازان ائتلاف شمال که در آغاز به امر بریالی عمل میکردند، همیشه علیه کجروی های کارمل مبارزه نموده است. در ارتباط به انتباهات خود از سلطه یک جانبه کارملی ها در تمام امور و بی تفاوتی مدافعین سیاست مصالحه ملی شکایت کرده از وی طلب چاره نمودم.

نگارنده (غوربندی) انتظار جواب رهنمودی بودم. اما بر عکس، سلیمان لایق به سادگی خندید و گفت که چند روز بعد شما هم مثل من بی تفاوت می شوید. بهتر است سکوت پیشه کنید، من از تجربه برایتان مگویم که پیشنهادات و انتقادات شما در بهبود کار ها تاثیر ندارد و سودی نمی بخشد.

اگر پا فشاری کنید به گفته دوستان ایرانی، برای تان پرونده می سازند و بر نامه تقلبی درست می کنند. سلیمان لایق به تاکید به نگارنده خطاب کرده گفت که رفیق غور بندی ! میدانی برای من چنین کردند، دوسیه ساختند، دوسیه که گویا

من علیه دکتور نجیب الله کودتا میکنم - یاورم را ماها زیر شکنجه قرار دادند تا اسناد لازمه تهیه کنند. اکنون طبق ضرب المثل عوام "شولهٔ خوده میخورم و پرده خوده میکنم".

این حرف های سلیمان لایق برای من (غوربندی) قناعت بخش نبود، آنرا یکنوع سهل انگاری فکر کردم... سکوت و چشم پوشی در برابر انحرافات... بنابر هر دلیلی که باشد جایز نیست...

غوربندي صاحب د نجیب الله په مصالحه زړه بایللی دیؤ خو له سیاسي ریا کارۍ څخه خبر نه دی. اما نجیب الله، معصوم غوربندي صاحب ته نرم« او غوړپوعدې ورکوي او د جنرال رفیع تر رهبرۍ لاندې یو کمسیون جوړوي او غوربندی صاحب ورته معاون ټاکي. غوربندی ادامه ورکوي:

در اثر پافشاری زیاد ما، داکتر نجیب الله فرمان داد تا کمسیون مبارزه علیه فساد بریاست محمد رفیع معاون رئیس جمهور و معاونیت غوربندی بوجود آید. این کمسیون در سه جلسه پیهم لیست اشخاص سرشناس حزبی و دولتی که به سوء استفاده های بزرگ متهم بودند مشخص ساخت و به منظور تعقیب قضائی به څارنوالی معرفی کرد. اشخاص مانند برهان غیاثی را ممنوع الخروج اعلان کرد. فرید احمد مزدک که با سوء استفاده از نفوذ حزبی، املاک دولتی را بدون طی مراحل قانونی... فروخته بود و ازین ناحیه ملیونها افغانی استفادهٔ نا جایز کرده بود نزد کمیسیون متهم بود. و سلطان علی کشتمند که به اخذ کمیشن هنگفت از فروش طیاره بزرگ آریانا علی الرغم نظریه کمیسیون اقتصدی شرکت آریانا... خیانت کرده بود...

فرید احمد مزدک به همرای کشتمند، این کمیسیون ما را به بهانه ها و نیرنگ های گوناگون، نخست تعطیل نموده و بعداً فرمان لغوه آنرا از داکتر صاحب نجیب الله گرفتند.

فرید احمد مزدک با شوخی بدوستان خود تلیفونی تبریک می گفت که به اصطلاح وی، کمیسیون فساد را ضربه فنی زدم.

د غوربندي صاحب د کتاب (ص ۱۱۵):

داکتر صاحب نجیب الله خواهش نمود که رفقا بدون تعلل وظایف خود را اشغال نمایند.

ما درین مقطع زمانی مقاومت را جایز ندانسته، به حیث معاون جبهه ملی پدر وطن شروع بکار نمودم. اگرچه درین وظایف نیز مشکلات عدیده برای ما خلق نمودند - اخبار پامیر را بر ضد میثاق تحریک نمودند... برای نگارنده (غور بندی) آقای مزدک را به صفت رئیس جبهه روان نمودند. داکتر شاه ولی را در کنج صدارت گوشه نشین نموده ارتباطش با حزبی ها محدود کردند.

... اگرچه ما تا آخیرین لحظه با وفاداری کامل باقی ماندیم ولی افسوس که داعیه ما هیچگاه از پشتیبانی رهبری "نجیب الله" بر خوردار نبود و در بازده کل نتایج سیاسی اندکی داشت.

غور بندی صاحب د خلق دیموکراتیک گوند د دویې کنګرې په ترکیب کې شامل ګروپونه داسې معرفي کړې دي:

۱ - تشکیلات مخفی کارملی ها تحت رهبری محمود بریالی برادر کارمل.

۲ - نیروی دیگر تحت رهبری نجم الدین کاویانی و فرید مزدک - آنها اعضای مخفی شورای نظاربودند.

۳ - نیروی سوم تحت رهبری کشتمند - گرداننده کنگره و بیروکراتان فاسد وابسته به وی.

۴ - نیروی چهارم که مجال شرکت در کنگره را نداشت عبارت از بخش بزرگ خلقی ها بود که بعد از کودتای شهنواز تنی در زندان بودند... ایشان بر قانونیت و شیوه عملکرد انتخابات و با الخصوص رهبری که بر اساس آرای سری، مستقم و عمومی صورت نه گرفته بود اعتراض داشتند.

۵ - نیروی پنجم عبارت از حزبی های سر سپرده و وفادار به مشی مصالحه ملی داکتر نجیب الله بودند. این نیرو انتظار داشتند که کنگره چون قاضی عادل اعمال رهبران را مورد سنجش همه جانبه قرار داده... و در مورد رهبران مسئول حکم تاریخی خود را صادر نماید... وقتیکه خلاف توقع و با حیرت لیست کمیته مرکزی جدید همان نامهای سابقه را مشاهده

کردند نسبت به ارزش ها و عدالت کنگره شک نمودند و تشکیلات مخفی (کارملی ها) موقعیت خود را در مقامات باز هم تقویه نمود.

خلاصه نتایج پایان کنگره... موجب نا امیدی و یاس دوستان صدیق گردید... افسوس که تشکیلات مخفی بوسیله روحیه سخاوتمندانه خود رهبری "نجیب الله" مجهز شده بودند (ص ۱۱۷).

نجم الدین کاویانی سفر های بخارج داشت و حضور نجیب الله را در رأس حزب و دولت بحیث بزرگترین موانع در راه مصالحه سخن میگفت و برکناری وی را ضروری میدانست و از شخصیت به اصطلاح افسانوی مسعود تمجید مینمود. این فعالیتهای او از چشم نجیب الله پوشیده نبود چنانچه در یکی از جلسات بیروی سیاسی که نگارنده شاهد است ازین گونه تخریبات پرده برداشت - گفت: در صورتیکه با سیاست رهبری حزب مخالف هستید شریفانه استعفی دهید... (ص ۱۲۲).

فرید احمد مزدک از تریبون عالیترین مقام حزبی (معاون حزب) بصورت سازمان یافته درین شبکه کار میکرد و تمام راپور های فوقالعاده محرم نظامی را توسط برادر خود یار محمد طبقه بندی نموده بصورت منظم بدسترس احمد شاه مسعود میگذاشت، در یکی از روزها با مزدک در تماس تلیفونی گفتم: من، او و همکارش کاویانی را فاتحین شکست خورده نامیدم و علاوه کردم از نقش خود در سقوط نجیب الله چه پاداشی گرفه اند؟ با بی شرمی گفت "من منکر نقش خود در سقوط نجیب الله نیستم، چون مخالف وی بودم. برایش گفتم... سعی در ویرانی آن سیستم با هیچ معیار اخلاقی قابل توجیه نیست... و این عمل را در تمام زبانها خیانت میگویند...

به هر صورت بدون شک هوس انتقام گیری و قدرت طلبی برای کارمل، بریالی و علایق دیوانه وار اتنیکی برای کاویانی و مزدک انگیزه های نیرومندی بوده اما سر اصلی نخ بدست روسها بود که بنام حفظ ساحه نفوذ خود تصمیم گرفته بود تا نجیب الله را سقوط دهند. (ص ۱۲۳).

د غوربندي صاحب نظر ته احترام، خو ډاکتر صاحب نجیب الله لکه ببرک کارمل د روسانو د برچې په زور د ولسمشرۍ مقام نیولی و، دوی دواړه د کې. جي. بي.

مدیون و، د خپل افغان ولس، ګوند او وسله وال پوځ د قربانیو پروا يې نه کوله .

غوربندی صاحب له دويمې کنګرې څخه شکايت لري چې ګويا کارمليانو قدرت تر لاسه کړ. يوه يلوټې ملګري پ هم حکايت کاوه چې په کنګره که يې شرکت کړی و او ويل يې چې د کنګرې ابتکار کاملاً د محمود بريالي، مزدک او کاوياني پلاس کې و، او دا ټول پروګرام روسانو همداسې جوړ کړی و.

نتيجه داده چې ډاکټر صاحب نجيب الله د کې. جي. بي. په اختيار کې و، نه پخپل اختيار

د يادونې وړ ده چې په جيوپوليتيک لوبو کې د اشغالګر د قدرت لپاره داسې رهبر لکه نجيب الله چې ښه اطاعت کولای شي حياتي اهميت لري.

يوه بله يادونه هم اړينه بولم چې خلقيانو د کارمل، نجيب الله يا پرچم سره انتاګونيستيک تضاد نه درلود، خو د پرنسيپ لپاره مبارزه په طبعي ډول روانه وه. له بلې خوا د خلقيانو لپاره، کارمل، نجيب الله يا پرچم پرابلم نه و - هغوی په هر حال افغانان وو او له دوی سره مشترکه ژبه پيدا کول نا ممکن نه وو - سره له دې چې هغوی د ماکياول مکتب څخه پوره استفاده کوله، خو دخلقيانو لپاره اصلی پرابلم د شوروي جهنمي استخبارات (کې. جي. بي.) و، چې په جيوپوليتيک لوبو کې د تجربې خاوندان وو او کارمل او نجيب الله يې له پخوا څخه ښه روزلي وو.

## ملی مصالحه که د نجيب الله او کې. جي. بي. د توطيو ستره اخفا

د مخه مو دې سوال ته اشاره کړې چې ملي مصالحه - افغاني وه او که روسي؟ ځکه دکتور نجيب الله دعوا کوله چې ملي مصالحه د ده نوښت دی، نه د بل چا! خو له دې نه مخکې د مصالحې يا (کمپرومايز) لسګونه تيزيسونه چې په مسکو کې ليکل شوې وو، د ببرک کارمل په ژبه په پلينوم کې ولوستل شول. خو کارمل چې يو څه دورانديش و يو څو تنه متقاعدين يې په انقلابی شورا کې شامل کړل؛ مګر احمد شاه مسعود او يو څو نور جهادي قوماندانان يې د محکمې له لارې غياباً په اعدام محکوم کړل. خو مسکو ته په دې مرحله کې داسې افغان رهبر پکار و

چې تـر کارمـل هـم ښـه اطاعـت وکـړي، نـو د کارمـل پـه عـوض يـې ډاکټـر نجيب الله، چې ډېـر کالونـه يـې د کـې. جـي. بي. د مشـاورينو سره يـو ځـای کار کـړی و، مقرر کـړ، او پـه دې وسـيله يـې د نجيـب الله پـه څېـره کـې خپـل اشـغال تـه دوام ورکـړ.

پـه لومړيـو وختونـو کـې مـوږ نه پوهېدو، پـه دې عقيـده وو چې مصالحه بـه د افغانانو پـه لاس وچليـږي، متأسـفانه مصالحـه افغاني نـه وه او روسـي هدفونـه يـې تعقيبول لکه:

۱ - د خلقيانو ضعيفول.

۲ - د ملی اردو ضعيفول.

۳ - د افغانستان تجزيه کول.

۴ - د شمال ايتلاف جوړول.

خلقيان په قطعي توګه له دې څلور ګونو هدفونو سره مخالف وو.

همدغـه مخالفـت د روسـانو (کـې. جـي. بي.) پـه ژبـه داسـې ترجمـه او تفسير شو چې ګويـا خلقيـان د مصالحـې مخالـف دي، بنـاً د نجيـب اللـه مخالـف دي او نجيـب الله هـم د کـې. جـي. بي. خبره پـه پټـو سـترګو منلـه او د پورتنيـو هدفونـو لپـاره يې اولـه ضربه د داخلـه وزيـر سـيد محمـد ګلاب زوی تـه توجيـه کـړه.

د کاروال کتاب (ص ۱٦۴) وايي:

(نجيـب اللـه و شـوروی هـا، وضـع را چنيـن ارزيابـی کـرده بودنـد کـه در صـورت اعـزام ګلاب زوی، خلقـی هـا عکـس العمـل نشـان خواهنـد داد. بـرای ايـن منظور بـدون اعلان، احضـارات درجـه يـک از طـرف خـاد، ګارد و قطعـات شـوروی ګرفتـه شـده بـود، در خـط رنـوی ميـدان طيـارات بګـرام و خواجـه رواش، تانکهـای شـوروي جابجـا شـده بودنـد...

يـادآوری بايـد کـرد کـه تـا اخيـر نـه درسـطح بيـروی سياسـی و نـه در صطـح شـورای دفـاع وطـن و نـه در کـدام ارګان ديګـری مسـئله سبکدوشـی ګلابـزوی مطـرح و امضـا نـه ګرديـده بـود. نجيـب اللـه عمـلاً نمـی خواسـت قـدرت را تقسـيم کنـد... شـورويها تصميم ګرفتـه بودنـد کـه نجيب الله بحيـث غيـر حزبـی بايد نقـش خويـش را ايفـا ميکـرد واز مقام منشـی عمومـی حـزب سـبکدوش ميګرديـد..) (ص ۱٦۸) .

## نجیب الله سوله نه کوي؛ بلکې ځانته یکه تاز قدرت غواړي

بعد ها شوروي ها برای ریاست جمهوری، شاه سابق محمد ظاهر شاه، حسن شرق و حتی احمد شاه مسعود را بحیث کاندیدان، عوض نجیب الله در نظر داشتند ولی نجیب الله این پیشنهادها را رد کردند و حتی حسن شرق را بدون اینکه سند سبکدوشی او تصویب گردد، تلیفونی او را خانه نشین نموده و خانه او را تحت کنترول گرفت... (ص ١٦٩)

کاروال صاحب ادامه میدهد:

متاسفانه مشاورین شوروي نجیب الله را گوشزد نموده بود که نباید بالای نیروهای وزارت دفاع و داخله اعتماد کرد. چنانچه ورانخوف سفیر فوق العاده شوروي در کابل چنین میگوید:... کې. جي. بي. به نجیب الله هُشدار داد که مُتکی به وفاداری ارتش افغانستان نباشد. بنابرین پول و تجهزات لازم در اختیار او گذاشت تا گارد ریاست جمهوری جدیدی با حقوق و مزایای بالا که چیزی کمتر از ارتش خصوصی او نبود بوجود آورد. (ص ١٦٨) کتاب کاروال:

ورانخوف سفیر شوروي اضافه میکند: "اقای نجیب الله در سمت ریاست جمهوری، تمام امید ها را برای تشکیل حکومت ایتلافی را از بین می برد. به نظر او پُست ریاست جمهوری باید خالی می ماند یا برای ظا هر شاه در نظر گرفته می شد"... و اضافه میکند "نجیب الله سپس ازین پیشنهاد خیلی ناراحت شد و یکبار دیگر به کمک حامیانش در مسکو، به گرباچوف بی اعتنایئ کرده صریحاً اعلان نمود که پُست ریاست جمهوری را به حزب وطن (یعنی بخود) معقول میبینند".

وګورئ چې نجیب الله (فرزند طلایئ کې. جي. بي.) د کې. جي. بي. په زور حتی ګورباچوف ته بې اعتنایې کوي دا په دې معنا چې د ګورباچوف زور هم له کې. جي. بي. سره برابر نه دی او ډاکټر صاحب د کې. جي. بي. په زور او مشوره سره په قدرت کې ځان چسپولی دی - حتی ظاهر شاه ته خپل مقام نه پریږدي.

د نجیب الله نظامي مشاور ستر جنرال ګارییف په خپل کتاب (ص ۱۵۷) کې

ليکي: در مجموع نجيب الله... نتوانست در پيرامون خود رهبران بلندپايهٔ سياسی و نظامی افغانستان را متحد گرداند، نجيب الله به شوروي تنفر و انزجار خود در برابر خلقی ها عيان نميگرداند. خلقی ها نيز رفتار مشابه داشتند. نجيب الله نسبت به هر کسيکه در حلقه نزديکش شامل نبودند نهايت سوء ظن داشت و در برابر دوستان ديرين خود (پرچمی ها) بيش از حد ضعف داشت.

چنانچه اکثراً از جنرال باقی متنفر بودند مگر نجيب الله نمی خواست او را از خود دور کند. جنرال ماهوکی منگل... رئيس سياسی وزارت دفاع نيز انسان خود سر و کله شخی بود... در نخستين سفر من به جلال آباد، معاون رياست اداره عملياتی وزارت دفاع، جنرال اسماعيل (خلقی)... همرای من بود. از ديدگاه حرفه يي او يکی از ورزيده ترين و کاردان ترين جنرال های افغانی بود... او با خدمت در ستاد جبهه جلال آباد به خود اجازه داد چند انتقاد ناگوار مگر عادلانه در باره کاربرد نا بخردانه نيرو و وسايل گسيل شده به جلال آباد به عمل اورد.

انتقادات جنرال اسماعيل را بلادرنگ به جنرال ماهوکی منگل (گورنر جنرال) گزارش دادند. من از زبان ديگران شنيدم که جنرال منهوکی منگل، شب هنگام چند سرباز را به اتاق خواب جنرال اسماعل فرستاده که به لت و کوب و خفه کردن او پرداختند. تنها آمدن جنرال دلاور که بلند شدن سر و صدا به اتاق جنرال اسماعيل وارد شده مانع کشته شدن او گرديد.

من اين ماجرا را به رئيس جمهور نجيب الله باز گو کردم و خاطر نشان ساختم که به اين ترتيب، هم به نجيب الله و هم به نماينده اتحاد شوروي توهين شده است.

نجيب الله وعده داد که موضوع را برسی و تدابير بايسته را اتخاذ ميکند. مگر بعد ها روشن شد که نجيب الله از جنرال منهوکی منگل تنها انتقاد شفاهی کرده بود.

د نجيب الله نظامي مشاور ستر جنرال گارييف وايي (ص ۸۴):

هنگام باز ديد وزير دفاع شهنواز تنی در فوريه سال ۱۹۹۰ از جلال آباد، فرمانده جبهه جلال آباد ډگر جنرال لودين (از شاخه پرچم) به پيشواز و ديدار وزير

دفاع نیامد و هم چنان در نشست قوماندانان... اشتراک نه ورزید در بارهٔ این مسئله که نقض ساده ترین انتظام و نظام ارتش بود، رئیس جمهور نجیب الله تنها به یک یاد آوری سطحی تلیفونی به لودین بسنده کرد. مگر در میان بورد رهبری نیرو های مسلح، این مسئله رسماً مطرح نگردید.

د جمهور رئیس نجیب الله په موضعگیری کې نه تنها توطئې، بلکې منفي تبلیغات د گوند په ضد هم را برسیره شول مثلاً نجیب الله څو، څو واره په رسمي ډول تبلیغ شروع کړ چې د خ. د. گ. ټوټې شوی دی:

۱ – د زرغون فرکسیون.

۲ – د کارمل فرکسیون.

۳ – د کشتمند فرکسیون.

۴ – د امین فرکسیون.

۵ – د وکیل فرکسیون.

٦ – د رفیع فرکسیون او داسې نور...

د دې تبلیغ موخه دا وه چې د ځ. .گوند بې وزنه او پراگنده وښيي او اوریدونکو ته دا پیغام ورسوي چې د خلک دیموکراتیک گوند گویا نشته او یگانه رهبر نجیب الله دی چې گویا په ټولو جبهو کې جنگیږي او مصالحه جوړوي. په دی ډول، نجیب الله او که کې. جي. بي. د ټولو گوندیانو څخه کودن جوړول، څو گوندیانو صادقانه د اصولو د تطبیق غوښتنه کوله او د گوند او وسله وال پوځ حمایت یې کاوه.

د کې. جي. بي. او نجیب الله د فریب او اغوا سیاست

حیلې، نیرنگ او د حقایقو تحریف جریان درلود د مصالحې له پاره امکانات موجود وو، مگر کې. جي. بي. او رئیس جمهور نجیب الله هغه ټول امکانات فلجول مثلاً:

د هیواد مشهوره څیره پاچا گل وفادار ته، جلال الدین حقانی احوال رالیږلی و، چې غواړي له ده سره د مصالحې په باره کې تماس پیدا کړي.

په دې وخت کې پاچا گل وفادار د هوانوردی وزیر و او جلال الدین حقاني د

افغانستان د ټولـو جهـادي قوماندانانـو د شـورا رئيـس و.

پاچـا ګل وفـادار د دې موضـوع پـه اړه جمهـور رئيـس نجيـب اللـه تـه راپورورکوي او هدايـت غـواړي. نجيـب اللـه ورتـه هدايـت ور کـوي چـې تمـاس ور سره ټينګ کړئ. د دوی تـر منځ تمـاس پيـدا او بالاخـره جـلال الديـن حقـاني هيلـه کـوي چـې د پاچـا ګل وفـادار سره پخپلـه ليـده کاتـه وکـړي. پاچـا ګل وفـادار بيـا هـم نجيـب اللـه تـه ګـزارش ورکـوي او د مسـتقيم ملاقـات پـه بـاره کـې هدايـت غـواړي... متاسـفانه... ای کاش نجيـب اللـه مسـتقل تصميـم نيولـی شـوای...

نجيب الله د کې. جي. بي. تر هدايت لاندی پاچا ګل وفادار ته وايي:

تماس دې له جلال الدين حقاني سره قطع کړه.

پدې ډول له مصالحې سره لوبه کيږي...

خليـل اللـه کوهسـتانی د هېـواد بله مشـهوره څېـره د جمهور رئيس نجيب اللـه له خوا د مصالحـې د پروګـرام پـه خاطـر، تـګاب او نجـراب تـه اسـتول کيـږي، خليـل کوهسـتانی د خلـک ديموکراتيـک ګونـد د مرکـزي کميټـې غـړی، د انقـلابي شـورا غـړی او د ښـوونې او روزنېـد وزارت مُعيـن وو. پـه تـګاب او نجـراب کـې د محـل لـه جهـادي قوماندانانـو سره يـې وسـيع او ثمربخـش فعاليـت وکـړ. نومـوړي بـه پـه هـرو درې مياشـتو کـې کابـل تـه راتـه او جمهـور رئيـس تـه بـه يـې د کار ګـزارش وړانـدې کاوه. بالاخـره جهـادي قوماندانان د مصالحـې پروګـرام تـه آمـاده شـول. لـه دې وروسـته خليـل کوهسـتاني نجيـب اللـه تـه ګـزارش ورکـړ چـې جهـادي قوماندانـان آمـاده دي چـې لـه مصالحـې سره پيوسـت شي؛ نـور نـه غـواړي چـې جنـګ تـه ادامـه ور کـړي.

نجيب الله هدايت ور کوي چې قوماندانان د خاد ارګان ته تسليم کړه !

خليـل کوهسـتانی لـه هدايـت سره سـم، جهـادي قوماندانانـو تـه اعلانـوي - چـې تاسـو اوس د خـاد ارګان تـه تسـليموم ! جهـادي قوماندانـان کوهسـتانی صاحـب تـه وايي:

موږ له تا سره موافقه کړېده، موږ د خاد ارګان ته نه ورځو.

کوهستانی صاحب بيا نجيب الله ته د عين موضوع ګزارش ورکوي.

جمهور رئیس نجیب الله، کوهستاني صاحب ته هدایت ورکوي: تماس دې له جهادي قوماندانانو سره قطع کړه.

د جمهور رئیس نجیب الله دا ډول ډراماتیک حرکات او زیګزاګ رفتار د ملي مصالحې پر ضد د ګوندیانو په ذهن کې تداعی کول، ځکه د نوموړي وروستي هدایت د کې. جي. بي. دیکته ده.

دلته هاشم نوري په یوه لنډ یادښت کې وايي:

د ۱۳٦۵ کال د جمهور رئیس نجیب الله د حاکمیت لومړی کال و پدې وخت کې څو تنه متقاعد لوړ رتبه نظامیان د انقلابي شورا غړی شوي وو، د ارګ په جومات کې مو د اختر لمونځ ادا کړ او له هغه نه وروسته قصر ته پورته شوو. د کښیناستلو په وخت کې د تصادف له مخې متقاعد ډګر جنرال نیک محمد سهاک زما تر څنګ کښیناست، ده ته مې د حربي پوهنتون یوه خاطره ور په یاد کړه. هغه وخت دی ډګروال و او مونږ خارج ته انتخاب شوي وو. فقط یوه هفته په حربي پوهنتون (بالا حصار) کې معطل شوو. چې یوه ورځ یې یوې غونډۍ ته بوتلو او هلته یې یوه تاریخي موضوع د انګریزانو د وخت د نیک محمد سهاک له خوا د درس په ډول راته تشریح کړه، جالبه دا وه چې ډګروال نیک محمد سهاک په پښتو ژبه درس تشریح او دا اولین وار و چې په نظامي ماحول کې مې په پښتو ژبه خبرې یا تاریخي څېړنه واورېده.

په اوسني وخت کې نوموړي ډګر جنرال و او په قصر کې یې سترګې ګډولې، نو ما ورڅخه پوښتنه وکړه چې په دې قصر کې څو واره د اعلیحضرت ظاهر شاه په لیدلو مشرف شوی دی؟ جنرال صاحب ځواب را کړ چې دوه ځلې مشرف شوی دی.

وروسته مې بله پوښتنه ځنې وکړه چې آیا اعلیحضرت ظاهر شاه مصالحې ته نه راځي؟ جنرال صاحب سهاک ځواب راکړ:

ما د ډاکټر صاحب نجیب سره د ظاهر شاه په باب څو واره خبرې کړې دي، خو ډاکټر صاحب نجیب وايي چې زما په کابینه کې د دفاع وزیر جنرال شهنواز تنی او د داخله وزیر ګلاب زوی ډېر ځوانان دي او له انقلابه نه تیرېږي او که نه زه خو اعلیحضرت ظاهر شاه ته بلنه ور کوم.

وګورئ چې جمهور رئیس نجیب الله د خپل حاکمیت د لومړیو میاشتو څخه د خلقي وزیرانو د ځپلو له پاره ځنګه په لوړه سویه ظریفانه او په عین حال کې زهرجن تبلیغات شروع کړي وو.

په حقیقت کې دا ډول رویې ته په هره ژبه لطایف الحیل ویل کیږي.

هـ. نوري په بله خاطره کې وایي:

په همهغه ۱۳٦۵ کال کې یو حقوقي پلاوی، چې زه یې هم غړی وم، د شوروي پر لور د تعاطي تجربو په مقصد روان شو.

د پلاوي مشرکې د افغانستان د جمهوریت لوی څارنوال ملګری راسخ و. د هغه سفر په ترڅ کې مو یوه ورځ د کرملین په ماڼۍ کې د سیاسي بیرو علی البدل غړی او د دوما (مجلس) معاون - دیمي چیف سره ملاقات درلود. هغه وخت د دوما رئیس ګرومیکو (پخوانی د اوږد مهال خارجه وزیر)، و.

د ملاقات وخت یو ساعت ټاکل شوی و. ملاقات د مراسمو سره سم شروع شو، افغاني پلاوی د اوږده مېز یوې غاړې ته او دیمي چیف د مېز بلې غاړې ته کښیناستل.

میزبان (دیمي چیف) افغاني مېلمنو ته د ښه راغلاست خبره تکرار او په داسې حال کې چې راسخ صاحب ته مخامخ ناست و خپله پوښتنه داسې طرح کړه:

حزبیان (یعنې د خ. د. ګوند غړي) دا وروستی تغیر څنګه ارزیابي کوي؟ یعنې د کارمل په ځای د نجیب الله تقرر... !

ملګري راسخ په داسې حال کې چې لهجې یې د ناخوښۍ ترجماني کوله، په دوو جملو کې خپل مطلب دا ډول افاده کړ (رفقای حزبی میګویند - دستور حزب را قبول داریم).

افغان پلاوي نور هیڅ خبره ونه کړه او دیمي چیف د ترجمان له لارې یو ساعت خبرې وکړې، د نوموړي په بیان کې مرکزي خبره داسې نغښتې وه:

موږ د ببرک کارمل سره د مصالحې په باره کې ډېر کار وکړ، خو متاسفانه

کارمل زموږ موقف او هدف درست ارزیابي نه کړل، نو ځکه دا وروستی تغیر (د کارمل پر ځای نجیب راوستل ) را منځته شو. نجیب الله زموږ په مقصد ښه پوهیږ - هغه ملی مصالحه چې شوروي پکې علاقمند دی، د نجیب الله په لاس په مناسب ډول تکامل کولی شي (یعنې د افغانستان تجزیه). نه پوهیږم چې د دیمي چیف خبرې په فارسي څنګه ترجمه کېدلې؟ خو زه خپله روسي متن ته ډېر متوجه وم او بر داشت می دا ډول و چې دا افغاني مصالحه نه؛ بلکې روسي (د کې. جي. بي) مصالحه وه چې اصلي هدف یې د شمال اتحاد جوړول او د افغانستان تجزیه وه.



# اووم څپرکی

## ملي مصالحه، د خلقيانو له نظره

رومی های قدیم میگفتند: اگر صلح میخواهی، برای جنگ آماده باش !

ملي مصالحه په حقيقت کې زموږ د ولس، ګوند او وسله وال پوځ د مرګ او ژوند مسئله وه.

ملي مصالحه د ماهيت او مضمون له مخې زموږ د هېواد د وياړلي تاريخ ادامه وه.

د نجيب الله د حاکميت تقريباً د دوو کلونو په اوږدو کې دا خوشبيني موجوده وه، چې ملي مصالحه به د افغانانو په متو تکيه ولري، خو تدريجاً د رهبر (نجيب الله) په ځيره کې مشکوک مانورونه، وهل پورې وهل او کثيفې لوبې او توطيې را وخوټېدلې. د دغو مانورو او دسيسو چې خورا ډېرې دي، څو نمونې وړاندې کيږي:

۱ - د داخله وزير (ګلاب زوی) تبعيد په ۲۴ ساعتو کې عملي شو.

۲ - د صالح محمد زيري پر ضد د نجيب الله ترور توطيه ډېره دقيقه سنجول شوې وه، خو نوموړی په تصادفي ډول ور څخه ژوندی را ووت. دا ترور د شپې شاو خوا په اتو بجو د حربي فابريکې په ساحه کې سازماندهي شوی و، چې تياره وه او په هره لحظه کې د دې نقطې څخه په لسګونو موټرونه تېرېدل. داسې معلومیږي چې دا ترور په لوړه سطحه کې طرح شوی و. بې له کې. جي. بي.

بل چا داسې دقیق سنجولی نه شوای.

۳ – د ګلاب زوی له تبعید نه وروسته د کورنیو چارو وزارت رزمي قطعات د نجیب الله په امر د امنیت وزارت ته تسلیم شول (ورکړل شول).

۴ – د ملي اردو سره موازي، د ګارد په نامه یو تشکیل جوړ شو چې امتیازات یې له ملي اردو څخه لوړ و.

۵ – که څه هم د ګلاب زوی په عوض یې اسلم وطنجار د داخله وزیر په توګه وټاکه او بیا یې د دفاع وزیر وټاکه، خو ډېر وخت لا تېر شوی نه و چې وطنجار یې په مرکزي کمیټه کې ګروګان کېناوه او صلاحیتونه یې نبي عظیمي ته وروسپارل.

٦ – د نجیب الله لخوا احمد شاه مسعود ته د شمال شپږ ولایتونه د تاجکستان خود مختار شمالي په نامه ور کړل شول - دا موضوع د جنرال ګروموف په کتاب کې لیکل شوې ده.

۷ – جمهور رئیس نجیب الله لویه جرګه را وغوښته او د لویې جرګې نمایندګان یې د کابل په لوکسو هوټلونو کې د خاد تر کنترول لاندې ځای پر ځای کړل چې د بل چا تماس ور سره منع و.

۸ – د لویې جرګې په جلسه کې ډاکټر نجیب الله پیشنهاد وکړ چې باید رئیس جمهور ته صلاحیت په قانون کې تسجیل شي چې پایتخت کوم بل ځای ته انتقال کړي - هدف دا وه چې پایتخت مزارشریف ته انتقال کړي.

۹ – نجیب الله د امنیت وزارت ته دومره صلاحیتونه ور کړي وو چې په حقیقت کې په دولت کې یو بل دولت جوړ شوی و.

۱۰ – ملي مصالحه په مثلث کې زنداني شوه، یعنې د (نجیب الله، یعقوبي، وکیل) په منځ کې پاتې شوه.

په هغه پلینوم کې، چې د بهرنیو چارو وزارت په زیر زمیني کې - دایر شو، پنجشیري صاحب یو تاریخي پیشنهاد وکړ چې مصالحه د دې مثلث نه خارجه شي او ګوند ته اختیار ورکړل شي چې د مصالحې پروګرام رهبري او سازماندهي کړي، خو ډاکټر صاحب نجیب الله دا صلاحیت ګوند ته ورنکړ.

۱۱ - د کې. جي. بي. په دستور، ډاکټر صاحب نجیب الله ګورباچوف ته یو لیک لیږي ، یادونه او وړاندیزکوي چې په افغانستان کې په قومي (اتنیکي) بنسټ زونونه جوړ شي لکه: هزاره جات، نورستان او تاجکستان خود مختار شمالي... چې دا هم د کې. جي. بي. هدایت او دسیسه وه.

۱۲ - ګوندیانو د ډیورنډ له مسئلې سره موافقه نه کوله، ځکه دا د جیوپولیتیک د رقابتي عواقبو څخه پاتې وه، خو نجیب الله په خوشحالۍ سره قبوله کړه.

۱۳ - ټولو ګوندیانو انتخابات غوښتل، ځکه په ګوند کې یوه مرکزي قومانده چلېده او اصول کاملاً هېر شوي یا نادیده حساب شوي وو.

د جنرال لیاخوفسکی کتاب (ص ۳۹۸) کې راغلي دي:

دګوند غړي حالات ارزیابي کوي او وايي : نجیب الله، حزب د ماتې پر لور ټیله کوي.

د ګوند غړو په ګوندي سازمانونو، ولایتي او ښاري، ناحیوي کمېټو، د خلک دیموکراتیک ګوند په مرکزي کمیټه او سیاسي بیرو او دارالانشأ کې هم د نجیب الله له کړنو نه په ډاګه خپله ناخوښي څرګندوله. هغوی نجیب الله پدې تورنوه چې دی نشي کولای د جګړې په راتلونکی پړاو کې د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند تاکتیک او ستراتیژي په سمه توګه وټاکي، دندې په ناڅرګنده ډول په مخ وړل کېږدي، په ګوند کې د چارو د حالت او د ګوند د راتلونکي په باب رښتیا نه وايي او پدې ډول سره د افغانستان خلک دیموکراتیک ګوند د سیاسي ماتې کندې ته ورټیله کوي.

خلقیانو له کادري سیاست نه په ډاګه خپله ناخوښي څرګندوله. د خلق جناح د ۱۹۸۸ کال په مې میاشت کې د شوروي اتحاد ګوند مرکزي کمیټې ته یو ځانګړی لیک او طرحه واستوله چې دغه طرحه وروسته د نجیب الله ګوتو ته ورغله.

ولې ډاکټر نجیب الله د ببرک کارمل ځایناستی شو؟

رښتیا خبره دا ده چې د شوروي نظامیانو دوه تنه په نظر کې لرل چې د کارمل جانشین شي:

سلطان علی کشتمند او یا جنرال عبدالقادر (دملی دفاع وزیر).

مګر د کې. جي. بي. کاندید نجیب الله و، طبیعی ده چې نظامیان د صلاحیت

په لحاظ لـه کـې. جـي. بي. سره د مقايسـې وړ نـه و. لکه څنګـه چې د نجيب الله نظامي مشـاور سـتر جـنرال ګارييـف پـه خپـل «افغانسـتان پـس از باز ګشـت سـپاهيان شـوروي» نومـي کتاب کـې ليکي:

«مګـر بـاز تـاب آن وضـع کـه کـې. جـي. بي. در اتحـاد شـوروي بـه دولتـی در ميان دولـت، مبـدل ګرديـده بـود، در نماينـدګـی هـای مـا در خـارج عيـان بود»

مخکـې لـه هـر څـه بايـد ووايـم چـې خلقيانو د نجيـب الله لـه حاکميت څخه پـه ډېره خوشـحالۍ اسـتقبال وکـړ او هرکلـی ورتـه وويـل شـو او هيلـه منـد و چـې نجيـب الله يو سـازمانده، بـا انـرژي، څهار شـانه ځوان دی، تکړه نطـاق او د معلوماتو خاونـد دی. نو د دې ځيـلي هېـواد پـه غـم بـه شريـک شي او د ده تـر رهـبرۍ لانـدې بـه هـرو مـرو هېـواد د ثبات پـه لـور روان شي !

دا ډول خوشباوري او هيله مندي څه له پاسه دوه کاله لا په خپل قوت پاتې وه.

د نجيـب اللـه پـه حاکميـت کـې د دېموکراسـۍ او آزادۍ بيـان هيلـې (اميدونـه) را وغوړېـدل ځکـه د ا. خ. د. ګ. پـه څنـګ کـې د نـورو ګوندونـو جوړېـدل او رسـمي کېـدل تصويـب شـول، پلوراليـزم سـياسي او مـلي مصالحه يې اعـلان کړل. په دې اسـتقامت کې کار پـه چټکـۍ سره پـه مخ روان و. خلقيانو د شـوروي نظامي قوتونـو وتل په نيک فال ومنل او د مسـتقلې دفـاع لـه پـاره يې آمادګي نيولـه. د خلقيانو باور دا و چې شـورويان وځي او زموږ هېـواد بـه بېرته اسـتقلال ولـري او نجيـب الله به پـه خپلـو اوږو ګرځوو.

د وخـت پـه تېرېـدو سره خارجـي (روسي) مشـاورينو يو لړ تبليغـات شروع کړل او خپل پيغـام يې په لانـدې ډول خلقيانو ته رسـاوه:

۱ - مجاهديـن بـه پـه کابـل کـې سـياسي قـدرت واخلي، تاسـو ګونديـان بـه لـه اطفالو سره مـړه کـړي.
۲ - ټـول حزبيـان (خلـق، پرچم) به د افغانسـتان شـمال تـه انتقال کـړو او مزارشريف بـه پايتخـت وټاکو.
۳ - په شمال کې به کلخوزونه او سوخوزونه درته جوړ کړو...
۴ - د سالنګ پـه سر به قوي اسـتحکامات (پُسـتې) جوړې کړو چې لـه جنوب څخه

هیڅوک ونه شی کولای چې شمال ته عبور وکړي.

۵ - افغانستان به په شمال او جنوب تجزیه کړو.

٦ - بیا به وروسته جنوب په خپله وغواړي چې له شماله سره یو ځای شي.

خو خلقي کادرونو، سره له دې چې یو د بل څخه خبر نه وو د دغه پلان سره په افغاني شیوه (غرور او پرخاشګري) مخالفت وکړ.

د شورویانو لپاره دا ډول مخالفت د هضم او تحمل وړ نه و.

خو خلقیانو ته د افغانستان تجزیه د تحمل وړ نه وه.

همدا رنګه خلقیانو د ډیورنډ خط په رسمیت پیژندلو سره موافقه نه کوله.

د دغه تضاد د سوله ییز حل په باره کې صادقانه تلاشونه وشول، خو د کې. جي. بي. پلان په پټه روان و او د ډاکټر نجیب الله ماغزه یې په لاس کې کلک نیولي وو - یعني هر څه چې به کې. جي. بي. وویل، نجیب الله به د طوطي غوندې هماغه خبره تکراروله.

د هغه وخت کیسې ډېرې دي، خو د کې. جي. بي. هدف یو و - (د افغانستان تجزیه).

نو کې. جي. بي. مجبوره وه د نجیب الله په لاس خلقیانو ته توطیې او دسیسې جوړې کړې، تر څو خلقیان ضعیف شي او د افغانستان له تجزیې سره موافقه وکړي.

له بلې خوا د ګوندي غړو (خلقیانو) غوښتنې له ډاکټر نجیب الله څخه په لاندې ډول وې:

د خلقیانو غوښتنې پټې نه وې او په ښکاره توګه یې بیانولې. خو په ۱۳٦۸ کال کې یې دې غوښتنو ته له دې هم زور ورکړ او په ډاګه یې په ګوندي غونډو کې د ګوند م. ک. د سیاسي بیرو او مرکزي کمیټې د نورو غړو پر وړاندې په څرګندو ټکو کې په زغرده مخامخ طرح کولې او د ګوند د غړو پر وړاندې یې په لیکلې توګه ثبوتولې. دا ټولې هڅې د دې په خاطر وې چې په ګوند کې دېموکراسي پراخه او ډېر حاکم مرکزیت کمزوری او د دواړو (دېموکراسۍ او مرکزیت) تر منځ اعتدال برابر شي. بل په دې وجه چې شوروي قوتونه او سلا کاران ټول د جینوا د موافقې پر اساس وځي او د دولت او هېواد د دفاع چارې په خپله افغانان پر غاړه اخلي چې په عملي توګه دا چارې د جګړې او د دفاع په لومړي سنګر کې د افغانستان وسله وال پوځ تر سره کولې چې درونډ بار یې د افغانستان

د اردو پر اوږو او دربېم دا چې دا ستره دفاعي دنده په ښه توگه اجرا شي، نو لازمه وه چې کار اهل د کار ته وسپارل شي، نه د ځينو په لاس انحصار. تر ټولو مهمه دا وه چې په وسله وال پوځ کې د وظيفې او مسئوليت د څرنگوالي پر اساس مادي او معنوي امتيازات وټاکل شي، تر څو تبعيض له منځه ولاړ شي او د يوې غښتلې ملي او وطني روحيې پر اساس د وسله والو مخالفينو پر وړاندې خپله ملي وجيبه ادا کړي. نو همدا وجه وه چې په لاندې توگه د گوندي سازمانونو غوښتنې طرحه کېدلې:

۱ - په ټولنه او گوندي ژوند کې د دېموکراسۍ د غښتلتيا او قانوني ژوند د جاري کولو په خاطر د گوند د اساس نامې پر اساس د دېموکرتيکو انتخاباتو له لارې د گوندي گنگرې را بلل.

۲ - له ټيټو تر لوړو د ټولو گوندي مقامونو انتخابي کول.

۳ - د سالم کادري سياست پر مخ بېول. په ټول وسله وال پوځ کې د وضع الجيشي او دندې تر سره کولو پر اساس د مادي او معنوي امتيازاتو ټاکل.

۴ - د گارد د قوتونو د لوړو امتيازاتو لغوه کول.

۵ - د گوندي سياسي زندانيانو راخوشي کول، بې له کوم شرط او قيد څخه.

٦ - په دولتي قدرت کې د انحصار لغوه کول.

۷ - د دولتي امنيت د ادارې بې جلوه او بې پوښتنې واکمنې ختمول او د قانون په چوکاټ کې يې فعاليت تنظيمول، نه دا چې په دولت او گوند باندې حاکم وي.

۸ - د تحقيق او تعقيب په بهير کې د خپل سري زور زياتي او ځورونې پای ته رسول.

۹ - د عمومي پخلاينې په خاطر ملي مصالحه بايد په هېواد کې سوله ټينگه، دېموکراسي پياوړې، اتفاق غښتلی، او نفاق او کرکه په نامه او لباس کې چې وي، له منځه يوسي.

۱۰ - د مليشې قوتونو روزنه او پالنه په افغانستان کې د امن او ټيکاو (ثبات) په خاطر وي نه د سياسي او گوندي دېموکراسي د ځپلو او فردي ديکتاتورۍ پاللو او ولس د ډارولو او ځورولو په خاطر. مليشې بايد خپل سرې نه وي، بلکې د قانون تابع وي.

د گوندي سازمانونو د غوښتنو اصلي محتوا په همدغو ټکو را څرخېده. خو نجيب الله او

مشاورینو یې دا قانوني غوښتنې چې د هر چا مشکل پکې حل کېدای شوای، سرکوب کړلې.

د «افغانستان در منگنه جیوپولیتیک» کتاب چې له روسي ژبې په فارسي ژباړل شوی دی په (ص ۱۰۰) کې داسې متن راغلی دی:

در اکتوبر ۱۹۸۳ در پلینوم کمیتهٔ مرکزی ح. د. خ. ا. تصمیم گرفته شد - کنگره حزبی در طی میعادی نه دیر تر از ۲۷ اپریل ۱۹۸۸ یعنی تا دهمین سالگرد انقلاب اپریل برگزار گردد. مگر هرگز کنگره دایر نشد. خلقی ها اشکارا ازین گونه چرخش اوضاع ناخوشنود بودند... با پشت پازدن به فیصله پلینوم مبنی بر برگزاری کنگره، خلقی ها رئیس جمهور نجیب الله را به معنی حفظ دیکتاتوری شخصی و دیکتاتوری پرچمی ها ارزیابی نمودند (ص ۱۰۱).

د همدغه کتاب (افغانستان در منگنه جیوپولیتیک) په ۹۷ مخ کې راغلي دي:

رئیس جمهور نجیب الله، در هماهنگی با جانب شوروي ذخایر چشمگیر ستراتیژیک مهمات و سوخت انبار گردیده بود... توانست کادر های وفادار بخود را در برخی گارنیزون ها بویژه قوای مرکز در کابل، سپا یکم در جلال آباد، سپا دوم در قندهار و سپا چهارم در هرات بگمارد. مگر تدبیر عمده رئیس جمهور را باید ایجاد گارد ملی شمرد که بسیار خوب مسلح و از نظر ساختاری مربوط امنیت دولتی (خاد) بود ( ص ۹۷).

د نورو لیکوالانو او تحلیلگرانو نظریاتو ته به وروسته بیا را وګرځو، خو اوس به د کې. جي. بي. اصلي پلان ته یو نظر واچوو چې دا لاندې مطالب په کې شامل وو:

۱ - لویه جرګه باید را وغوښتل شي چې نجیب الله د جمهور رئیس په حیث انتخاب شي او د افغانستان د پایتخت انتقال د جمهور رئیس په صلاحیت کې تسجیل شي.

۲ - د خلق او پرچم تضادونه باید وپرسیږي.

۳ - د ډیورنډ خط باید د جینوا په توافقاتو کې په رسمیت وپېژندل شي.

۴ - د شمال اتحاد باید جوړ شي.

۵ - د انتخاباتو (کنګرې) سوال په هر حال باید رد شي.

۶- افغانستان باید په شمال او جنوب تجزیه شي.

۷- که خلقیان په قدرت کې شامل وې نو کې. جي. بي. د دی پورته هدفونو په

لاره کې د مشکل سره مخامخ کيږي.

۸ـ که کارمل په قدرت کې پاتې وي، نوموړی به حاضر نه شي چې د خلقيانو سره ټکر وکړي.

۹ـ د دغه پلان د تحقق له پاره بايد کارمل مسکو ته واستول شي او بيا د خلقيانو ضعيفول او سرکوبول شروع شي.

۱۰- د کارمل په عوض يو خون گرمه زلمی کادر چې د مسئوليت احساس په کې زايل وي وټاکل شي.

۱۱- د خلقيانو د ټکولو له پاره بايد يوه کودتا سازماندهي او خلقيان وربانـدې اخته او محکوم شي.

۱۲ـ د خلقيانو له جملې څخه يو څو تنه سمبوليک په قدرت کې جذب شي.

۱۳ـ دا پورتنی پلان د بل رهبر په وجود کې نه شوای پياده کيدای، نو له د کبله ډاکټر نجيب الله د ببرک کارمل جانشين شو.

د کې. جي. بي. سره دقيقه محاسبه موجوده وه چې نجيب الله په آينده کې:

۱ - په افغانستان کې ځای نه لري.

۲ - د خلق دېموکراتيک متحد گوند کې ځای نلري.

۳ - د پرچم په گروپ کې ځای نلري.

۴ - په قوای مسلح کې ځای نلري.

۵ - په کې. جي. بي. کې منحل دی او منحل به پاتې شي.

مرحوم خليل الله کوهستانی چې د مرکزي کميټې غړی او د ښوونې او روزنې د وزارت معين و، هاشم نوري ته د پل څرخي په زندان کې داسې حکايت کړی و:

يوه ورځ د جمهور رئيس (نجيب الله) حضور ته ورغلم او د پخوانۍ مشترکې مبارزې او اعتماد پر بنياد مې ورته محتاطانه عرض وکړ چې:

بهتر خواهد بود که خط خارجی (روابط) خود را اندکی تخفيف داده و خط داخلی خويش را تقويت نماييد ! دکتور نجيب الله با تبسم معنی دار چنين جواب داد: «من در مسکو منحل هستم.»

د ډاکتر نجیب الله تبسم او مسکو ته مخلصانه عقیده ډېر سوالونه را زیږوي:

۱ - د ۱۳۵۸ کال د جدي شپږم تحول، د شوروي تجاوز و که نه؟

۲ - زموږ د گوند او هېواد وروستي رهبران (محترم کارمل او محترم نجیب الله) د شوروي د کې. جي. بي. مهري وې که نه؟

۳ - مصالحه: دا افغاني مصالحه وه او که د شوروي (کې. جي. بي.) مصالحه وه؟

۴ - د مصالحې مبتکرین افغانان وو او که روسان؟

۵ - هغه مصالحه چې د ډاکتر صاحب نجیب الله په فصیحه ژبه لفظاً تکرارېدله، مصالحه وه او که سیاسي - نظامي کاپیتولاسیون و؟

٦ - مصالحه ممکنه وه که نه؟

۷ - مصالحه په مثلث کې زنداني وه که نه؟

۸ - د ۱۳٦۸ کال د حوت شپاړسمه حادثه د کې. جي. بي. په لاس جوړه شوې وه که نه؟

۹ - د ۱۳٦۸ کال د حوت شپاړسمې رویداد، یوه کودتا وه او که نظامي تصادم و؟

۱۰ - ملي اردو د ملي مصالحې اجرایوي ضامنه وه او که نه؟

اوس د لس گونو پوښتنو لنډ ځوابونه:

۱ - په افغانانو کې به داسې څوک پیدا نه شي چې د شوروي د ٦ د جدي تجاوز نا دیده وگڼي.

۲ - د ډاکتر محمد حسن کاکړ کتاب (۲ مخ) کې لیکل شوي چې پرچمي چارواکو د هغوی (روسانو) د خوښ ساتلو له پاره ارزښناک تاریخي اسناد په خوښۍ ورکول. په (۷۰ مخ) کې ځینې پرچم داران د کې. جي. بي. مستعار نوم لري.

د ډاکتر شاه زمان دریځ ستانیزي کتاب (۴۸ مخ) کې د نعیم خان (د داود خان ورور) خبرې دي، وایي:

ببرک کارمل زمانیکه خود را غلام حلقه بگوش سردار داود خان میدانست و پاهای او را می بوسید و جاسوسی میکرد امروز علیه او قرار دارد.

بل دا حقیقت چې نجیب الله په څومره چالاکۍ سره د کې. جي. بي. په دستور

افغانستان تجزيه کوي او په شمال (مزارشريف) کې د کې. جي. بي. په دستور، موازي حکومت جوړوي. همدارنګه ډاکټر صاحب نجيب الله څه ډول د افغانستان بانک ذخيره طلا، شوروي ته انتقالوي او صدراعظم حسن شرق څه ډول د طلا د انتقال مخ نيوی کوي؟

يا دا چې نجيب الله څنګه د ګورباچوف په دستور، له تاشکند څخه وکيل (وزير خارجه) ته هدايت ورکوي چې «اسناد ديورند را امضا کن.»

دغه مهم موضوعات به عليحده بيا هم وڅېړل شي...

۳ - ۴ - د (افغانستان در منګنه جيوپوليتيک) ۳۰ مخ:

که دا متن تکرار هم وي اړين يې بولم:

«نجيب الله بی ترديد سياست مدار هوشمند نيرنګباز، نيرومند و ګاهی هم بس خشن بود. بر خلاف شايع، نه او و نه کس ديګری از رهبران افغان انديشه مشی آشتی ملی را بميان نکشيدند. سناريو مصالحه ملی به دستور ګردانندګان کاخ کرملين در مسکو نوشته شده بود و جانب افغانی تنها مجری عادی اين طرح بود.»

دا متن افغاني تحليلګرانو ته يو روښن او قاطع ځواب دی، چې مصالحه د کې. جي. بي. طرحه وه او د افغانانو د اغوا کولو او بازي ورکولو په غرض يوه بازيچه وه. نو اړينه نه ده چې له دې وروسته هم افغانان وغولوو.

۵ - د مختلفو اسنادو پر بنا... مصالحه - دا يو سياسي - نظامي کاپيتولاسيون و، چې هر چا په عمل کې وليدل چې د نجيب الله په لاسونو عملي شو.

٦ - ۷ - ملی مصالحه هغه وخت کېدی شوی او ممکنه وه چې مصالحه د دستګير پنجشيري له پيشنهاد سره سم له مثلث (رئيس جمهور - وزير امنيت دولتي - وزير خارجه) څخه خارج او د خلک ديموکراتيک ګوند ته د مصالحې رهبري او سازماندهي سپارل شوې وی...

۸ - د جمهور رئيس (نجيب الله) نظامي مشاور ستر جنرال محمود ګارييف کتاب (۷۹ مخ) کې ليکل شوي دي:

«برای من غير قابل درک بود که چرا رئيس جمهور تمايل نداشت جلو شورش را

از راه های صلح آمیز بگیرد، بلکې آگاهانه آنرا بر می انگیخت. شاید او می خواست این امکان را بدست بیاورد که با نیروی نظامی حریفان سیاسی خود را بکوبد، شاید او می پنداشت که حتی هرگاه بتواند از راه صلح پیش آید، خلقی ها موقتاً از کودتا منصرف گردیده... و بار دیگر به فکر سرکشی خواهند افتاد...»

با توجه به همین امر، عده ای از نظامیان و دیپلومات های شوروي در کابل گمان می کردند که سناریوی کودتا را کې. جي. بي. در مسکو نگاشته بود. بر پایه این سناریو از یکسو کې. جي. بي.، تنی را به کودتا و از سوی دیگر پنهانی نجیب را برای سرکوب آن از پیش آماده گردانیده بود.

۹ - د نظامی قواعدو پر بنا د ۱۳٦۸ د حوت شپاړلسمې پېښه، يوه کودتا نه وه؛ بلکې يو نظامي تصادم و، ځکه کودتا يو کال دوام نه کوي بلکې يو پټ او ناڅاپي عمل ته کودتا ويل کيږي چې معمولاً د شپې له خوا اجرا کيږي.

۱۰ - بلې ! بې له شکه، ملي اردو د ملي مصالحې د تحقق له پاره اجرايوي ضمانت او قوت و.

باید په یاد ولرو چې اردو نه تنها د ملي مصالحې، بلکې د هېواد د خپلواکۍ، ځمکنۍ بشپړتیا او ملي حاکمیت ساتونکې او ضمانت کونکې ده.

هغه ولس چې ملي اردو ونلري د خپل هېواد استقلال نه شي ساتلی. له همدې کبله ده چې هر هېواد د ملي اردو د جوړولو او تجهيزاتو له پاره خورا ډېر مصارف کوي، تر څو ملي اردو د ملي ارزښتونو ساتنه وکولی شي. خو د افغانستان جمهور رئيس نجيب الله د اردو سره ښکاره دښمني کوله او د ځان د حفاظت له پاره يې د اردو په عوض ځانته شخصي گارد جوړ کړ.

# اتم څپرکی

## د نجیب الله د ګارد جوړول خنګه شروع شول

مرحوم یعقوبي د امنیت وزیر په توګه د جلسې په جریان کې پیشنهاد وکړ چې تصمیم لري د خپلې دندې پر بنا د جمهور رئیس د ساتنې له پاره یوه لوا جوړه کړي. خو نجیب الله د کې. جي. بي. په مشوره دغه لوا تدریجاً د اردو له تشکیل څخه هم لویه کړه او روسانو ورته موډرن تجهیزات هم ورکړل، وروسته په یو لوی قدرت بدله شوه.

د ګارد له پاره د اردو په قطعاتو کې د خاد فلترونه جوړ شول، د دغو فلترونو وظیفه دا وه چې څوک (خلقي) ګارد ته جذب نه شي نور هر څوک چې وي جذب دې شي.

په هغه وخت کې جنرال رفیع وزیر دفاع و. د جنرال رفیع په امضا دوه لیستونه د هغو کسانو چې ګارد ته له نظامي قطعاتو څخه فلتر شوي وو لاسته راغلل چې په یوه لیست کې ۵۰۰ تنه او په بل لیست کې ۲۰۰ تنه شامل چې کوم خلقي پکې شامل نه و. د ملکي دفاع له ریاست څخه چې جنرال دوست محمد یې رئیس و د مشاور جنرال کیبل په واسطه یو خلقي افسر ګارد ته جذب شوی و، په ګارد کې د عاصم په نامه یو پرچمي آمر سیاسي و چې دغه خلقي افسر ځان ته ورغواړي او پوښتنې ورڅخه کوي چې د چا له خوا؟ په کوم ځای کې؟ حزب ته جذب شوی

دی؟ معمول نه وه چې څوک چاته ووایي چې خلقي یې که پرچمي؟ ځکه دا ګویا د تعصب علامه وه.

محمد عاصم د ګارد جمهوري سیاسي امر د خاد له کانالو څخه ګټه اخلي د هغه افسر سوانح پیدا کوي چې دغه افسر یې جذب کړی دی فرضاً نوم به یې (x) کېږدو، بلاخره معلومیږي چې (x) د خلقي جناح دکادرونو له جملې څخه دی، نو بناً دغه افسر هم د خلقي په حکم کې دی.

نو تقریباً د دوو یا دریو میاشتو وروسته رسماً مکتوب لیکل کیږي او صادریږي چې دغه افسر باید خپل ملکي دفاع ریاست ته ولاړ شي او له جمهوري ګارد څخه منفک دی.

دغه ډول تعصبونه، توطیې او کثیفې لوبې د ډاکټر نجیب الله په رژیم کې هره ورځ په سلګونو ځله د لیدلو او لمسولو وړ وې.



## د محمد هاشم نوري یو لنډ بیان

د ۱۳۶۷ کال په پسرلي کې مې د رفیع (د جمهور رئیس معاون) او مرحوم کاروال سره په یوه جلسه کې ګډون درلود. د جلسې په پای کې رفیع راته وویل: «رفیق هاشم خودت باشی».

له هغه نه وروسته د رفیع دفتر ته ولاړو - چای، کلچې او نور شیان د میز په سر تیار و . رفیع راته وویل - رفیق هاشم ! بحیث یک صاحب نظر برایم بگویید:

۱ - وضع در حزب چگونه است؟

۲ - نظر خودت در مورد مصالحه ملی چیست؟

زه (نوري) دومره پوه شوم چې رفیع د نجیب الله له اجازې پرته دا سوالونه ماته نه طرح کوي.

ما (نوري) د پورته دوو سوالو په برخه کې په یو څه تفصیل سره خبرې وکړې چې دلته یې موجز ټکي را اخلم... په آخیری نتیجه کې ما ورته وویل - راځئ په

دی حزب اتـکا وکړئ دا حزب پـه تاسو پسې ځي. د مصالحې پـه بـاب هـم مفصلې خبرې وشوې خو لنډه نتيجه يې داده:

ما وويل: مجاهدينو ته امتياز ور کړئ، تر څو په مصالحه کې علاقمند شي.

رفيع وويـل: مجاهديـن وزارت دفـاع غـواړي (مقصد دا و چې تنـې بايد ځـای خالي کړي).

ما ورته وويل: د دفاع وزارت په جرأت سره مجاهدينو ته ورکړئ.

رفيع ماته په ځير، ځير وکتل يعنې باور يې ونکړ ! بيا يې را ته وويل:

مجاهديـن د داخلـه چـارو وزارت هـم غـواړي. (احسـاس مـې دا و، چـې گلاب زوی بايـد ځـای خـالي کـړي). مـا ورتـه وويـل ور يـې کـړئ.

رفيع بيا را ته په ځير، ځير وکتل او بې له ځنډه يې دا خبره له خولې را ووته:

خَی وزارت امنيت دولتي را برای خود نگاه کنيم.

ما (نوري) ورته وويل: برای خود نگاه کنيد

ما (نوري) ورته وويل : ظاهر شاه راولئ.

رفيع وويـل : ظاهـر شاه لـه هـر چا نـه خطر نـاک دی، ځکـه ټول خلک بـه د ظاهر شاه په شـا و خـوا راټـول شي.

ما (نوري) ورته وويل : ملگری رفيع ! ملي مصالحهٔ تاکتيک ده که ستراتيژي؟

رفيع غلی شو، ځواب يې را نکړ.

لـه دی بحـث څخـه معلومېـده چـې نجيـب اللـه او د هغـه پلويـان يـې، سيـاسي قـدرت لـه چا سره نـه تقسـيموي، او تنهـا د گونـد او ولـس د غولولـو لـه پـاره د سولې کاذب او تـش شـعارونه تکـراروي.

هـر خومـره چـې لـه تېـرو تحولاتـو او حوادثـو څخـه زمـاني فاصلـه زياتيـږي، مـوږ د حقايقـو څخـه زيـات خبرېـږو، مـوږ چـې پـه پخوانيـو تحولاتـو کـې شـامل و تـر ډېـره حـده د حوادثـو منشـأ او عواقـب را معلـوم دي، خـو متأسـفانه اطلاعـات يـې پـه وسـيع پيمانـه

خپرېږي او ډېر ځله رښتيا د جعلياتو په منځ کې ورک وي.

مثلاً په بين المللي سطحه کې هرې خواته جګړې روانې دي او ورسره موازي تبليغات هم روان دي، باور دی چې جعلي او غرض آلوده تبليغات تر رښتينو تبلغاتو ډېر قوي دي. زموږ د هېواد اوسنی حالات يقيناً هيڅ هېوادوال ته د زغم وړ نه دی، وينې جاري دي، ترور، انفجار په ورځني موډ بدل شوی دی، څوک امنيت نلري، ټول ولس بې دفاع پاتې دی، خو د کابل رهبران په نعمتونو کې لامبو وهي.

زموږ خواره پخواني ملګري په بدبينيو او تعصباتو ککړ شوي دي او هر چا د يوه رهبر نه معبد جوړ کړی چې بايد نور ټول ورته اطاعت وکړي.

د ملي مصالحې او شپاړسم د حوت کودتا په هکله ليکنې کيږي، چې قلمونه ورسره سخت سرګردان دي، هر څوک ځانته برأت ورکوي او نور په خيانت متهم کوي، خو اصلي زيانونه نه روښانه کوي. فکر کوم زه او ته او نور د ګوند غړي ټول په تېرو پروسو کې شامل او په خپل وار به يو څه مسئوليت هم لرو.

زه (ليکوال) به د مصالحې او د حوت شپاړسم د ټکر په هکله يو څه رڼا واچوم.

لکه څنګه چې د دې بحث په ابتدا کې ويل شوي بيا هم تکرار وايم چې ملي مصالحه زموږ د ولس، ګوند او وسله وال پوځ د مرګ او ژوند مسئله وه.

په تېرو ليکنو کې مثالونه ذکر شوي دي، خو د ملي مصالحې په هکله که عينې قضاوت وشي ښه به وي او له مبالغې نه ډډه وشي.

- زما يا زموږ په نظر ملي مصالحه ممکنه وه زموږ ګوند او وسله وال پوځ د ملي مصالحې اجرايوي ضمانتونه وو، مګر دا ضمانتونه لکه څنګه چې په تېرو ليکنو کې يادونه شوې د کې. جي. بي. او د محترم نجيب الله په لاس سرکوب شول.

- ملي روغه جوړه پردي خلک موږ ته نه راکوي، بايد موږ په خپلو امکاناتو تکيه کړې وی، يعنې تر دې له مخه په شوروي تکيه کېدله، اوس نو په ملل متحد تکيه کېدله. هر سند چې ګورو، افغانان په ملل متحد افتخار او تکيه کوي، دا خپل ځان ته بازي ورکول دي.

- په افتخار سره ويل کېده او ليکل کيږي چې «وداع با انحصار قدرت!»، دا

دوول تبلغات د ذهنونو د غطولو او تخديرلـه پـاره کېدل، مگـر د مصالحـې اثـار نـه وو. پـه حقيقـت کـې مصالحـه د کـې. جـي. بـي. پـه انحصـار کـې وه.

- څنگـه چـې تبليغـات پـه خـارج (روسـيه) کـې هـم کيـږي، اختلافـات د مقـام او چوکـۍ پـر سر نـه و، بلکـې د پرنسـيپ پـر سر اختلافات يـا پـه بل عبـارت نظريات موجـود وو. راځئ چـې پـه موضعگيريـو کـې د پرنسـيپ احترام وکـړو د مثال پـه توگـه د «هرج و مـرج تيوري» دا هـدف افـاده کـوي چـې د يوه هېـواد غارت کولو له پاره د هغه هېواد اشـغال نـه دی لازم، بلکـې د هغـه هېـواد د دولـت تخريبـول لازم دي او پـه ضمـن کـې د اردو تضعيـف يا انحلال لازم دی چـې باالمقابـل غبرگـون ونـه نښـيې. بنأ د دې پرنسـيپ له مخې زمـوږ ښـکلی گوند او گـران مـلي پـوځ او اردو، غربيانـو او کـې. جـي. بـي. تـه د تحمل وړ نه و، لکـه څرنگه چـې د جنـرال مايـوروف پـه کتاب کـې ليـکلي دي، چـې فکرت احمـد جانوويچ قطعي مصمم و چـې افغـان مـلي اردو بايـد منحـل شي، مـوږ متأسـف يـو چـې زمـوږ د رهبـر نجيب الله پـه لاسـونو زمـوږ مـلي اردو ضعيفه او منحل شـوه.

- زمـوږ گونـد او وسـله وال پـوځ پـه دې بـاور نـه و چـې لـه پاکسـتان څخـه بـه يـوه بـې طرفـه کميتـه يـا کابينـه راځـي او سـوله بـه تامينـوي خـو زمـوږ مدبـر رهـبر نجيـب اللـه تـر اخـره فريـاد گونـه نـارې وهلـې چـې بـی طرفـه کميتـه يـا کابينـه لـه پاکسـتان څخـه راځـي او دی بـه قـدرت ورتـه تسـليم کـړي.

دا ښکرور دروغ په لاندې موادو کې ښه روښانه کيږي:

د پتر تامسن کتاب (جنگ های افغانستان) په دوولسم فصل کې ليکل شوي دي:

ژباړه د بصير همت - انگلستان - مانچستر:

«بـا تاسـف بايـد گفـت کـه خودخواهـی و جـدال عليـه يکديگـر، حـرص و آزکاری... رهـبران هفتگانـهٔ احـزاب مجاهديـن در پشـاور که بـا کنـترول و سـازماندهی آی. اس. آی. بحيـث رهـبران دولـت موقـت تعيـن گرديدند نتواسـتند در جهـت آوردن سـوله کاری کنند... هـر يـک از آنهـا جهت حفـظ قـدرت خويـش بـه هدايـت و خواسـتهای آی. اس. آی. تکيه نمايـد. در واقعيـت امـر، دولـت موقـت مجاهديـن کـه توسـط آی. اس. آی ايجـاد و ديزاين شـده بـود پوشـش و وسـيله دسـتی بـرای تحقـق سـتراتيژی آی. اس. آی. بـود. آی. اس. آی. نقـاط ضعيـف ايـن رهـبران دولت موقـت را ميدانسـتند.»

زموږ مدبر رهبر ډاکټر نجيب الله تر هر چا په دې ښه خبر او ښه پوهېده، خو د پخلاينې کاذب شعارونه يې حتی د ژوند تر اخرې ورځې تکرارول.

- ډېر ليکوالان د دې لپاره چې مضمون يې وزين معلوم شي د نجيب الله په شان غټ غټ دروغ ليکي. مثلاً علي رستمي د خپل دور په اوږده مضمون کې، چې د مشعل په سايت کې نشر شوی دی، ليکلي دي: "از سوی ديگر، داکتر نجيب الله شهيد حاضر شد تا مطابق پلان ملل متحد از پُست رياست جمهوری استعفا دهد و دولت را به هيات منتخب ملل متحد تسليم نمايد.»

د روغې جوړې او بې طرفه کمېټې په باره کې ډېر کتابونه ليکل شوي دي. تاسو د پيټر تامسن او فيليپ کاروين ليکنې په دقت سره ولولئ، چې ډاکټر نجيب الله رښتيا ويل که دروغ؟

څومره لوی دروغ ويل کيږي. نجيب الله قدرت او مملکت پاکستان ته تسليم کړي دي (ليکوال محترم) خو ليکي چې د ملل متحد منتخب هيات ته يې تسليم کړل. بايد ووايم چې ملل متحد «دايهٔ مهربان» نه ده - هغه هم د امريکا تر قوماندې لاندې ده، له بلې خوا د ملل متحد او يا د شوروي اتحاد په عوض ولې په خپلو امکاناتو اتکا نه کوو؟ تر کومه وخته به د پرديو په لمن کې پراته يو؟

زموږ د ازمويل شوي ګوند آرمان دا و چې ځان د خپل ولس غيرې ته واچوي.

## د فيليپ کاروين کتاب -(سر نوشت غم انګيز در افغانستان)

فيليپ کاروين د ملل متحد يو مجرب کارمند دی چې په افغانستان کې يې وخت تېر کړی دی. نوموړی سره له دې چې غربي مزاجه دی، حقايق يې رالوڅ کړي دي. نوموړی غواړي نجيب الله ته نجات ورکړي، مګر نه پوهيږي چې غربيان، د افغانستان همسايګان او افغانان د نجيب الله لپاره نجات نه غواړي...

کاروين په مقدمه کې يادونه کوي چې - جوانب جنګ داخلی به اين نتيجه رسيده بودند تا زمانيکه نجيب الله از قدرت بر کنار نه شود، صلح برقرار شده نمی تواند... بر اساس آن نجيب الله بتاريخ ۱۸ مارچ ۱۹۹۲ رسماً اعلان کرد که مستعفی ميشود.

مجاهدین نجیب الله را دست نشانده شوروي و حتی بدتر از آن یک ناخدای کافر که بالای یک کشور اسلامی متدین حکومت میکند، تلقین میکردند. (ص ۱۷ و ۱۸) .

- له همدی کبله د مخه عادلانه لیکل شوي دي چې نجیب الله په داخل او خارج کې او هم په گوند کې ځای نه درلود.

کاروین د کتاب په ۲۷ مخ کې وایي: حکومت پاکستان و حمایت کننده عمده بین المللی آن یعنی ایالات متحده امریکا و عربستان سعودی به هیچ وجه سهم گیری کمونیست ها را در حکومت انتقالی نمی پذیرند.

- زموږ پیاوړی گوند، کادرونه او وسله وال پوځ په دغه حقیقت پوهېدل چې د نجیب الله خبرې او وعدې ټولې دروغ دي، خو موږ ټولو سوله بیزمقاومت کاوه چې مصالحه باید د قوت له موضع څخه پلېشي او خپل حق واخلو څو د عملي پروسې څخه خارج نه شو...

د دې له پاره چې د «قوت موضع» څخه بده استفاده ونه شي او د مصالحې په مخالفت کې تفسیر او تعبیر نه شي د جیو پولیتیک د بحث نه عین مطلب تکراراً دلته را انتقالوو.

د نړۍ‌تاریخ دا لاندې مطالب، موږ ته را زده کوي:

۱ – د هر هېواد سیاست د خپلو خلکو د گټو لپاره د اجراء وړ دی، نه د بیگانه وو د گټو لپاره.

۲ – نظامي ضعف او نا تواني هېڅکله د امنیت او سولې ضامن او وثیقه نه و، نه دی، او نه به وي؛ بلکې برعکس د با القوه تجاوزگرانو لپاره په زړه پورې وسیله او فاکتور و، دی او وي به.

فیلیپ کاروین په ۳۱ مخ کې وایي:

(چطور بنین سیوان می توانست نجیب را قناعت دهد تا به خاطر معامله و خاطر ارضای مجاهدین که از جانب پاکستان حمایت شده استعفی دهد، در حالیکه او (نجیب) دقیق میدانست که پاکستان مصمم بر آن بود هر موافقت نامه را که برایش قدرت انحصاری فراهم نکند، نادیده بگیرد.)

لـه پورتـه مـتن څخـه روښـانه ښـکاري چـې نجیـب اللـه دقیـق پوهیـږي چـې د افغانسـتان سر نوشت د پاکسـتان پـه لاس کـې دی. مگـر نجیـب اللـه وایـي - بـی طرفـه کمیټـه راځي...سوله...سـوله... حـال دا چـې نـه بـې طرفـه کمیټـه شـته او نـه سوله، بلکـې وطـن پـاک او صـاف خـرڅ شـوی دی.

- بیا هم فیلیپ کاروین (۸٦ مخ)

داکـتر نجیـب اللـه میخواهـد تـا حیـن انتقـال قـدرت بـه تعـداد یکهـزار نفر قـوای ملل متحـد بـه کابـل ارسـال شـود... ولـی مـا نـه بایـد در برابـر خواسـته هـای ناممکـن دست و پاچـه شـویم.

نجیـب اللـه څـو کالـه د کـې. جـي. بي. پـه غېږ کـې آرام تېـر کـړي - اوس غـواړي د ملـل متحـد د عسـکرو پـه غېږ کـې نازدانـه ورغـړي، خـو د خپـل زړور وسـله وال پوځ سره نـه پخـلا کیـږي، آیـا دا دهېـواد سره بیگانگـي نـه ده؟

سـلگونه زره افغـاني مسـلح قوتونـه موجـود وو، خـو د هېـواد رهـبر نجیـب اللـه د خارجـي قـواوو پـه زرو کسـانو پـورې امیدونـه تـړلي دي.

پـه داسـې حـال کـې چـې زمـوږ «دلاور» رهـبر نجیب اللـه خپـل وسـله وال پوځونه پخپـل لاس خلـع سـلاح کـړل او روغـې جوړې تـه پـه تـش لاس ور روان و.

کاروین لیکي ۵۵ مخ:

دو دهـه آخـر قـرن بیسـت، تراژیـدی افغانسـتان بـه دلایـل جیوپولیتیـک بود نـه بنابر علـل قومـی و ژنیتیـک... چیزیکـه رهـبری نزدیـک بیـن و فاسـد شـوروي را بـه حمله بـه افغانسـتان وادار کـرد، رسـیدن بـه آبهـای گـرم نبـود، بلکـه آن بـود کـه مبـادا افغانسـتان بحیـث یـک کشـور بـی طـرف در آیـد و یـک یوگوسـلاویای دیگـر در آسـیا شـود.

کوردیویـز هریسـن میگویـد: مسـکو در وهلـه اول تحـت تسـلط آوردن خلیـج فـارس را طوریکـه اکـثر ناظریـن در آن زمـان عقیـده داشـتند، بحیـث ماسـتر پـلان روی دست نداشـت امـا بعـد از درگیـر افتـادن در مـرداب گـروه بنـدی هـای سیاسـی در افغانسـتان بـه قـوای نظامـی تکیـه کـرد تـا از تهدیـد یـک تیتـوی افغـان مـورد حمایت امریکا در سرحـدات خـود جلـو گیـری کنـد (٥٦ مـخ).

موفقیت مارشال تیتو در آن نبود که او یک رهبر قدرتمند و توانا در بالکانات بود، بلکه بخاطر آن بود که یک بیلانس را بین دو قدرت بزرگ حفظ میکرد تا از هر دو کمپ منفعت اقتصادی بدست آورد. (۵۷ مخ).

ښله شکه نور محمد تره کی او حفیظ الله امین خپلو ملي ګټو ته وفادار خلک وو. خو افغانستان ډېر فقیر هېواد دی او افغانی تیتو پیدا کېدل یا جوړېدل عملي نه دي، مګر د شوروي استخباراتو (کې. جي. بي.) په تاریخي لحاظ د پښتنو سره سخت مخالف وو. په خاصه توګه په سیاسي ډګر کې، کې. جي. بي. د پرچم د ګروپ حمایه کوله، دا مفهوم په روسي کتابونو کې ښه واضیح شوی دی.

په دی اړوند هاشم نوري زیاتوي:

په هغو کالونو کې، زه د ملي دفاع د وزارت د سیاسي چارو د ریاست معاون وم، یو څه موده په خارج کې وم او پدې موده کې په سیاسي ریاست کې د تبلیغ مشاور یو لکچر لیکلی و چې زموږ د دولت د پالسۍ خلاف نومونه (امریکا، چین) پکې ذکر شوي وو، کله چې زه له خارج څخه راغلم په دویمه ورځ تره کي صاحب ته ورغلم او ماته یې د هغه لکچر د بیرته ټولېدو قیصه وکړه ما هم... څو دقیقې خبرې وکړې، تره کي صاحب خبره ښه را برسیره کړه ویې ویل: (زموږ سیاست کاملاً روښن دی او د ډېرو هېوادونو سره دوستانه اړیکې لرو، ضرور نه ده چې څوک (هدف شوروي) زموږ عقاید تفتیش کړي).

د کاروین کتاب د نجیب الله دروغجنه او جعلي مصالحه ښه رسوا کړېده:

د فیلیپ کاروین کتاب (۲۱۱ مخ) :

این تنها نجیب نیست که به گروگان گرفته شده است، بلکه افغانستان هم... معهذا این بار ربایندگان نه روسیه و نه بریتانیای کبیر است، بلکه پاکستان است که گوی سبقت را ربوده.

د ځینو تحلیلګرانو عقیده ده چې د ژینو په توافقاتو کې، افغانستان په ډېر مهارت سره پاکستان ته تسلیم شوی او نتیجه یې د افغانستان ختمول دي. که څه هم دغه توطیه د ډاکتر نجیب الله پواسطه تر پایه بدرګه شوه، خو پدې باید اعتراف وکړو

چې د نجیب الله قتل او جسد یې راځړول زموږ د ولس او د ګوند د ځړولو معنا لري.
په پورته متن کې د خارجي تحلیلګرانو برداشت دا دی چې افغانستان لکه څنګه چې انګلیس او شوروي اشغال کړی و - اوس د پاکستان له خوا اشغال شوی دی - دغه د ډاکټر نجیب الله ملي مصالحه بلل کیږي؟

او په دې عقیده کې ځینې مظلوم روشنفکران لا تر اوسه هم غرق دي.

## بیا هم د کاروین کتاب (۲۱۱ او ۲۱۲ مخ) :

یک کاروان مشتمل بر سی عراده موتر (۵۱) نفر اعضای حکومت اسلامی مجاهدین از پشاور از طریق زمین به کابل رساند... و قدرت را طی مراسمی تسلیم شد. یکې از همکارانم که انگلیس است خاطر نشان می سازد، که مواصلت این گروپ به کابل مانند مواصلت هتلر در پراگ بود. رئیس دستگاه استخبارات عربستان سعودی نیز در مراسم حاضر بود. سعی کردم یک افغان را پیدا کنم که درین لحظه چه احساس به او دست داده؟ اما نه توانستم... باید مشخص می بود که... در کدام کتگوری در جامعه قرار دارد؟ اگر تاجک یا پشتون یا یک زن یا مرد یا دختر جوان... یا یک سربازو غیره هستی چه اتفاق برایت دست خواهد داد؟ درین جا هویت ساده افغانی اهمیت ندارد. اصلاً آزادی فردی به گروگان گرفته شده، به اسارت در آمده، به قتل رسانده شده و محوه گردیده. تو کسی هستی که فاتح تو برایت تعین میکند که تو کی هستی، نه آنکه تو می اندیشی که تو کیستی و حیاتت ممکن به آن ارتباط داشته باشد. تو جز یک گروپ کوچک، یک گروپ سیاسی و یک واحد اتینیکی هستی. و این شاید هنگام سقوط یک رژیم، تلخترین واقعیت ها باشد. ختم.

هغه افغان چې آزادي یې په وینه کې عجین (ګډه) شوې ده درک کولای شي چې دا د هغو شهیدانو د ارمانونو او دردونو بازتاب دی چې خپل ژوند یې د یو مستقل او بسیا افغانستان په نوم قرباني کړی دی او خواره اولادونه یې یتیم پاتي شوی دی، خو نن هیر او ګمنام دی !!

فیلیپ کاروین یو غربي مزاجه انسان دی، اما د افغان دردونه احساسوي مګر

نجیب الله خوشحال دی او د افغان دردونه، نه احساسوی !!

بلې ! د شوروي کې. جي. بي. پردی جگړه، پردی اجندا، پردي رهبران، پردی مصالحه او پردی شورا په موږ باندې تحمیل کړه خو دا تحمیل د ډاکټر نجیب الله په متو او لاسونو اجرا شو...

زه (لیکوال) غواړم د هوایي او مدافعه هوایي په هکله د شوروي نظامي قوتونو د وتلو نه وروسته یو څه رڼا واچوم

کله چې د شوروي اتحاد قوتونه له افغانستانه بیرته شوروي ته ستانه شول. نو زموږ د هوایي پوځونو پر اوږو نور هم بار درونډ شو. موږ نه تنها له اردو سره مساعي مشترکه په اجرا کولو کې بوخت و د نورو وزارتونو ترانسپورتي چارې مو هم په اوږو بار وې.

له بلې خوا دا ثرگنده ده چې په هر هیواد کې اردو د خپلواکۍ، د خاورې تمامیت او ملي نوامیسو په ساتنه کې د ملا د تیر حیثت لري او داسې اردو ته اړتیا لري چې د کمیت او کیفیت لوړوالی ولری او د سیمې له هیوادونو سره په یوه انډول کې راشي. یعنی ملي اردو کومې ځانګړتیاوی باید ولري چې وکولی شي د افغانستان د خاورې تمامیت، خپلواکۍ او ملي نوامیسو څخه دفاع وکړي.

په لنډه توگه ویلای شم چې د پوځی تیوریسنانو او ستراتیژیستانو له نظره هر اردو باید لاندې څلور ډوله وړتیاوې ولري:

۱ - سیاسي وړتیا: د واحدې عقیدې او سیاسي مفکورې درلودل چې بنسټ یې د ملت لوړې گټې او ارزښتونه دي.

۲ - اقتصادي وړتیا: د یوې قوي او پایه دار اقتصاد درلودل چې وکولی شي د اردو ټولې اړتیاوې په هر نوع شرایطو کې پوره کړي.

۳ - علمي وړتیا: د علمي تکنالوژی پر وسیلو د اردو سنبالښت او تجهیز او همدا رنگه د علمي متخصص کدر درلودل.

۴ - پوځي او تکتیکي وړتیا: د حالاتو او شرایطو سره برابر د یوې موزونې پوځي ستراتیژی او تکتیک درلودل.

د پورتنیو ورټیاوو پر بنسټ مې هم هلې ځلې کولې چې د هوایي او مدافعه هوایي د جګړه ییز چمتوالي له وړتیا څخه برخمن وي. دا امکانات ور په برخه کړم چې پورتنیو وړتیاوو ته ځواب ووایې.

د هند د هوایي پوځونو لوی قوماندان دوه ځلې ځانګړې لیک زما په نامه را واستاوه، په لیک کې د افغانستان د هوایي پوځ ستاینه کوي او په ضمن کې د هرې مرستې یادونه یې کړې وه. په دې اړوند د هند د سفارت له نماینده سره له منني وروسته مو پدې هکله خبرې وکړې او وعده یې وکړه چې زموږ له هوایي پوځ سره د یو تعداد پروازي او تخنیکي پرسونل د روزنې په برخه کې مرسته وکړي.

ما (لیکوال) پورتنی موضوع په مفصله توګه رئیس جمهور نجیب الله ته عرض کړه: که تاسې د بهرنیو چارو وزارت ته هدایت ورکړې چې دا موضوع رسمیاتو ته وباسي. رئیس صاحب جمهور بې له درنګه داسې ځواب راکړ او ویې ویل چې زما مشاور ستر جنرال ګاریيف سره خبرې وکړه چې بیا خفه نه شي. د دې خبرې په اورېدو زه حیران او داسې مفکوره راته پیدا شوه چې زموږ رئیس جمهور ډاکټر صاحب نجیب الله په نام ناست دی صلاحیت ورسره نشته. بې د کې. جي. بي له هدایته په خپله تصمیم نه شي نیولی.

د جمهور رئیس نجیب الله نظامی مشاور، ستر جنرال ګاریيف وایي:

من به رئیس جمهور (نجیب الله) با جدیت تمام گفتم که بایست به این کشمکشها پایان بخشید. نمی توان تنها با تکیه به وزارت امنیت دولتی به آشتی ملی دست یافت. من به او مشوره دادم تا بیشتر خلقی ها را «تحویل بگیرد». افزون برآن توجهٔ او را به این مطلب جلب کردم که وزیر دفاع در بسیاری از مسئایل حق به جانب است، زیرا در سیاست کادری حرف او را کمتر می شنوند و کلیه امور را دستیاران نظامی رئیس جمهور جنرال باقی و جنرال عبدالحق علومی می چرخانند. به رئیس جمهور پشنهاد گردید، که یک گام دیگر نیز بردارد: به سپهید شهنواز تنی درجه ارتشبدی بدهد تا درگیری فروکش کند، آنگاه ممکن است اورا برای آموزش به اتحاد شوروي بفرستند. مگر رئیس جمهور مطمئن بود که تنی به شوروي نخواهد رفت (ص ۷۸).

- ستر جنرال ګارییف د شوروي د دفاع وزیر ته ګزارش ور کوي (ص ۷۹):

... درین صورت یا شما به کابل بیائد یا تنی را به مسکو دعوت کنید و افزودم: «شهنواز تنی از دیری به این سو آرزو دارد از مسکو بازدید کند» مگر وزیر دفاع نه خود آمد و نه تنی را به مسکو دعوت کرد.

جالبه ده - شهنواز په خپله غوښتل چې مسکو ته ولاړ شي، خو څوک یې نه دعوتوي ځکه کې. جي. بي. نوموړی او نجیب الله د ټکر له پاره جوړ کړي دي او ساتي یې.

زه (لیکوال) د ګارییف پورتنی متن تائیدوم چې د نجیب الله ټولې چارې د جنرال باقي او جنرال عبدالحق علومي په لاس څرخېدې. یوه ورځ د سر قوماندانۍ اپراتیفي جلسه کې د دفاع وزیر شهنواز تنی رئیس جمهور ته پیشنهاد کوي وایي:

که باقي ته له برید جنرالۍ - تورن جنرالۍ ته ارتقا ورکړې نو په دې صورت کې به زما بیشنهادي پاڼې خلاصې کړې. رئیس جمهور اپراتیفي غړو ته مخ را واړاوه او ویې ویل: خنګه تاسو موافق یاست. په هغه شپه یې د تلویزین له لارې د باقي تورن جنرالي اعلان کړه. د وزیر دفاع ټول پیشنهادونه پر خپل ځای پاتې دي.

# نهم څپرکی

## د ۱۳٦۸ کال د حوت ۱٦ نېټې د تصادم په اړوند

تر هر څه د مخه باید ووایم چې کودتا یو نا مطلوب عمل دی، اما د حوت ۱٦مې نظامي تصادم دی، نه کودتا. کودتا څو هفتې یا څو میاشتې دوام نه کوي؛ مګر دا تصادم د هغې ستونزې پایله ده چې د جمهور رئیس نجیب الله او د ملي دفاع وزیر شهنواز تني تر منځ موجوده وه.

د دې نظامي تصادم لپاره د شوروي کې. جي. بي. مخکې له مخکې بستر جوړ کړی واو د خپلو موخو لپاره یې په خلقیانو ور وتپله.

هو ! په ظاهري شکل یې کودتا ځینې جوړه کړه او د خلقیانو قانوني مقاومت یې د انتخاباتو لپاره مات کړ.

حقیقت دا و، چې زموږ ګوند کودتا ته ضرورت نه درلود، ځکه د خلقیانو سیاسي قدرت به بیا هم د جدي د شپږمې کودتا په شان سرکوب شوی وی.

مګر کې. جي. بي. د ۱۳٦۸ کال د حوت د ۱٦مې نېټې نظامي تصادم ته ډېر ضرورت درلود، ځکه چې مخکې مو وویل چې د خلقیانو بقا د نجیب الله په حاکمیت کې د کې. جي. بي. د پلانونو ممانعت کاوه یعنې:

- د شمال ایتلاف نه شوی جوړېدلی.

- د شمال اتحاد کابل نه شوی اشغالولی او د کې. جي. بي. جاسوسانو تر اوسه په کابل کې حکومت داري نه شوی کولی.

- په اوس حال کې افغانستان با القوه تجزيه ده -زموږ وياړلي ګوند به دا امکان چا ته نه وی ور کړی.

- متاسفانه، اوس هره ورځ د دې امکان شته چې بالقوه تجزيه په بالفعل تجزيه بدله شي.

- او هيڅ قوه نشته او نه به وي چې د بالفعل تجزيې ممانعت وکړي.

غوربندي صاحب د خپل کتاب په (۱۲۱ - ۱۳۱ مخ) کې د محترم فقير محمد ودان په ليکنه تکيه کړېده او د نجيب الله پر ضد يې د څو کودتاګانو نومونه اخستي دي لکه:

۱ - د حسن شرق (صدراعظم) کودتا.

۲ - د شهنواز تني کودتا.

۳ - د ببرک کارمل او شرکا (بريالي، کاوياني، کشتمند او فريد مزدک) کودتا.

۴ - د سليمان لايق کودتا.

رښتيا هم دا پورتني نومونه د نجيب الله په طرز اداره او رهبري انتقادونه لري او لرل يې، مګر انتقاد خو د کودتا معنا نه لري.

د کې. جي. بي. د يوې بلې پخوانۍ کودتا يادونه به اړينه وي ،چې عبدالملک عبدالرحيم زی يې په کودتا متهم او نوموړی د ژوند تر آخره په زندان کې پاتې شو. جريان يې په لاندې ډول و:

عبدالملک عبدالرحيم زی د داود خان د صدارت په وخت کې، چې شاهي نظام مسلط و، د ماليې وزير و.

د ماليې وزير امريکا ته په سفر ځي او په امريکا کې له ده ښخه ګرم استقبال کيږي، دا ډول استقبال شوروي رهبري (کې. جي. بي.) ته تشويش پيدا کوي. په هغه وخت کې اتمه فرقه په جنګي قلعه (وزير اکبر خان سيمه) کې ځای پر ځای

وه او لومړی بریدمن سردارولي هم په جنګي قلعه کې دنده لري. د فرقې قوماندان جنرال خواجه خلیل دی او سید کریم جګړن چې، د کې. جي. بي. جاسوس دی، په دې جنګي قلعه کې دنده لري. کې. جي. بي.، سید کریم جګړن ته اطلاع ور کوي چې د مالیې وزیر عبدالملک عبدالرحیم زی د دغې اتمې فرقې په واسطه کودتا کوي! سید کریم جګړن بیا په خپل وار سره سردارولي ته اطلاع ورکوي او سردارولی بیا شاهي خاندان ته اطلاع ورکوي. پدې ترتیب سره عبدالملک عبدالرحیم زی له کودتا څخه خبر هم نه دی، په پلان شوې کودتا متهم کیږي او له امریکا څخه د راګرځیدو سره سم زندان ته اچول کیږي او د ژوند تر آخره په زندان کې پاتې کیږي. (د هارون له کتاب څخه).

که د نجیب الله پاچاهي د ظاهر شاه له پاچاهۍ سره مقایسه کړو؛ نو کې. جي. بي. افغانستان اشغال کړی او ټولې کمزورې نقطې ور معلومې دي.

د حوت له ۱٦ مې نیټې څخه د مخه ډاکټر نجیب الله دوه واره د شپې له خوا خپل جمهوري ګارد او د دوستم قومي قطعاتو ته تطبیقات ورکوي چې په دفاع وزارت څنګه حمله وشي.

له دې تطبیقاتو نه وروسته صالح محمد زیری او دستګیر پنجشیری دواړه جمهور رئیس نجیب الله ته ورځي او د شپې د تطبیقاتو علت ځینې پوښتي. خو نجیب الله ورته وایي :زه له دې تطبیقاتو خبر نه یم

مګر دا امکان نه لري چې رئیس جمهور له تطبیقاتو خبر نه وي.

د مالیې وزیر عبدالملک عبدالرحیم زی او نور مثالونه د دې لپاره ذکر شول چې کې. جي. بي. د کودتا ټاپه نجیب الله ته جوړه کړې وه او د هر چا پر تندي یې سرېښن کوله - یعنې کې. جي. بي. په اوضاع مسلطه وه او نجیب الله په افغانستان کې د دوی جمهور رئیس وو.

خلقیانو د ملي دفاع وزیر شهنواز تنې ته په درنه سترګه کتل څکه، نوموړی سره له دې چې په سیاست کې یې ځانګړې کمزورۍ درلودلې نه تنها یو زړ ور جنرال و؛ بلکې په نظامي بهیر کې یو بې ساری شخصیت و. شهنواز تنې د ثور له قیامه وروسته، ټول نظامي مقامونه؛ لکه: ټولی، کنډک، لوا، فرقه، قول اردو، لوی

درستيز او د وزارت مقام د جگړې په شرايطو کې عملاً طی او اداره کړي وو او د هر مقام تجربه ور سره وه، هر مسلک ورته آشنا و.

له بلې خوا حتی د ده مخالفين هم د ده اخلاقو، پاکی او تقوا ته احترام لري. د هېواد د هغه وخت په شرايطو کې اخلاق او تقوا د جامعې معنوی ثروت او پانگه وه چې ولس او گونديانو ورباندې مباهات کول.

رښتيا خبره دا ده چې گونديانو نه تنها د حوت د ۱٦مې په درشل کې بلکې له هغه نه لا ډېر پخوا د شهنواز تنې د ژوندي پاتې کېدو سره علاقمند او همدرد و. دا سوال مطرح نه وچې نوموړی دې خامخا وزير يا سفير وي، خو ژوندي پاتې کېدل يې د هر چا آرزو وه. شايد ځينو ته سوال پيدا شي چې د وزير دفاع د ژوند مسئله ولې دلته مطرح کيږي؟

په داخلي او خارجي ليکنو کې ډېر سوالونه ذکر شول چې د تنې او نجيب الله روابط (اړيکې) له تنش او بې اعتمادی څخه ډکې وې. او تجربو ثابته کړې ده چې دا ټول د کې. جي. بي. اجنډا وه چې نجيب الله او شهنواز تنی څنگه تحريک کړي چې گوندي اړيکې په دښمنی بدلې شي. په ډېرو دلايلو د شهنواز تنې ژوند د مرگ سره مخامخ و - وژل، ترور کول د کې. جي. بي. او نجيب الله نه بدلېدونکی فورمول و. بلاخره شهنواز تنی تصميم نيسي چې له نجيب الله سره په وطني رسم او رواج سوله او پخلاينه وکړي. د دې سولېجريان د سياسي بيرو د غړي مرحوم کاروال له خولې، چې هاشم نوري اوريدلی، داسې بيان کړی:

د ملي دفاع وزير د نجيب الله سره د دفاع وطن د شورا په جلسه کې گډون لري، د جلسې په پای کې شهنواز تنی، نجيب الله ته پيشنهاد کوي:

- ډاکټر صاحب! که ممکنه وي زه او ته به يو څو دقيقې سره پاتې شو.

جلسه ختمه ده دوی دواړه سره پاتې کيږي.

شهنواز تنی: "ډاکټر صاحب! زما او ستا تر منځ ولې فاصله پيدا شي؟"

شهنواز تنی هغه ټول مشترک وجوهات چې د دواړو تر منځ په طبعي ډول موجود دي يادوي... "نو څه شی زما او ستا ترمنځ نه تقسيميږي؟"

ډاکټر نجیب الله: "نو زه له خدایه نور څه غواړم، ته مې سر او سترګې يې، ته مې وزر يې...» د ډاکټر نجیب الله، خوږې خبرې ډېرې زده وې چې بل څوک (مخاطب) جذب کړي.

د ډاکټر نجیب الله خبرو په شهنواز تني دومره تاثیر کړی چې تنی يې کاملاً جذب کړی دی. له دې کبله شهنواز تنی، ډاکټر نجیب الله ته وايي:

"ډاکټر صاحب ! کور دې ړنګ شه، دغه تاته د شورويانو توطیه ده!"

نجیب الله: "ډېره مننه چې زه دې متوجه کړم، اوس پوه شوم چې ته مې تر هر چا نږدې دوست يې !"

په دې ډول دوی دواړه د خوشحالۍ په فضا کې يو له بل نه رخصتیږي.

خو ډاکټر صاحب نجیب الله په سر سپردګۍ سره خپل صداقت کې. جي. بي. ته ثابتوي او خپل لوی مشاور (پولینیچکه) دفتر ته ورځي او د شهنواز ټولې خبرې ورته انتقالوي. البته په انتقالي خبرو کې، مرکزي خبره دا ده چې تني نجیب الله ته د شوروي د توطيې يادونه کړېده .

- په بله ورځ د نجیب الله لوی مشاور (پولینیچکه) د میر صاحب کاروال دفتر ته ورځي او ورته وايي چې د ملي دفاع وزیر شهنواز تنی د شوروي ضد سړی دی، د نجیب الله خبرې ټولې میر صاحب کاروال ته بیانوي.

- په بله ورځ، کاروال د ډاکټر نجیب الله دفتر ته ورځي او نجیب الله ته د ګیلې په شکل وايي چې د دفاع وزیر (تني) له تاسو (نجیب الله) سره په وطني حساب يوه مرکه وکړه، آيا ضرور وه چې دا موضوع دوستانو ته انتقال شي ؟

- ډاکټر نجیب الله: کارواله ! ستا دې هم کور خراب شي، دا اوس څو دقیقې د مخه زما لوی مشاور زما مخې ته ناست واو راته ویل يې:

- نجیب الله ! مه ناوخته کوه، آمادګي دې ونیسه ، خلقیان در باندې کودتا کوي...!

-نجیب الله: اوس نو زه د تا (کاروال) خبره ومنم او که د خپل مشاور خبره ومنم؟ مشاور خو پیسې را کوي، سلاح راکوي... نو ته خو هیڅ شی نه شې را کولی.

جان اف. كينډي ويلي و: "آنهائيكه تكامل مسالمت آميز را غير ممكن ميسازند قيام قهر آميز را اجتناب ناپذير ميسازند".

متاسفانه د نجيب الله فطرت د مسالمت آميزه ژوند او تكامل سره په تضاد كې و او كې. جي. بي. د ده دا خصلت ښه پيژندلى و.

هغه څه چې تر اوسه مو ولوستل ثابتوي چې د ملی دفاع وزير د شوروي ضد سړی معرفي كبږي او دا د دې لپاره چې بايد ووژل شي...

په دی سلسله خبرو كې زه (ليكوال) هم د وزير دفاع سره لكه نور گونديان، خپله همدردي پټه نه ساتم، په آخره ورځ مې چې شهنواز تنی ډېر نيازمند وليد، نو خپله مرسته مې له ده څخه ونه سپموله او بگرام ته مې په دې هيله ورساوه، چې له هغه ځای څخه كوم بل مصئون ځای (داخل يا خارج) ته د تگ امكان پيدا كړي، گمان كېده چې تنی به د فرار كوم پلان ولري... هغه وخت نو د شهنواز تني حواسو او مفكورې كاملاً تغير وكړ او د بگرام گارنيزون قومانده يې په خپل لاس كې ونيوله. نو په هغه لحظه كې پوه شوم چې زه د يوه ترسره شوي عمل سره مخامخ يم دا په داسې حال كې چې زما او نجيب الله تر منځ ښې اړيكې وې.

د كودتا لپاره، زموږ گوند كوم پلان نه درلود، خو د مستقلې دفاع د آمادگۍ لپاره فعاليت شروع شوی و .

كه د كودتا له پاره كوم تصميم موجود وی، نو د قدرت اخيستلو لپاره نور مناسب شرايط موجود وو مثلاً:

۱- هغه وخت چې د شوروي قوتونو د وتلو سره سم نجيب الله فرار كاوه او ځان يې هوايی ډگر ته رسولای وبايد قدرت نيول شوی وی.

۲- هغه وخت چې د جلال آباد جنگ شروع شو بايد قدرت لاسته شوی وی.

۳ – هوايي او د دفاع هوايي قوتونه ټول زموږ د گوند په اختيار كې واو نجيب الله سفرونه درلودل، د ده د سپرلۍ الوتكه په آسانۍ سره د افغانستان په فضا كې را نسكوريدلای شوه.

اما نجيب الله تحريكات كول چې مثالونه يې په دې مجموعه كې په كافي اندازه

لیکل شوي دي.

- ولې شهنواز تنې پاکستان ته فرار وکړ؟ ځکه چې د کې. جي. بي. دښمني کاملاً روښانه وه. نو فقط دا یو امکان موجود وو.

که نجیب الله د فرار حق درلود، نو شهنواز تنې هم حق درلود خو نجیب الله ته کوم خطر موجود نه و، اما شهنواز تنی د نورو خلقي افسرانو په شان د وژنې له خطر سره مخامخ و.

د بشري حقوقو اعلامیه وايي:

۱۴ مه ماده: هر کس حق دارد در برابر تعقیب، شکنجه و آزار پناگاهی جستجو نماید و در کشوهای دیگر پناه اختیار کند.

بلاخره لکه چې د ستر جنرال گارییف په کتاب کې تصریح شوې ده (۱۷۹ مخ) نجیب الله په خپله د تنې پر ضد نظامي عمل اجرا کوي او د شوروي د دفاع وزارت له دې موضوع خبر نه دی؛ بلکې د ١٦ حوت تصادم د کې. جي. بي. په لاس جوړه شوې ماجرا ده.

## د ډاکټر نجیب الله او د کې. جي. بي. تباه کوونکي پلانونه:

### د جنرال لیاخوفسکي کتاب (۴۱۰ مخ) د افغان مېړانه او غمیزه:

نجیب الله... د دولتي امنیت په وزارت تکیه کوله او په اردو او څارندوی یې باور نه درلود. گمان کېده چې ولسمشر د اردو له پیاوړتیا نه وېره درلوده او دا په داسې حال کې چې نوموړی په دې ښه پوهیده چې د اردو نه پرته د پوځي - سیاسي ستونزو اداره ناشونې ده.

بیا هم (۴۱۱ مخ): د وسله وال پوځ د دریو ډولونو جوړول، دولتي واکمني نه پیاوړې کوله، بلکې دا یو داسې سیاست و، چې موخه یې په هېواد کې د ناوړه حالاتو د منځته د راتلو په وخت پخپله د نجیب الله سمبالول وو. ناڅاپي نه وه چې نوموړي... د کابل د گارنیزون د مسئول په توگه د کورنیو چارو وزیر سید محمد گلاب زوی د ټاکلو وړاندیز رد

د دې پر ځای ولس مشر په بېړه سره د ګارد جوړولو ته چې باید پخپله د ده او دولتي امنیت د وزیر تر ولکې او اغیزې لاندې وی متې را ونغاړلي. په لومړي سر کې هغه کړ. (نجیب الله) وویل چې د پلازمینې د ګارنیزون مشري دی پخپله غاړه اخلي؛ خو وروسته یې د ځانګړي ګارد قوماندان په دغه څوکۍ وټاکه...

نجیب الله دغه راز په کابل کې د اردو د ځواکونو په کمزوري کولو پیل وکړ.

د ستر جنرال محمود ګارییف کتاب (۸۲ مخ):

... درست به علت چیره گی خلقی ها در وزارت دفاع و داخله و بی اعتمادی پرچمی ها نسبت به آنان بود که در ماهیت امر در افغانستان سه ارتش مستقل ایجاد گردیده بود که این امر دشواری های فراوان و اصطیکاک بسیاری را در ادارۀ نیرو های مسلح، تامینات و تجهزات آنها بیار آورده بود. در نیروهای مسلح بیشتر کُرسی های رده های بالایی را پرچمی ها در دست داشتند و خلقی ها رده های پایین کُرسی ها در اختیار داشتند، در حالیکه در ارتش و وزارت داخله خلقی ها اکثریت بودند.

د ګل خان (اکبري) صاحب اثر (کودتای حمل ۱۳۷۱ و اهداف) (۶۳ مخ) کې لیکي :

ډاکټر نجیب الله د خپلې رښتینولۍ او اصولیت... له مخې خپل غیر اصولي او بې لارې همژبي او آن هم سمتي امینیان، خلقیان له ګوند او دولت څخه لرې کړل. پر تاجکو، ازبکو پرچمیانو یې ډېره ولګوله او دوی هم له هماغې زخمي ګوتې ټینګ ونیو، لومړی یې پرې کارمل ډله وروټپله او بیا هغوی ټول یو لاس شول، ستر ستر امتیازونه، رتبې، څوکۍ او نور ډېری مانزې، توکیزې ګټې یې تر لاسه کړې او بیایې په همده پسې را واخیسته. په ټګیو، برګیو، چمونو، چلونو، دسیسو او توطیو یې د سقوط د ګړنګ په نری ژۍ ودراوه او تر هر چا ورته هماغه کارمل ځپلي لکه وکیل د لستوني ماران شول، مزدک چې کارملیانو ورته د نجیب په سر (مزدورک) نوم ورکړی و، په نجیب الله باندې تورونه ولګول... همدارنګه مشهور انتي پښتونیست او پان ترکیست نجم الدین کاویاني د شمال د مسئول په توګه د نجیب الله پر ضد څومره دسیسې وکړلې او نجیب الله د شمال قوماندانانو ته څو څو کانتینره آفغانۍ او ډالر ورته په سر باندې توګه ور ولېږدول.

د اکبري صاحب په لیکنه کې ډېر مطالب د غوور وړ دی. خو ډاکټر صاحب نجیب

الله نه دومره بې سواده و چې په دې توطیو نه پوهېده او نه دومره ضعیف و چې باید توطیه ګرو ته تسلیم شوی وی. ډاکټر صاحب نجیب الله دا ټول پروګرام د کې. جي. بي. تر رهبرۍ لاندې پلی کاوه. حتی د هېواد تجزیه چې نجیب الله مسیر یې د صدراعظم د معاون په توګه په مزارشریف کې د موازي کابینې سره مقرر کړل...

د ډاکټر نجیب الله په باره کې هم افغاني سیاستوالو او هم روسي سیاستوالو او هم غربیانو لیکنې کړې دي، چې حقایق پکې پراته دي. د مثال په توګه د غوربندي صاحب لیکنه، د حسن شرق صدر اعظم لیکنه او د سلیمان لایق موضعګیري چې داود رزمیار ور باندې مختصر ګرېدلی دی. اوس به د غوربندي صاحب نظر، چې د ډاکټر صاحب ته کلکه عقیده لري، ولولو:

د غوربندي صاحب کتاب (۱۱۱ مخ):

... در داخل نیز سیر وخیم اوضاح امنیتی از کسی پوشیده نبود و دوست داران و پشتیبانان سیاست مصالحهٔ ملی، نسبت عدم التفات (نجیب الله) به پیشنهادات شان... برکنار می شدند و بعضاً بنا به پشتیبانی بیدریغ و فدا کارانه از رئیس جمهور و منشی عمومی حزب، بوسیله ستون پنج در اداره، کنار زده شده و یا حتی بنام دشمن محکوم شده بودند، دیگر جرأت همکاری فعال را نداشتند و ناچار در کنج عزلت پناه برده بتدریج فراموش می شدند.

جمهور رئیس نجیب الله د حوت له میاشتې شخه پخوا د خلقیانو سره د ټکر ملا تړلې وه، خو شوروي - (د کې. جي. بي.) آمرینو اجازه نه وه ورکړې.

دا مطلب د ستر جنرال ګارییف په کتاب کې (۱۷۹ مخ) روښانه شوی دی:

سوګندانه، پنهان کاری بیش از حد غیر موجه در کار نمایندګان کې. جي. بي. در ګذشته نیز جا داشت.

هنګام شورش مارس ۱۹۹۰ (کودتای تنی) که در باره آن در ګذشته سخن ګفتم، طوریکه من بعدها دانستم، نمایندهٔ کې. جي. بي. ما در باره بسیاری از آمادګی های رئیس جمهور (نجیب الله) از پیش آګاه بود، مګر چنین بر می آید که آمران مسکو نشین او (نجیب الله)، اجازه نه داده بودند، ما را در روشنی این باریکی ها قرار دهد. حتی وزیر

دفاع و رئيس ستاد ارتش (لوی درستيز) در مسکو را نيز در روشنی قرار نه داده بودند.

په پورته ليکنه کې د کې. جي. بي. قدرت او د نجيب الله صادقانه اطاعت ښه تمثيل شوی دی.

د نجيب الله لوی نظامي مشاور ستر جنرال گارييف ادامه ورکوي:

هر گاه در استانه کودتا مسئايل را با ما به تفاهم در ميان می گذاشتند، ما به احتمال فراوان شايد متوانستيم از ويرانی پايگاه هوايی بگرام و نابودی نيروهای هوايی افغانستان بدست خود جلو گيری می کرديم. و اين در حالی بود که اتحاد شوروي ناگزير احيای نيروی هوايی ارتش افغانستان را بدوش ميگرفت.

د شهنواز تني په باب داسې اسناد نشته چې د مخالفينو سره ارتباط لري؟

گارييف ادامه ورکوی:

از ديدگاه من اشتباه عمده سوتسکف (د تنی مشاور) در آن بود که او با وزير دفاع (تنی) بر خلاف مشی رئيس جمهور نجيب الله جبه گيری می کرد. به هر حال من به آنم که هر گاه ما در آن هنگام مدارکي مبنی بر زد و بند های نهانی شهنواز تنی با رهبران اپوزيسيون در دست می داشتيم، آنگاه روشنی بيشتری در مشی و رفتار ما می بود.

- هرکله چې اسناد نه وی، نو جرم هم نشته.

- د کې. جي. بي. له پټې توطيې (د تني په ضد) نه حتی د شوروي د دفاع وزير او لوی درستيز خبر نه دي.

د دې ليکنې او له دې نه د مخکې ليکنې ډېره برخه په مثالونو ډکه ده او په ټولو مثالو کې د هېواد د ملي گټو سره يا بيباکانه برخورد را لوخ شوی او يا د ملي گټو خرڅول ثابتوي که د نجيب الله استعداد د کلمې په حقيقی مفهوم د ملي گټو په خدمت کې وی. موږ به هيڅ ستونزې نه لرلې.

هغه لوبې چې ډاکټر صاحب نجيب الله نندارې ته وړاندې کولې شيطان به هم نه وي زده دې لاندې مثالونو ته ځير شئ:

د کاروال کتاب (۱۸۷ مخ) کښليکل شوي دي:

د ر روزهای اخیر، نجیب الله بسیار شدید از موجودیت نیروهای شوروي در افغانستان انتقاد میکرد و من (کاروال) یکروز در بیروی سیاسي از نجیب الله پرسان کردم و برایش گفتم که آیا شما درین رابطه افراط نمیکنید؟

نجیب الله گفت - خود آنها (رهبران شوروي) برایم میگویند که شما ما را تخریب کنید تا در جامعه افغاني هویت ملي خویش را تثبیت نمایید. ! !

په همدی (۱۸٦-۱۸۷ مخ) کې بل ځای وايي چې نجیب الله فکر کوي چې د حزب او وسله وال پوځ بریالیتوبونه ټول گویا د ده د فعالیت محصول دی - او (نجیب الله) در حقیقت مدعی بود که باید به حیث قهرمان ملي در تاریخ کشور درج گردد و میگفت که من بودم که به گورباچوف گفتم که نیروهای نظامي را از خاک ما خارج نمایید...

بلی نجیب الله غواړي چې په افغان تاریخ کې د قهرمان په توگه ثبت شي. کله چې احمد شاه مسعود ملي قهرمان وي، نو نجیب الله هم حق لري چې ملي قهرمان شي.

اوس به د محترم نجیب الله قهرماني په اسنادو کې ولټوو چې رښتیا ده که دروغ ده؟

د محترم نجیب الله فرار یا قهرماني؟

د ستر جنرال محمود گارییف کتاب په (٥٦ مخ) کې راغلي:

... با در نظر داشت همه این ملاحظات، با آغاز بازگشت سپاهیان شوروي از افغانستان برای ارگانهای دولتی... وضع دشواری پیش آمد. مهمترین موضوع این بود که اطمیناني وجود نداشت که رفتار ارتش و دیگر ساختار های نظامی چگونه خواهد بود. برای پیشگیری از پیشامد های غیر مترقبه، رئیس جمهور نجیب الله و اعضای حکومت به فرودگاه کابل آمدند تا آماده باشند، در صورت لزوم، کشور راترک گویند.؟

که انصاف وکړو، رئیس جمهور په ملي اردو باور نلري، خو رئیس جمهور نجیب الله د خپلو یارانو سره په پټه، په غلا ځان هوایي ډگر ته رسوي چې د ضرورت په صورت کې فوراً له هېواده فرار وکړي او وطن، ولس او خپل گوند بې سرنوشته پرېږدي. خو ملي (پر افتخاره) پوځ د خپل وطن په دفاع کې ولاړ دی. یعنې د ډېر تأسف ځای دی چې د حزب او هېواد رهبر تښتي زمونږ با شرف او با عزته گوند ته لا پخوا د نجیب الله په لاس، د مصالحې سرنوشت را ښکاریده؛ نو ځکه گوند د توطیو، دروغ گویې او طفلانه

لوبو پـه مقابـل کې قانـوني، روا او مـشروع مقاومت کاوه. انتخابات یې غوښـتل، په داسې حـال کـې چې نجیب الله فرار کوي خـو ملي اردو د نجیـب الله پر ضد هیـڅ ډول تلاش نه دی کـړی. د نجیـب الله د فـرار اصـلي علت څه شـی دی؟

- د ملی اردو څخه ډار؟ او که د کې. جي. بي. زهر اګین تبلیغات او مشورې؟
- له دې څخه ثابتیږي چې نجیب الله له خپل:
- ولس څخه بیګانه دی.
- ګوند څخه بیګانه دی.
- وسله وال پوځ څخه بیګانه دی.

خلاصه دا چې نجیب الله خپل ولس، ګوند او وسله وال پوځ خرڅ کړی دی.

- د نجیب الله د بیګانګی بل سند داسې وایي (۱۹۴ مخ) د ستر جنرال ګارییف:

(شیبارشین د مسکو د کې. جي. بي. رئیس: نام نجیب الله می تواند در پایان فهرست درازی از آنانی قرار گیرد که به خردمندی و کی است رهبران شوروي و سیاست پیگیرانهٔ شوروي باور داشت و حاضر بود از منافع شوروي دفاع کند و کاملاً به آن باور کند... )

امـا زمـوږ نومیـالي ګونـد او وسـله وال پـوځ خپلـې ملـي ګټـې غوښـتلې ؟ دلتـه زموږ د ګونـد او د خـرڅ شـوي نجیـب اللـه ترمنـځ تضـاد او مخالفتونه پـه وضاحـت سره څرګند دي.

د ستر جنرال ګارییف د کتاب په همدې (۱۹۴ مخ) کې یو بل حقیقت پروت دی:

در ۱۹۹۱ نجیـب اللـه نامـه خصوصـی بـه عنوانـی وزیـر خارجـه شـوروي (شـوارنادزی) فرسـتاد و بـا درد نوشـت:

«مـن نمـی خواسـتم رئیس جمهور شـوم. شـما مـرا راضی سـاختید، پیگرانه خواهش کردیـد و وعدهٔ حمایـت دادیـد. حـالا دیگر من و جمهوری افغانسـتان را بدست سر نوشت رهـا میکنید. چگونه میتوان ایـن مسـئله را درک کرد؟»

زمـوږ خـوږ ولـس، ګونـد او وسـله وال پوځ دقیقـاً پوهېدل چې نجیب اللـه زموږ جمهور رئیـس نـه دی. بلکـې د شـوروي لاسـپوڅی دی، پـه هـر حال موږ فکـر کاوه چـې شرایط به نجیـب اللـه وهڅـوي چې پـه ګوند او وسـله وال پوځ تکیـه وکړي.

راځـئ یـو ځـل بیـا د نجیب الله مکارګي او جعلي وطن دوسـتی ته یو نظـر واچوو، چې

قدرت نه تقسیموي:

د ستر جنرال گارییف کتاب (۱۹۶ - ۱۹۷ مخ) وايي:

- حتـی نمایندگان (شورای نجات ملی) کـه زیـر کنـترول وزارت امنیـت دولتـی عمل میکردند، از اشتراک در حکومت خودداری ورزیدند. آنها بـر آن بودند کـه بـرای ایجاد حکومت ایتلافـی واقعـی باید به نمایندگان، شخصیت های بیطرف کرسیهای مهم (مثلاً وزارت خارجه و وزارت ترابری...) واگذار گردد...

عهده از وزیران مانند غفور رحیم (وزیر آب و برق)، ف محمد ترین (وزیر امور عودت کنندگاه) و دیگران... عملاً اعضای حزب بودند و کارتهای حزبی داشتند که تنها به دستور نجیب الله از حزب بیرون رفته بودند تا غیر حزبی جا زده شوند و این سبب شد که مناسبات دولت افغانستان با شاخه اپوزسیون میانه رَو پیچیده شود. این شاخه تحولات انجام شده در حکومت افغانستان... به عنوان عدم تمایل نجیب الله در تقسیم قدرت ارزیابی کرد. ازین رو نمی توانستیم بر آن محاسبه کنیم که این حکومت زیر پا باشد.

- همدارنگـه امیـن واکمـن د افغـان ملت رهبر څو واره د نجیب اللـه سره لیده کاته کړی خـو بـدون نتیجـه. امیـن واکمـن بالاخـره نجیـب الله ته یـوه نامـه لیکې چې یو قسـمت یې داسې وايي:

(۳۳۵ مـخ)... نـو څکـه مـوږ خپلـو تعهداتـو تـه وفـادار یـو، خو تاسـی یـوازې دا نه چې خپـل تعهـدات مـو تر پښـو لانـدې کړل، بلکـې موږ ته مو د انسـان په سـترگه هـم ونه کتل او د ملي موضوعاتـو پـه بـاره کـې مـو زمـوږ مراجعاتو ته ځـواب هم ونـه وایه.

البتـه د افغـان ملـت گونـد (امیـن واکمـن) او نجیب اللـه تر منځ یوه مفصلـه تعهد نامه لیکل شوې وه. خـو کله چې کـې. جـي. بي. خبریږي، نجیـب الله تـه اشاره ورکوي چې اړیکې قطع کړي - دا حـدس نـه دی بلکـې دا منطـق دی او هماغـه منطـق چې نجیـب اللـه د کـې. جي. بي. پـه اشـاره پاچاگل وفـادار ته هدایـت ور کړی و چې لـه حقاني جلال الدیـن سره ارتبـاط قطع کړي !!




## لسم څپرکی

## نجیب الله د خپل حاکمیت دوام د تېري کوونکو سره د اردو په حضور کې لټوي

کله چې محترم نجیب الله خپله نامه (مکتوب) د شوروي د خارجه وزیر په عنوان ولیږله دا هغه وخت دی چې خلقیان زنداني شوي دي او یو تعداد یې د شهنواز تني سره تللی دي او د وسله وال پوځ سره د نجیب الله دښمني سخت حالت ته رسیدلې ده اوس خپل پرچمیان هم د نجیب الله له کنترول څخه وتلی او خپله دی تنها پاتې دی. له بلې خوا نوموړی قویاً تبلیغ کړی و چې ګویا شورویان د ده (نجیب الله) په واسطه خارج کړای شول. حال دا چې دا ډول د شوروي ضد خبرې لکه څنګه چې میر صاحب کاروال پخپل کتاب کې لیکلې: خپله کې. جي. بي نجیب الله ته ویل چې شوروي تخریب کړه چې په جامعه کې اتوریته پیدا کړې!

- د ستر جنرال ګارییف کتاب (۵۱ مخ) وایي:

... سوم اینکه رئیس جمهور افغانستان با پافشاری می خواست تا بخشی از سپاهیان شوروي را در افغانسان بگذاریم یا در صورت امکان سربازان داوطلب را برای پاسداری از راه حیرتان - و سیکورته کاروانهای حامل خواربار و مواد اکمالاتی بفرستیم.

ارادهٔ نیرومند و کاردانی خوب داشت و با استعداد سازمانگری از افسران افغان متمایز میگردید (ص ۸۳).

لیکوال : خو تر دې پرتوان جنرال څخه نجیب الله ته فرید مزدک ډېر مطلوب و، ځکه د دوی دواړو ګټې سره مشترکې وې - (د فرید مزدک په باب دې کتاب کې وګوري).

یوه متفکر ویلی و: هلته چې ګټې مشترکې نه وي - هلته هدفونه هم مشترک نه وي - نو د مشترک عمل لپاره هېڅ دلیل نشته.

۱۳. هغه وخت چې ګلاب زوی تبعید ته مجبور کړای شو نو د کې. جي. بي او نجیب الله قوتونه ټول لومړی درجه آمادګۍ ته راوستل شول ... دا هم کودتا نه وه نو څه وو؟

۱۴. د صالح محمد زیري تروروول چې کې. جي. بي او نجیب الله تنظیم کړی و تر ټولو توره او خونینه کودتا وه ...

۱۵. اوس به د محترم صدراعظم سلطان علي کشتمند لیکنه (کتاب) وګورو چې د ۱۳٦۸ (ل) کال د حوت د شپاړسم نظامي ټکر په باب څه وايي:

ص ۱۰۰۴ - ۱۰۰۵ : وضع نگران کنندهٔ برای مدت بالنسبه دراز ادامه داشت ... از طرف نجیب الله دستور داده شد که وسایل تحفیظی و آتش نشانی را پیش بینی نمایم ...

باری از نجیب الله پرسیدم که چرا با شهنواز (تنی) مصالحه نمی نماید؟

در پاسخ اظهار داشت : «مصالحه با شهنواز (تنی) ناممکن است - بگذار وی (تنی) نخست به یک اقدام دست بزند».

بر پایهٔ دستور نجیب الله ، زیر زمینی های وسیع مجهز با تمام وسایل ضروری آماده گردید - یکی درون ارگ، پیوسته با کاخ گلخانه و حرم سرای و دیگری در محوطهٔ ریاست جمهوری که با دفتر رئیس جمهور متصل بود و بر بام آن حتی هلیکوپتر میتوانست فرود آید و پرواز نماید.

همچنان از سوی عبدالوکیل وزیر امور خارجه، نیز زیر زمینی های آن وزارت با تیلیفون ها و سایر وسایل آماده گردید.

لیکوال : پورته لیکل شوي ټول دلایل شهادت ورکوي چې کې. جي. بي او نجیب الله د کودتا لپاره آمادګي نیسي او غواړي شهنواز تنی خلع سلاح کړي - سره له دې چې شهنواز تنی د زړه له کومې له نجیب الله سره سوله کوله.

دلته تکراراً د جان اف. کنیډي خبره په ځای بولم چې ویل یې :

"آنهائیکه تکامل مسالمت آمیز را غیر ممکن میسازند قیام قهر آمیز را اجتناب ناپذیر میسازند".

ذکر شوو کودتاګانو، شهنواز تنی فرار ته مجبور کړ. پدی ډول کې. جي. بي او ډاکټر نجیب الله د افغان ولس تاریخ ته د پای ټکی کیښود.

د کتاب په متن کې د "ستر جنرال الکساندر مایوروف دندی (وظیفې)

او په کابل کې د ده ارزونې ولولئ.





## ماخذونه :


۱- زیری، ډاکټر صالح محمد - د نیمې پېړۍ خاطرې.

۲- غوربندی، عبدالقدوس - نگاهی به تاریخ ح. د. خ. ا.

۳- کشتمند، سلطان علی - یاداشت های سیاسی و رویداد های تاریخی.

۴- پکتین، دکتور راز محمد - د ثور د ۷ نېټې پاڅون او د هغه پایلې.

۵- حصین، شاه محمود - مثلث بی عیب.

٦- میر صاحب کاروال - درس های تلخ و عبرت انگیز افغانستان.

۷- عبدالصمد غوث - سقوط افغانستان.

۸- عبدالحمید مبارز - آسیای میانه و افغانستان در آتش.

۹- داکتر شاه زمان وریځ ستانیزی - سهل انگاری محمد داود خان و کودتای ۷ ثور.

۱۰- فقیر محمد ودان - دشنه های سرخ.

۱۱- دگروال محمد یوسف و مارک ادکین - فاجعهٔ قرن ما، قصهٔ ناگفتهٔ افغانستان.

۱۲- هارون - داود خان د کې. جي. بي په لومو کې.

۱۳- محمد عارف امید - اکاذیب یغمای منگلی دوم.

۱۴- ډاکټر محمد حسن کاکړ - د سرطان کودتا د افغانستان د اوږدې بې ثباتی پیلامه.

۱۵- ستر جنرال محمود گارییف د نجیب الله نظامی مشاور - افغانستان پس از بازگشت سپاهیان شوروي.
۱٦- گل خان اکبری - کودتای حمل ۱۳۷۲ و اهداف.
۱۷- ستر جنرال الکساندر مایوروف - در پشت پرده های جنگ افغانستان.
۱۸- شاه محمود حصین - تاریخي لوېدنه.
۱۹- ظاهر طنین - افغنستان در قرن بیستم.
۲۰- و . پلاستون، و . اندریانف - افغنستان در منگنهٔ جیو پولیتیک.
۲۱- جنرال لیاخوفسکی - د افغان مېړانه او غمیزه.
۲۲- پیتر تامسن - جنگ های افغانستان.
۲۳- فیلیپ کاروین - سر نوشت غم انگیز در افغانستان.
۲۴- غرزی لایق - یک یاداشت کوتاه در سلسلهٔ کاوش ها پیرامون ترور استاد میر اکبر خیبر. یاداشت های سلیمان لایق از زندان.
۲۵- از برگهٔ فسبوک آقای آریانفر - دکتور نجیب الله : رفیق وکیل، سند دیورند را امضاء کن. متن روسی و فارسی.
۲٦- پرتو نادری شاعر و نویسنده : فاوست های روزگار ما.
۲۷- داکتر حسن شرق صدراعظم - تجویز تجزیهٔ افغانستان به شمال و جنوب در سال ۱۳٦٦ هـ . ش.
۲۸- ډاکټر عبدالحی نیازی - "د ملی مسئلې حل" مضمون.
۲۹- د اتل څواکمن مضمون.
۳۰- خارجي منابع.
۳۱- د شاه محمود حسین د استقلال سایت څخه مضامین.
۳۲- د آریایی سایت څخه مضامین.



**د لیکوال لنډه پېژندنه**

عبدالقادر د عبدالغفور زوی په ۱۳۱۴ هجري لمریز کال کې چې له ۱۹۳۵ زېږدیز کال سره سمون خوري، د پکتیا ولایت زرملې (زرمت) ولسوالي د اوریاخیلو په خره شي کلي کې په یوه بزګره کورنۍ کې زیږېدلی دی. له ۱۳۲۲ - ۱۳۲۸ (ل) پورې یې لومړۍ زده کړې د زرملې په ولسوالۍ کې تر سره کړې دي. له ۱۳۲۸ - ۱۳۳۵ (ل) پورې یې حربي ښوونځی لوستی او بیا د الوتکو د تخنیک په څانګه کې د زده کړې لپاره شوروي اتحاد ته تللی دی. تر زده کړو وروسته په ۱۳۳۸ (ل) کال کې هیواد ته راستون شو او د هوايي افسر په توګه یې دنده پیل کړه. په ۱۳۴۱ (ل) کې یو ځل بیا په هوايي انجینرۍ کې د لوړو زده کړو لپاره شوروي اتحاد ته تللی او په ۱۳۴۷ (ل) کال کې د ماسترۍ د دیپلوم له ترلاسه کولو وروسته هیواد ته راستون شو او په ۱۳۶۴ (ل) کال کې د شوروي اتحاد په جنرل شتاب اکاډمي کې بیا د تحصیل لپاره ماسکو ته استول شوی دی.

**د افغانسان په هوايي او هوايي مدافعې ځواکونو کې د لیکوال دندې:**

- د هوایي غونډ انجنیر؛
- د بګرام هوایي ډګر د ګارنیزون د میدان آمر؛
- د کابل هوایي ډګر د الف میدان آمر؛
- د بګرام هوایي ډګر د ګارنیزون قوماندان؛
- د هوایي او هوایي مدافعې د لویې قوماندانۍ درستیزوال؛
- د هوایي او هوایي مدافعې لوی قوماندان او د ملی دفاع د وزیر مرستیال؛
- د وطن د دفاع عالي شورا غړی؛
- د افغانستان د اعلی سر قوماندانۍ اپراتیفي غړی.

**د عسکري چوپړ په موده کې په ترتیب سره په لاندینیو رتبو ویاړل شوی دی:**

دوهم بریدمن، لومړی بریدمن، تورن، جګتورن، جګړن، ډګرمن، ډګروال، برید جنرال، تورن جنرال او ډګر جنرال.

**ګوندی موقف:**

- په ۱۳۵۴ لمریز کال کې د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند غړی؛
- د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند د مرکزي کمیټې علی البدل غړی؛
- د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند د مرکزي کمیټې اصلي غړی؛

ډاګر جنرال عبدالقادر (اکا) په بیلابیلو وختونو کې وار وار په ښه توګه د خپلو دندو په ترسره کولو سره د نظامي رتبو، دولتي نښانونو، مډالونو او ستاینلیکونو په اخیستلو بریالی شوی دی.